مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَمَا فِی الْاَرْضِ ۭ وَاللّٰهُ بِكُلِّ شَیْءٍ عَلِیْمٌ ﴿١٦﴾

په هغه څه چه په آسمانونو کښے دی | او څه چه | په زمکه کښے دی | او الله | په هر | څيز | ښهٔ پوهه دے

دَ آسمانونو او دَ زمکے دَ هر څيز نه خبر دے ، او الله تعالیٰ ته (دَدے نه علاوه هم) هر څهٔ معلوم دی

یَمُنُّوْنَ عَلَیْكَ اَنْ اَسْلَمُوْا ۭ قُلْ لَّا تَمُنُّوْا عَلَیَّ اِسْلَامَكُمْ ۚ

دوی احسان کوی | په تا باندِ | دَدے چه دوی مسلمانان شوی دی | ووايه | احسان مهٔ کوئی | په ما باندِ | دَ خپل اسلام راوړو

دا خلق په تا احسان کوی چه مونږ اسلام راوړے دے ته ورته وايه چه دَ خپل اسلام راوړو احسان په ما مهٔ کوئی

بَلِ اللّٰهُ یَمُنُّ عَلَیْكُمْ اَنْ هَدٰىكُمْ لِلْاِیْمَانِ اِنْ كُنْتُمْ

بلکه | الله | احسان لری | په تاسو باندِ | دَدے چه | دهٔ هدايت وکړو تاسو ته | دَ ايمان | که چرے يئ تاسو

بلکه دا خو دَ الله تعالیٰ په تاسو احسان دے چه دهٔ دَ ايمان طرف ته ستاسو رهنمائی وکړه ، که چرے تاسو

صٰدِقِیْنَ ﴿١٧﴾ اِنَّ اللّٰهَ یَعْلَمُ غَیْبَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۭ

رښتينی | بيشکه | الله | پوهيږی | په پټو خبرو | دَ آسمانونو | او دَ زمکے

رښتينی يئ ـ بيشکه الله تعالیٰ دَ آسمانونو او دَ زمکے په ټولو پټو خبرو باندِ پوهيږی

وَاللّٰهُ بَصِیْرٌ ۢ بِمَا تَعْمَلُوْنَ ﴿١٨﴾

او الله | کوری | هغه څهٔ | چه تاسو ئے کوئی ـ

او الله تعالیٰ ستاسو عملونه وينی کوری

سُوْرَةُ قٓ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ خَمْسٌ وَّ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ | اَرْبَعُوْنَ اٰيَةً وَّثَلٰثُ رُكُوْعَاتٍ

سورهٔ قٓ په مکه کښے نازل شوا و په | شروع کوم په نوم دَ الله چه لوئے مهربان ډير زيات رحم کوونکے دے | دے کښے ۴۵ ايتونه او درے رکوع دی

دَ الله په نوم شروع کوم چه لوئے مهربان دَ ډير زيات رحم خاوند دے

قٓ ۚ وَالْقُرْاٰنِ الْمَجِیْدِ ﴿١﴾ ۚ بَلْ عَجِبُوْٓا اَنْ جَآءَهُمْ مُّنْذِرٌ

قٓ | قسم دے په قرآن | چه خاوند دَ لوئے شان دے | بلکه | دوی تعجب کوی | چه راغے دوی ته | ويروونکے

قاف ـ په قرآن مجيد باندِ قسم دے (چه مونږ ته پيغمبر کړے يئے) خو دا خلق په دے خبره حيران دی چه دوی ته

مِّنْهُمْ فَقَالَ الْكٰفِرُوْنَ هٰذَا شَیْءٌ عَجِیْبٌ ﴿٢﴾ ۚ ءَاِذَا مِتْنَا

هم له دوی نه | نو دوی ئيل | کافرانو | دا | يو څيز دے | عجيبه | آيا هر کله چه مونږ مړهٔ شو

دَ خپل قوم نه يو ويروونکے راغے نو کافران وائی چه دا خو ډيره عجيبه خبره ده ـ آيا مونږ چه يو ځل مړهٔ شو

وَكُنَّا تُرَابًا ۚ ذٰلِكَ رَجْعٌ ۢ بَعِیْدٌ ﴿٣﴾ قَدْ عَلِمْنَا مَا تَنْقُصُ

او شو مونږه | خاوړے | دا | دوباره بيرته کرځيدل | (دَ عقل نه) لرے دی | بيشکه پوهيږو مونږه | په هغه څهٔ | چه کموی ئے

او (خاوړو سره) خاوړے شو (نو لا بيا به راژوندی کيږو؟) دا وا پسی خو (دَ عقل نه) ډيره لرے ده) مونږ ته خو دَ دوئی هغه (ټول اجزا)

الْاَرْضُ مِنْهُمْ ۚ وَعِنْدَنَا كِتٰبٌ حَفِیْظٌ ﴿٤﴾ بَلْ كَذَّبُوْا بِالْحَقِّ

زمکه | له دوی نه | او مونږ سره | يو کتاب دے | ساتندونکے | بلکه | دوی دروغ وګڼړلو | حق

معلوم دی چه دَ زمکے خاوره ئے ترے نه رژوی او مونږ سره خو پوره رجسټر سنبال پروت دے بلکه دوئی حقه خبره دروغ وګڼړله

لَمَّا جَآءَهُمْ فَهُمْ فِيْٓ اَمْرٍ مَّرِيْجٍ ۝٥ اَفَلَمْ يَنْظُرُوْٓا

هرکله چه | هغه راغے دوئ ته | پس دوی دی | په یو کار کښے | دَ پریشانئ | آیا دوئ نهٔ دی کتلی

څهٔ وخت چه دوئ ته راغله ، نو دوئ په تردّد کښے پریوتل ۔ نو آیا دوئ دَ

اِلَى السَّمَآءِ فَوْقَهُمْ كَيْفَ بَنَيْنٰهَا وَزَيَّنّٰهَا وَمَا لَهَا مِنْ فُرُوْجٍ ۝٦

آسمان طرف ته | دَ پاسه دَ دوئ | چه څنګه | مونږ جوړ کړے دے هغه | او ښائسته کړے دے مونږ هغه | او نشته په هغے کښے | څهٔ چاؤد

سر دَ پاسه آسمان ته نهٔ ګوری چه مونږ څنګه جوړ کړے او ښائسته کړے دے او په هغے کښے هیڅ چاؤد نشته

وَالْاَرْضَ مَدَدْنٰهَا وَاَلْقَيْنَا فِيْهَا رَوَاسِيَ وَاَنْۢبَتْنَا فِيْهَا مِنْ كُلِّ

او زمکه | غوړولے ده مونږ | او غورزولی دی مونږ | په دے کښے | غرونه | او راټوکولی دی مونږ | په دے کښے | دَ هر قسم

او زمکه خو هم مونږ خوره کړے ده او په هغے کښے مو غرونه کلک ښخ کړی دی او هر قسم ښائسته جوړئ جوړئ ئیزونه

زَوْجٍۢ بَهِيْجٍ ۝٧ تَبْصِرَةً وَّذِكْرٰى لِكُلِّ عَبْدٍ مُّنِيْبٍ ۝٨ وَنَزَّلْنَا

ښائسته جوړئ ئیزونه | ذریعه دَ سترګو غړیدلو | او نصیحت | دَ پاره دَ هر بنده ته رجوع کوونکی | او نازلے کړی دی مونږ

مو په کښے راټوکولی دی چه زمونږ طرف ته دَ رجوع کوونکی هر بنده دَ پاره دَ سترګو غړیدلو او نصیحت ذریعه ده ۔ او دَ بره نه

مِنَ السَّمَآءِ مَآءً مُّبٰرَكًا فَاَنْۢبَتْنَا بِهٖ جَنّٰتٍ وَّحَبَّ الْحَصِيْدِ ۝٩

له آسمان نه | او بهٔ | دَ برکت | پس مونږ راؤټوکول | په دے سره | باغونه | او دانه | دَ ریبلے شوی (فصل)

مو برکتی او بهٔ راؤورولے ، بیا مو په دے سره باغونه او دَ فصل دانے راپیدا کړی دی ۔

وَالنَّخْلَ بٰسِقٰتٍ لَّهَا طَلْعٌ نَّضِيْدٌ ۝١٠ رِّزْقًا لِّلْعِبَادِ

او قجورے | لوړے لوړے | چه دَ هغے | ګوچئ دی | قط په قط | روزی | دَ پاره دَ بندګانو

او دَ قجورو دنګے دنګے اونے چه دَ هغے ګوچئ یو په بل کښے ښخئ پرتے وی دا بندیانو ته دَ روزئ ورکولو دَ پاره دی

وَاَحْيَيْنَا بِهٖ بَلْدَةً مَّيْتًا ۚ كَذٰلِكَ الْخُرُوْجُ ۝١١ كَذَّبَتْ قَبْلَهُمْ

او ژوندے کړو مونږ په دے سره | یو ښار | مړ | هم دغه شان دی | دوباره وتل (دَ قبرونه) | دروغ وګڼړلو | له دوئ نه وړاندے

او په دے (اوبو) سره مونږ مړه زمکه ژوندئ کړه ، دغه شان به (دَ قبرونو نه) وتل وی ۔ دوئ (دَ مکے دَ کفارو) نه وړاندے

قَوْمُ نُوْحٍ وَّاَصْحٰبُ الرَّسِّ وَثَمُوْدُ ۝١٢ وَعَادٌ وَّفِرْعَوْنُ

قوم | دَ نوح ؑ | او خلقو دَ رَس | او (قوم دَ) ثمود | او | (قوم دَ) عاد | او فرعون

قوم دَ نوح ؑ او دَ رَس خلقو او ثمودیانو (خپل خپل) پیغمبران دروغژن وګڼړل او عادیانو او فرعون

وَاِخْوَانُ لُوْطٍ ۝١٣ وَّاَصْحٰبُ الْاَيْكَةِ وَقَوْمُ تُبَّعٍ ۚ كُلٌّ كَذَّبَ

او ورونړو دَ لوط ؑ | او | اُوسیدونکو دَ بڼو | او قوم دَ تبّع | ټولو | دروغژن وګڼړل

او دَ لوط ؑ ورونړو ۔ او دَ بڼو اُوسیدونکو او دَ تبع قوم دغے ټولو خپل خپل

الرُّسُلَ فَحَقَّ وَعِيْدِ ۝١٤ اَفَعَيِيْنَا بِالْخَلْقِ الْاَوَّلِ ۚ بَلْ

پیغمبران | نو ثابته شوه | وعده دَ عذاب زما | نو آیا مونږ ستړی شو | په پیدا کولو | دَ وړومبی ځل | (نه) بلکه

پیغمبران دروغژن وګڼړل نو زما دَ عذاب خبره پرے پوره شوه نو آیا مونږ (دَ دوئ) په وړومبی ځل پیدا کولو باندے ستړی شوی؟ بلکه

هُمْ فِىْ لَبْسٍ مِّنْ خَلْقٍ جَدِيْدٍ ⑮ وَلَقَدْ خَلَقْنَا الْاِنْسَانَ

دوئ | په شک کښې دی | له پیدا وښت نوی نه | او بیشکه | مونږ پیدا کړلو | انسان

دوئ د نوی سره د پیدا کیدو په حقله په شک کښې پراته دی، او یقینًا مونږ انسان پیدا کړو

وَنَعْلَمُ مَا تُوَسْوِسُ بِهٖ نَفْسُهٗ ۚ وَنَحْنُ اَقْرَبُ اِلَيْهِ

او مونږ پوهیږو | په هغه څه | چه وسوسه کوی د هغې | نفس د ده | او مونږ | زیات نزدے یو | ده ته

او د ده په زړه کښې چه کومے وسوسے راځی (هغه هم) مونږ پیژنو، او مونږ خو د ده د سا د

مِنْ حَبْلِ الْوَرِيْدِ ⑯ اِذْ يَتَلَقَّى الْمُتَلَقِّيٰنِ عَنِ الْيَمِيْنِ وَ

له رګ د سا د ده نه | هر کله چه | لیکی | دوه لیکونکے | له ښی ړخے نه | او

رګ نه هم زیات نزدے یو. څه وخت چه دوه لیکونکے فرښتے د ده ښی او ګس طرف

عَنِ الشِّمَالِ قَعِيْدٌ ⑰ مَا يَلْفِظُ مِنْ قَوْلٍ اِلَّا لَدَيْهِ رَقِيْبٌ

او له ګسے ړخے نه | ناست | نه وځی (د خلے نه) | څه خبره | مګر | د هغه سره | یو ساتونکے

ته ناستے وی. او د انسان د خلے نه چه څنګه څه لفظ وځی نو د ده سره یوه ساتونکے (فرښته) د دے

عَتِيْدٌ ⑱ وَجَآءَتْ سَكْرَةُ الْمَوْتِ بِالْحَقِّ ۗ ذٰلِكَ مَا كُنْتَ مِنْهُ

تیار ناست وی | او راغله | بے هوشی | د مرګ | په رښتیا | دا دی | هغه څه | چه تا به له هغې نه

د لیکلو د پاره) تیاره ناسته وی. او د مرګ بے هوشی په رښتیا راورسیده. دا هغه څیز دے چه د دے نه به ته

تَحِيْدُ ⑲ وَنُفِخَ فِى الصُّوْرِ ۗ ذٰلِكَ يَوْمُ الْوَعِيْدِ ⑳ وَجَآءَتْ

ډډه کوله | او پوکے به ووهلے شی | په شپیلئ کښې | هم دا ده | ورځ | (د عذاب) ذوعدے | او رابه شی

تښتیدلے. او شپیلئ به پوک وهلے شی. هم دا ده د عذاب ورځ. او هر څوک به په دے شان

كُلُّ نَفْسٍ مَّعَهَا سَآئِقٌ وَّشَهِيْدٌ ㉑ لَقَدْ كُنْتَ فِىْ غَفْلَةٍ

هر یو نفس | د ده سره به وی | یو روانونکے | او یو ګواهی ورکوونکے | بیشکه ته وے | په غفلت کښے

پیش کیږی چه یوه (فرښته) به ئے راولی او بله به ورسره ګواه وی. ته خو د دے ورځے نه غافله پروت

مِّنْ هٰذَا فَكَشَفْنَا عَنْكَ غِطَآءَكَ فَبَصَرُكَ الْيَوْمَ حَدِيْدٌ ㉒

له دے نه | نو مونږ لرے کړه | له تانه | ستا پرده | نو ستا نظر | نن ورځ | ډیر تیز دے

وے، نو مونږ درله (د سترګو نه) پرده پرانستله نو نن (خو) دِ نظر ډیر تیز دے.

وَقَالَ قَرِيْنُهٗ هٰذَا مَا لَدَىَّ عَتِيْدٌ ㉓ اَلْقِيَا فِىْ جَهَنَّمَ

او وبه وائی | د ده ملګرے (فرښته) | دا دی هغه څه | چه ما سره | تیار دی | (حکم به وشی) تاسو دواړه وغورزوئ | په دوزخ کښے

او د هغه ملګرے فرښته به وائی چه دا هغه (عمل نامه) ده چه ما سره تیاره پرته ده. (حکم به وشی چه) اے دواړو فرښتو!

كُلَّ كَفَّارٍ عَنِيْدٍ ㉔ مَّنَّاعٍ لِّلْخَيْرِ مُعْتَدٍ مُّرِيْبٍ ㉕ الَّذِىْ

هر | ناشکره | سرکش | چه منع کوونکے دے | له نیکئ نه | له حده تیریدونکے | هر شک کوونکے | هغه چا چه

هر ناشکره سرکشه په دوزخ کښے وغورزوئ. چه (خلق ئے د) نیکئ نه منع کول حده تیریدونکے او شک کوونکے وو، چا چه

جَعَلَ مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا اٰخَرَ فَاَلْقِيٰهُ فِي الْعَذَابِ الشَّدِيْدِ ﴿٢٦﴾

مقرر کړے وُ دے | دَ الله سره | معبود | بل پس وغورزوئی دے | په سخت عذاب کښے

الله تعالیٰ سره نور معبودان مقرر کړل ۔ تاسو دواړه دا کس په سخت عذاب کښے واچوئی ۔

قَالَ قَرِيْنُهٗ رَبَّنَا مَآ اَطْغَيْتُهٗ وَلٰكِنْ كَانَ فِيْ ضَلٰلٍ

وائی به | دَ دهٔ ملګرے | اے ربه زمونږه | ما دے نهٔ وو سرکش جوړ کړے | لیکن | وو دے | په ګمراهئی کښے

دَ هغهٔ (شیطان) ملګرے به ووائی چه اے زمونږه ربه! ما دے سرکش نهٔ دے جوړ کړے بلکه دے پخپله په غټه ګمراهئی

بَعِيْدٍ ﴿٢٧﴾ قَالَ لَا تَخْتَصِمُوْا لَدَيَّ وَقَدْ قَدَّمْتُ اِلَيْكُمْ بِالْوَعِيْدِ ﴿٢٨﴾

دَ لرے | وُ به فرمائی | جګړے مهٔ کوئی | ماسره | او ما (خو) وړاندِ لیږلے وه | ستاسو طرف ته | خپله (دَ عذاب) وعده

کښے پروت وو۔ الله به وفرمائی، زما په وړاندِ جګړے مهٔ کوئی او ما تاسو (په دنیا کښے) دَ وړاندِ نه دَ دے عذاب نه ویرولی وئی

مَا يُبَدَّلُ الْقَوْلُ لَدَيَّ وَمَآ اَنَا بِظَلَّامٍ لِّلْعَبِيْدِ ﴿٢٩﴾ يَوْمَ نَقُوْلُ

نهٔ شی بدلولے | خبره | ماسره | او نهٔ یم زهٔ | ظلم کوونکے | په بندګانو باندِ | په کومه ورځ چه به | مونږه وُوایو

نو زما په دلبار کښے به (نن) هغه خبره نهٔ بدلیږی او زهٔ په خپلو بندیانو دَ ذرے هومره زیاتے نهٔ کوم، په کومه ورځ چه به

لِجَهَنَّمَ هَلِ امْتَلَاْتِ وَتَقُوْلُ هَلْ مِنْ مَّزِيْدٍ ﴿٣٠﴾ وَاُزْلِفَتِ

دوزخ ته | آیا | نهٔ ډک شوے؟ | او هغه به ووائی | آیا | زیاتی څهٔ شته؟ | او نزدے به کړے شی

مونږه دوزخ ته وُوایو چه آیا نهٔ ډک شوے؟ او هغه به ووائی چه څهٔ نور هم شته؟ او پرهیزګارانو دَ

الْجَنَّةُ لِلْمُتَّقِيْنَ غَيْرَ بَعِيْدٍ ﴿٣١﴾ هٰذَا مَا تُوْعَدُوْنَ لِكُلِّ اَوَّابٍ

جنت | پرهیزګارانو ته | هغه به لرے نهٔ وی | هم دا دے | هغه چه | تاسو سرهٔ ئے وعدهٔ کولے شی | دَ پاره دَ هر رجوع کوونکی

پاره به جنت را نزدے کړے شی هغه به څهٔ لرے نهٔ وی، هم دا دے هغه (جنّت) دَ کوم چه تاسو سره وعدهٔ کولے شوه، هر رجوع

حَفِيْظٍ ﴿٣٢﴾ مَنْ خَشِيَ الرَّحْمٰنَ بِالْغَيْبِ وَجَآءَ بِقَلْبٍ

حفاظت کوونکی | څوک چه | ویریږی | دَ (الله) رحمٰن نه | بے لیدلو | او راغلے وی | په زړهٔ

کوونکی او (دَ حقوقو) حفاظت کوونکی دَ پاره، چه بے لیدلو دَ الله تعالیٰ نه ویریږی ، او دَ رجوع کوونکی زړهٔ سره

مُّنِيْبٍ ﴿٣٣﴾ ادْخُلُوْهَا بِسَلٰمٍ ذٰلِكَ يَوْمُ الْخُلُوْدِ ﴿٣٤﴾ لَهُمْ مَّا

رجوع کوونکی سره | تاسو داخل شئ په دے کښے | په سلامتیا سره | هم دا دهٔ | ورځ | دَ همیشه اُوسیدلو | دوی دَ پاره دی هغه څه

راشی (حکم به وُشی) په دے (جنّت) کښے په سلامتئ سره داخل شئ دا دَ همیشه همیشه اُوسیدو ورځ ده ، دوئی دَ پاره به

يَشَآءُوْنَ فِيْهَا وَلَدَيْنَا مَزِيْدٌ ﴿٣٥﴾ وَكَمْ اَهْلَكْنَا قَبْلَهُمْ

چه دوی ئے غواړی | په دے کښے | او مونږ سره | نور هم زیات دی | او څومره | مونږه هلاک کړل | له دوئی نه وړاندِ

هلته هغه هر څهٔ وی چه دوئی ئے غواړی او مونږ سره نور هم ډیر څهٔ دی۔ او مونږ دَ دوئی نه وړاند ډیر داسے قومونه

مِّنْ قَرْنٍ هُمْ اَشَدُّ مِنْهُمْ بَطْشًا فَنَقَّبُوْا فِي الْبِلَادِ

قومونه | هغوئ | زیات سخت وُو | له دوئی نه | په حمله کښے | پس دوئی لټون کولو | په ښارونو کښے

تباه کړی دی چه په (طاقت او) حمله کښے دَ دوئی نه زیات وو او هغوئ ښارونه (دَ ترقئ په غرض) چا نړول

هَلْ مِنْ مَّحِيصٍ ۝٣٦ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَذِكْرَىٰ لِمَن كَانَ لَهُ

آیا | دَ تیښتې څهٔ ځائے شته؟ | بیشکه | په دے کښے | نصیحت دے | هغه چا دَپاره | چه وی دَ هغهٔ

نو آیا هغوئ چرته ځان لهٔ دَ سرپناه کولو ځائے بیا موندو؟ دَ هغوئ په تباهئ کښے دَ هغه چا دَپاره لوئے سبق پروت دے

قَلْبٌ أَوْ أَلْقَى السَّمْعَ وَهُوَ شَهِيدٌ ۝٣٧ وَلَقَدْ خَلَقْنَا السَّمَاوَاتِ

زړهٔ (بیدار) | یا هغه بږدی | غوږ | او هغه متوجه وی | او بیشکه | مونږ پیدا کړل | آسمانونه

چه دَ (روغ) زړهٔ خاوند دے یا په توجه سره خبرے ته غوږ نیسی. او مونږ آسمانونه او زمکه او دَ دے دواړو

وَالْأَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا فِي سِتَّةِ أَيَّامٍ وَمَا مَسَّنَا مِن لُّغُوبٍ ۝٣٨

او زمکه | او هغه څهٔ | چه دَ دے دواړو په مینځ کښے دی | په شپږو | ورځو کښے | او نهٔ دهٔ رسیدلے مونږ ته | څهٔ ستومانی

په مینځ کښے څیزونه په شپږو ورځو کښے پیدا کړی دی. او مونږ پرے هیڅ هم نهٔ یو ستړی شوی

فَاصْبِرْ عَلَىٰ مَا يَقُولُونَ وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ قَبْلَ طُلُوعِ

پس صبر کوه | په هغه څهٔ چه | دوی ئے وائی | او پاکی بیان کړه | په تعریف سره | دَ خپل رب | وړاندې | دَ راختلو

نو دَ دوئ په خبرو صبر کوه ، او دَ خپل رب حمد او تسبیح لوله دَ نمر ختلو نه وړاندې

الشَّمْسِ وَقَبْلَ الْغُرُوبِ ۝٣٩ وَمِنَ اللَّيْلِ فَسَبِّحْهُ وَأَدْبَارَ السُّجُودِ ۝٤٠

دَ نمر ته | او وړاندې | له پریوتلو نه | او دَ شپے په ځنے وختونو کښے | پاکی بیانوه دَ دهٔ | او له سجدے نه پس هم

او دَ نمر ډوبیدلو نه وړاندې ، او په شپه کښے هم دَ هغهٔ تسبیح لوله او دَ مونځونو نه پس هم.

وَاسْتَمِعْ يَوْمَ يُنَادِ الْمُنَادِ مِن مَّكَانٍ قَرِيبٍ ۝٤١ يَوْمَ يَسْمَعُونَ

او واوره | په کومه ورځ چه | آواز ورکړی | آواز کوونکے | له ځائے نزدے نه | په کومه ورځ چه | دوی به واوری

او واوره! په کومه ورځ چه منادی به دَ نزدے نه چغه کړی ، په هغه ورځ چه دوئ ټول به

الصَّيْحَةَ بِالْحَقِّ ذَٰلِكَ يَوْمُ الْخُرُوجِ ۝٤٢ إِنَّا نَحْنُ نُحْيِي وَنُمِيتُ

زوره داره چغه | په حق سره | هم دا | ورځ به وی | دَ (دوباره) وتلو | بیشکه مونږ | ژوندی کوو | او مړهٔ کوو

دغه چغه په یقین سره واوری. هم دغه (دَ قبرونو نه) دَ راوتلو ورځ ده. بیشکه هم مونږ ټول ژوندی کوو او مړهٔ کوو

وَإِلَيْنَا الْمَصِيرُ ۝٤٣ يَوْمَ تَشَقَّقُ الْأَرْضُ عَنْهُمْ سِرَاعًا

او زمونږ طرف ته | واپس راتلل دی | په کومه ورځ به | چه ووچوی | زمکه | دَ دوی دَ (پاسه) نه | په تندئ

او هر څهٔ به مونږ ته پستنه راګرځی. په کومه ورځ چه زمکه په دوئ باندې ووچوی او دوئ به راز غلی

ذَٰلِكَ حَشْرٌ عَلَيْنَا يَسِيرٌ ۝٤٤ نَحْنُ أَعْلَمُ بِمَا يَقُولُونَ وَمَا أَنتَ

دا | جمع کول دی | چه په مونږ باندې | آسان دی | مونږ | ښهٔ پوهیږو | په هغه څهٔ | چه دوئ ئے وائی | او نهٔ یئے ته

دغه راغونډول مونږ ته ډیر آسان دی ـ مونږ ته دَ دوئ خبرے ډیرے ښے معلومے دی او ته په دوئ باندې

عَلَيْهِم بِجَبَّارٍ فَذَكِّرْ بِالْقُرْآنِ مَن يَخَافُ وَعِيدِ ۝٤٥

په دوی باندې | زبردستی کوونکے | پس نصیحت وکړه | په قرآن سره | هغه چا ته چه | ویریږی | زما (دَ عذاب) دَ وعدے نه

څهٔ جابر (حاکم) خو مقرر نهٔ یئے ـ نو دَ دے قرآن په ذریعه هغه چا ته سبق ورکوه چه زما دَ عذاب نه ویره کوی.

سُوْرَةُ الذّٰرِيٰتِ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | سِتُّوْنَ اٰيَةً وَّثَلٰثُ رُكُوْعَاتٍ

سورۀ ذاریات په مکه کښې نازل شو | شروع کوم په نوم دَ الله چه لوئې مهربان ډېر زیات رحم کوونکے دے | او په دے کښې ٦٠ آيتونه او ٣ رکوع دي

دَ الله په نوم شروع کوم چه لوئې مهربان دَ ډېر زيات رحم خاوند دے

وَالذّٰرِيٰتِ ذَرْوًا ۝١ فَالْحٰمِلٰتِ وِقْرًا ۝٢ فَالْجٰرِيٰتِ يُسْرًا ۝٣

قسم دے په الوزونکو بادونو | چه الوزوی (بخارات) | بیا اوچتوی | بوج (دَ دریځو) | بیا روانے شي | رو رو

په الوزونکو سيلو باندې قسم دے ، بیا په بار اوچتونکو وریځو باندې ، بیا په اَوارو بهیدونکو کشتو

فَالْمُقَسِّمٰتِ اَمْرًا ۝٤ اِنَّمَا تُوْعَدُوْنَ لَصَادِقٌ ۝٥ وَّاِنَّ الدِّيْنَ

بیا تقسیموی | بوکار (باران) | بیشکه | تاسو سره چه کومه وعده کولے شي | هغه رښتيا ده | او بیشکه | جزا او سزا

بیا دَ ځيزونو په تقسیمونکو فرښتو چه تاسو سره کوم لوظ کيږی هغه بالکل رښتيا دے - او بیشکه دَ سزا او جزا

لَوَاقِعٌ ۝٦ وَالسَّمَآءِ ذَاتِ الْحُبُكِ ۝٧ اِنَّكُمْ لَفِيْ قَوْلٍ

ضرور واقع کیدونکے ده | او قسم په آسمان | چه لارو والا دے | بیشکه تاسو | په يوه خبره کښې

ورځ ضرور راتلونکے ده - او په آسمان باندې قسم دے چه لارے پکښې جوړے دی ، چه تاسو دَ اختلافی خبرو په چکر کښې

مُّخْتَلِفٍ ۝٨ يُّؤْفَكُ عَنْهُ مَنْ اُفِكَ ۝٩ قُتِلَ الْخَرّٰصُوْنَ ۝١٠ الَّذِيْنَ

اختلاف کوونکی يئ | واپس گرځولے شي | له دے نه | هغه څوک چه | گرځولے شوی دے | هلاک شول | (بے دليله) اندازه لګوونکی | چه

پريوتی يئ ، دَ دے حقیقت نه هم هغه مخ اړوی چه (دَ ازل نه) محروم ساتلے شوے دے ، هلاک دِ شی بے دليله خبرے کوونکی ، چه دَ

هُمْ فِيْ غَمْرَةٍ سَاهُوْنَ ۝١١ يَسْـَٔلُوْنَ اَيَّانَ يَوْمُ الدِّيْنِ ۝١٢ يَوْمَ هُمْ

هغوی په غفلت کښې دی | هيروونکی دی | دوی پښتنه کوی | چه کله به وی | ورځ | دَ جزا | په کومه ورځ چه به دوی

جهالت) په غفلت کښې پراته دی هر څه ترے هير دی - دا پښتنه کوی چه دَ بدلے ورځ به کله وی ؟ دا به هغه ورځ وی

عَلَى النَّارِ يُفْتَنُوْنَ ۝١٣ ذُوْقُوْا فِتْنَتَكُمْ ۭ هٰذَا الَّذِيْ كُنْتُمْ بِهٖ

په اور باندې | سوزولے شی | وڅکئ تاسو (مزه) دَ خپلے سزا | هم دا دے هغه | دَ کوم چه تاسو

چه دوی به په اور باندې سوزولے شی (چه اوس) دَ خپلے سزا خوند واخلئ - هم دا دے هغه (عذاب) دَ کوم دَ پاره

تَسْتَعْجِلُوْنَ ۝١٤ اِنَّ الْمُتَّقِيْنَ فِيْ جَنّٰتٍ وَّعُيُوْنٍ ۝١٥ اٰخِذِيْنَ

تلوار کوله | بیشکه پرهيزګاران به | په باغونو کښې | او چينو (کښې وی) | اخستونکی (به وی)

چه تاسو تلوار کوله - بیشکه پرهيزګار خلق به په باغونو او چينو کښې وی ، څه چه دَ دوی رب به دوی

مَآ اٰتٰهُمْ رَبُّهُمْ ۭ اِنَّهُمْ كَانُوْا قَبْلَ ذٰلِكَ مُحْسِنِيْنَ ۝١٦ كَانُوْا

دَ هغه څه | چه ورکړل دوی ته | رب دَ دوی | بیشکه دوی | وُو | له دے نه وړاندې | نيکی کوونکی | وُو دوی

له ورکوی هغه به اخلی ، بیشکه دا خلق له دے نه وړاندې نيکی کوونکی وُو ، دوی به

قَلِيْلًا مِّنَ الَّيْلِ مَا يَهْجَعُوْنَ ۝١٧ وَبِالْاَسْحَارِ هُمْ يَسْتَغْفِرُوْنَ ۝١٨

چه لږ به | دَ شپے | دوی خوب کولو | او په وخت دَ سحر کښې به | دوی | بخښنه غوښتله

دَ شپے ډېر کم اوده کيدل - او دَ سحر په وخت کښې به ئے (دَ خپل رب نه) بخښنه غوښتله

وَفِيٓ اَمْوَالِهِمْ حَقٌّ لِّلسَّآئِلِ وَالْمَحْرُوْمِ ﴿۱۹﴾ وَفِي الْاَرْضِ

او دَ دوئ په مالونو کښې به | حق وو | دَ پاره دَ سوال کوونکو | او دَ تنگ دستو | او په زمکه کښې

او دَ هغوئ په مالونو کښې دَ سوالگرو او دَ نهٔ غوښتونکو (غریبانانو) برخه مقرر ده۔ او په دے زمکه کښې

اٰيٰتٌ لِّلْمُوْقِنِيْنَ ﴿۲۰﴾ وَفِيٓ اَنْفُسِكُمْ ۚ اَفَلَا تُبْصِرُوْنَ ﴿۲۱﴾

نخښې دی | دَ پاره دَ یقین کوونکو | او په خپله ستاسو په ذات کښې | نو آیا نهٔ | گورئ تاسو په غور سره۔

دَ یقین کوونکو دَ پاره ډیرے نخښې پرتے دی او ستاسو په خپلو ځانونو کښې هم نو آیا تاسو نه بشکاری نه؟

وَفِي السَّمَآءِ رِزْقُكُمْ وَمَا تُوْعَدُوْنَ ﴿۲۲﴾ فَوَرَبِّ السَّمَآءِ

او په آسمان کښې دے | رزق ستاسو | او هغه څهٔ | چه تاسو سره ئے وعدهٔ کولے شی | پس قسم دے په رب | دَ آسمان

او بره په آسمان کښې ستاسو روزی هم ده او هغه هم چه تاسو سره ئے لوظ کیږی۔ نو دَ آسمان او دَ زمکے په رب م

وَالْاَرْضِ اِنَّهٗ لَحَقٌّ مِّثْلَ مَآ اَنَّكُمْ تَنْطِقُوْنَ ﴿۲۳﴾ هَلْ اَتٰىكَ

او دَ زمکے | چه بیشکه دا | رښتیا دے | په شان | دَ هغه چه تاسو ئے | خبرے کوئ | آیا | راغلے ده تا ته

قسم دے چه څنگه ستاسو وینا برحق ده دغه شان (دَ جزا دَ ورځے راتلل) هم برحق دی (اے رسوله!) آیا تا ته دَ ابراهیمؑ

حَدِيْثُ ضَيْفِ اِبْرٰهِيْمَ الْمُكْرَمِيْنَ ﴿۲۴﴾ اِذْ دَخَلُوْا عَلَيْهِ فَقَالُوْا

خبره (خبر) | دَ میلمنو دَ ابراهیمؑ | چه عزتمند وُو | هر کله چه | داخل شول | په دهٔ | پس دوئ ووئیل

دَ عزتمندو میلمنو خبر (نهٔ دے) رارسیدلے؟ هر کله چه هغه (فرښتے) دَهٔ ته راغلے نو سلام

سَلٰمًا ۭ قَالَ سَلٰمٌ ۚ قَوْمٌ مُّنْكَرُوْنَ ﴿۲۵﴾ فَرَاغَ اِلٰٓى اَهْلِهٖ

سلام | نو ابراهیمؑ ووئیل | سلام | دا یوه ډله ده ناپیژندګلو | بیا هغه (غلے شان) لاړو | خپل کور ته

ئے واچو نو، ابراهیمؑ هم ورته سلام وکړو (او په زړهٔ کښې ئے خیال وکړو) دا نا آشنا خلق دی۔ بیا په تادئ سره خپل کور ته لاړو

فَجَآءَ بِعِجْلٍ سَمِيْنٍ ﴿۲۶﴾ فَقَرَّبَهٗٓ اِلَيْهِمْ قَالَ اَلَا تَاْكُلُوْنَ ﴿۲۷﴾ فَاَوْجَسَ

بیائے راوړو | یو سخے | څورب | پس هغه ئے ورنزدے کړلو دوئ ته | دهٔ ووئیل | آیا تاسو نهٔ خورئ؟ | نو دهٔ محسوس کړله

نو یو څورب سخے ئے راوړو۔ نو نزدے ئے ورته کیښودو او ورته ئے ووئیل چه تاسو ولے خوراک نهٔ کوئ؟ بیائے

مِنْهُمْ خِيْفَةً ۭ قَالُوْا لَا تَخَفْ ۭ وَبَشَّرُوْهُ بِغُلٰمٍ عَلِيْمٍ ﴿۲۸﴾

له دوئ نه | ویره | دوئ ووئیل | مهٔ ویریږه | او دوئ زیرے ورکړو دهٔ ته | دَ یو هلک | پوهه

ترے نه په زړهٔ کښې ترهه پیدا شوه، هغوئ ورته ووئیل چه ویره مهٔ کوه او هغوئ ابراهیمؑ ته دَ یو هوښیار ځوئ زیرے ورکړو

فَاَقْبَلَتِ امْرَاَتُهٗ فِيْ صَرَّةٍ فَصَكَّتْ وَجْهَهَا وَقَالَتْ عَجُوْزٌ

بیا رامخامخ شوه | دَ دهٔ بی بی | په یو آواز (دَ حرانتیا) سره | نو تس ئے ورکړو | مخ خپل له | او وئے وئیل | بوډئ

نو دَ هغهٔ بی بی په وینا وینا رامخامخ شوه، نو تندی له ئے تس ورکړو چه (بښه!) دَ بوډئ (او دَ) شنډے

عَقِيْمٌ ﴿۲۹﴾ قَالُوْا كَذٰلِكِ ۙ قَالَ رَبُّكِ ۭ اِنَّهٗ هُوَ الْحَكِيْمُ الْعَلِيْمُ ﴿۳۰﴾

شنډه؟ | دوی ووئیل | هم دغه شان | فرمائیلی دی | ربّ ستا | بیشکه دے کے | خاوند دَ حکمت | پوهه

(به اولاد کیږی)؟ هغوئ ورته ووئیل چه هم دغسے ستا رب فرمائیلی دی، هغه دَ ډیر حکمت او دَ لوئے علم خاوند دے۔

ع ۲۳ / ۱۸

وقف لازم

قَالَ فَمَا خَطْبُكُمْ اَيُّهَا الْمُرْسَلُوْنَ ﴿٣١﴾ قَالُوْٓا اِنَّآ اُرْسِلْنَآ

ئے فرمائیل | پس ستا سو خهٔ مقصد دے | اے (دَ الله) رالیږلے شوو فرښتو؟ | دوی ووئیل | چه بیشکه مونږ رالیږلے شوی یُو

ابراهیمؑ) وفرمائیل چه اے فرښتو! ستا سو مقصد خهٔ دے؟ هغوئی ووئیل مونږ یو مجرم قوم طرف ته

اِلٰى قَوْمٍ مُّجْرِمِيْنَ ﴿٣٢﴾ لِنُرْسِلَ عَلَيْهِمْ حِجَارَةً مِّنْ طِيْنٍ ﴿٣٣﴾

دَ یو مجرم قوم طرف ته | دَ پاره دَ دے چه مونږ راؤلیږو | په دوئی باندِ | کانړی | دَ خټے نه

رالیږلے شوی یُو. دَ پاره دَ دے چه مونږ په هغوئی باندِ داسے دَ تیکرو کانړی راووروو چه

مُّسَوَّمَةً عِنْدَ رَبِّكَ لِلْمُسْرِفِيْنَ ﴿٣٤﴾ فَاَخْرَجْنَا مَنْ كَانَ

نخښے پرے لګیدلے | په نزد دَ رب ستا | دَ حد نه تیریدونکو دَ پاره | پس را ؤویستل مونږ | هغه څوک چه | وو

په هغے باندِ ستا دَ رب سره دَ زیاتی خورو دَ پاره نخښے لګیدلے دی، نو هلته چه کوم مؤمنان اوسیدل

فِيْهَا مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿٣٥﴾ فَمَا وَجَدْنَا فِيْهَا غَيْرَ بَيْتٍ

هلته | له مؤمنانو نه | پس وُنهٔ موندلو مونږ | هلته | سیوا | دَ یو کور

هغه مو ترے نه بهر ؤویستل - خو مونږ پکښے دَ یو کور نه سیوا دَ مؤمنانو بل کور نهٔ

مِّنَ الْمُسْلِمِيْنَ ﴿٣٦﴾ وَتَرَكْنَا فِيْهَآ اٰيَةً لِّلَّذِيْنَ يَخَافُوْنَ

له مسلمانانو نه | او مونږ پریښودهٔ | هلته | یوه نخښه | هغه کسانو دَ پاره | چه ویریږی

بیا نهٔ موندهٔ. او په دے (واقعه) کښے مو هغه خلقو له یوه نخښه باقی پریښوده چه دَ

الْعَذَابَ الْاَلِيْمَ ﴿٣٧﴾ وَفِيْ مُوْسٰٓى اِذْ اَرْسَلْنٰهُ اِلٰى فِرْعَوْنَ

له عذاب | دردناک نه | او په (قصه د) موسیٰ کښے | هرکله چه ولیږلو مونږ دے | طرف دَ فرعون ته

دردناک عذاب نه ویریږی. او (د غسے) دَ موسیٰؑ په قیصه کښے هم (نخښه پرته ده) څهٔ وخت چه مونږ هغه (دَ فرعون

بِسُلْطٰنٍ مُّبِيْنٍ ﴿٣٨﴾ فَتَوَلّٰى بِرُكْنِهٖ وَقَالَ سٰحِرٌ اَوْ مَجْنُوْنٌ ﴿٣٩﴾

په دلیل | واضح سره | پس ده مخ واړولو | دَ خپل لښکر سره | او وے وئیل | دا جادوګر | یا دیوانه دے -

(دربار) ته دَ څرګند دلیل سره ولیږلو خو هغهٔ دَ خپل زور په خیال کښے انکار ؤکړو او دائے ؤوئیل چه دا جادوګر یا لیونے دے

فَاَخَذْنٰهُ وَجُنُوْدَهٗ فَنَبَذْنٰهُمْ فِى الْيَمِّ وَهُوَ مُلِيْمٌ ﴿٤٠﴾

پس ونیولو مونږ دے | او دَ دهٔ لښکرے | بیا مونږ وغورزول دوی | په دریاب کښے | او هغه وو | دَ ملامتیا جوګه

نو مونږ هغه او دَ هغهٔ لښکر (ټول) راؤنیول او په سمندر کښے مو ؤغورزول او هغهٔ هسے هم دَ ملامتیا کار کړے وو

وَفِيْ عَادٍ اِذْ اَرْسَلْنَا عَلَيْهِمُ الرِّيْحَ الْعَقِيْمَ ﴿٤١﴾ مَا تَذَرُ مِنْ شَيْءٍ

او په (قوم دَ) عاد کښے | هرکله چه ولیږله مونږ | په دوئی باندِ | سیلئ | بے برکته | چه نهٔ به ئے پریښودلو | هیڅ څیز

او (دَ) عاد (په واقعه) کښے هم (عبرت) دے څهٔ وخت چه مونږ پرے بے خیره سیلئ راولیږله - (دا داسے سیلئ وه چه) په کوم

اَتَتْ عَلَيْهِ اِلَّا جَعَلَتْهُ كَالرَّمِيْمِ ﴿٤٢﴾ وَفِيْ ثَمُوْدَ اِذْ قِيْلَ لَهُمْ

چه رابه غله په هغے | مګر | کړو به ئے هغه | ریزه ریزه | او په (قوم دَ) ثمود کښے | هرکله چه ؤوئیلے شو | دوئی ته

څیز به تیریدله نو هغه به ئے ریزه ریزه کولو - او (د غه شان) دَ ثمود (په واقعه) کښے هم (عبرت دے) هرکله چه دوئی

تَمَتَّعُوْا حَتّٰى حِيْنٍ ﴿٤٣﴾ فَعَتَوْا عَنْ اَمْرِ رَبِّهِمْ فَاَخَذَتْهُمُ الصّٰعِقَةُ

فائدہ واخلئ تاسو | یو وخت مقرر پورے | نو دوئی سرکشی وکړہ | دَحکم دَرب خپل نه | پس وُنیول دوی | تندر

ته دوئیلے شو چه یو څو ورځے نور عیشونه وکړئ خو هغوئ دَخپل رب دَحکم نه سرکشی وکړه نو هغوئ عذاب راونیول

وَهُمْ يَنْظُرُوْنَ ﴿٤٤﴾ فَمَا اسْتَطَاعُوْا مِنْ قِيَامٍ وَّمَا كَانُوْا مُنْتَصِرِيْنَ ﴿٤٥﴾

او دوی | کتل | پس په دوئی کښے طاقت پاتے نهٔ شو | دَاودریدلو | اونهٔ وُو دوئی | بدله اخستونکی

او هغوئ ورته (په غټو غټو) کتل۔ نو (بیا) نهٔ خو راوُچت شو او نهٔ ئے زمونږ نه څهٔ بدله واخستے شوه۔

وَقَوْمَ نُوْحٍ مِّنْ قَبْلُ ؕ اِنَّهُمْ كَانُوْا قَوْمًا فٰسِقِيْنَ ﴿٤٦﴾ ع وَالسَّمَآءَ

او (هلاک ئے کړو) قوم دَنوحؑ | له دے نه وړاندِ | بیشکه دوی | وُو | خلق | نافرمانه | او آسمان

او دَ هغوئ نه وړاندِ دَنوحؑ دَقوم سره هم دغه سلوک شوے دے۔ بیشکه چه دغه هم یو ډیر نافرمانه قوم وو۔ او مونږ آسمان

بَنَيْنٰهَا بِاَيْىدٍ وَّاِنَّا لَمُوْسِعُوْنَ ﴿٤٧﴾ وَالْاَرْضَ فَرَشْنٰهَا فَنِعْمَ

جوړ کړو مونږ دا | په قوت | او بیشکه مونږ | فراخی ورکوونکی یُو | او زمکه | پس مونږ وغوړوله دا | پس مونږ څهٔ ښهٔ

دَخپل قدرت په لاسونو جوړ کړے دے او مونږ دَلوئے قدرت خاوندان یُو۔ او زمکه مونږ غوړولے ده، نو څنګه ښهٔ په

الْمٰهِدُوْنَ ﴿٤٨﴾ وَمِنْ كُلِّ شَيْءٍ خَلَقْنَا زَوْجَيْنِ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُوْنَ ﴿٤٩﴾

غوړوونکی یُو | او له هر یو څیز نه | پیدا کړی دی مونږ | جوړے | دَپاره دَدے چه تاسو | غور وکړئ

غوړولو پوهیږو۔ او هر څیز مو جوړئ جوړئ جوړ کړے دے دَپاره دَدے چه تاسو نصیحت حاصل کړئ

فَفِرُّوْٓا اِلَى اللّٰهِ ؕ اِنِّيْ لَكُمْ مِّنْهُ نَذِيْرٌ مُّبِيْنٌ ﴿٥٠﴾ ج

نو وُتښتئ تاسو | الله طرف ته | بیشکه زهٔ | تاسو دَپاره | دَدهٔ له طرف نه | ویرونکے یم | ښکاره

پس تاسو هم دَ الله طرف ته ورمنډه کړئ، زهٔ تاسو دَپاره دَالله تعالیٰ دَ طرف نه څرګند ویرُونکے (راغلے) یم

وَلَا تَجْعَلُوْا مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا اٰخَرَ ؕ اِنِّيْ لَكُمْ مِّنْهُ نَذِيْرٌ

او مهٔ مقرروئ | دَ الله سره | معبود | بل | بیشکه زهٔ | تاسو دَپاره | دَدهٔ له طرف نه | ویرونکے یم

او (مهٔ گورئ) الله تعالیٰ سره بل څوک معبود مهٔ نیسئ۔ بیشکه زهٔ تاسو دَپاره دَدهٔ دَ طرف نه ښکاره ویرونکے

مُّبِيْنٌ ﴿٥١﴾ ج كَذٰلِكَ مَآ اَتَى الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ مِّنْ رَّسُوْلٍ اِلَّا قَالُوْا

ښکاره | دغه شان | نهٔ دے راغلے | هغه خلقو ته | چه له دوی نه وړاندِ وو | څوک پیغمبر | مګر دوی وویل

(راغلے) یم۔ دغه شان دَ دوئی نه مخکښے خلقو له چه کله هم یو رسول ورغلے دے نو هغوئ ورته

سَاحِرٌ اَوْ مَجْنُوْنٌ ﴿٥٢﴾ قف اَتَوَاصَوْا بِهٖ ج بَلْ هُمْ

چه دا جادوګر دے | یا دیوانه | آیا وصیت کړے دے دوی | دَدے؟ | (نا) بلکه | دوی

جادوګر یا لیونے وئیلے دے۔ آیا دوئی یو بل ته دَدے خبرے وصیت پریښودے دے؟ (نا) بلکه دغه خلق تول

قَوْمٌ طَاغُوْنَ ﴿٥٣﴾ ج فَتَوَلَّ عَنْهُمْ فَمَآ اَنْتَ بِمَلُوْمٍ ﴿٥٤﴾ ز وَّذَكِّرْ

خلق دی سرکشه | پس ته مخ واړوه | له دوی نه | پس نهٔ یئے ته | ملامت شوے | او ته نصیحت کوه

(یو شان) سرکشان وو۔ نو ته دَدوئی نه مخ واړوه ځکه چه په تا باندِ هیڅ الزام نشته۔ او ته دوئی ته نصیحت کوه

فَإِنَّ الذِّكْرَىٰ تَنفَعُ الْمُؤْمِنِينَ ﴿٥٥﴾ وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَالْإِنسَ

پس بیشکه | نصیحت | فائده ورکوی | مؤمنانو ته | او نهٔ دی پیدا کړی ما | پیریان | او انسانان

شکه چه نصیحت مؤمنانو ته (خامخا) فائده رسوی - او ما خو پیریان او بنیادم دے کار له پیدا کړی دی

إِلَّا لِيَعْبُدُونِ ﴿٥٦﴾ مَا أُرِيدُ مِنْهُم مِّن رِّزْقٍ وَمَا أُرِيدُ

مگر | د پاره د دے چه عبادت وکړی زما | نهٔ غواړم زهٔ | له دوی نه | هیڅ روزی | او زهٔ نهٔ غواړم

چه زما عبادت دِ کوی - زهٔ د دوی نه نهٔ خو روزی غواړم او نهٔ (تر دے نه) دا غواړم چه

أَن يُطْعِمُونِ ﴿٥٧﴾ إِنَّ اللَّهَ هُوَ الرَّزَّاقُ ذُو الْقُوَّةِ الْمَتِينُ ﴿٥٨﴾ فَإِنَّ

چه دوی طعام راکړی ما ته | بیشکه | الله | هم دے دے رزق ورکوونکے | د قوت خاوند | ډیر غالب | پس بیشکه

ما له دِ خوراکونه راکوی - بیشکه چه الله تعالیٰ د ټولو خلقو روزی رسان دے د طاقت خاوند دے مضبوط دے، پس د دے

لِلَّذِينَ ظَلَمُوا ذَنُوبًا مِّثْلَ ذَنُوبِ أَصْحَابِهِمْ فَلَا يَسْتَعْجِلُونِ ﴿٥٩﴾

هغه کسانو د پاره | چه ظالمان دی | حصه ده | په شان | د حصے | د ملگرو د دوی | نو پکار ده چه دوی تلندی ونهٔ کړی

ظالمانو هم (د عذاب) حصه مقرر ده لکه چه د دوی د ملگرو (له دے نه وړاندې) حصه مقرره وه نو اوس دِ دوی په ما تلوارنهٔ

فَوَيْلٌ لِّلَّذِينَ كَفَرُوا مِن يَوْمِهِمُ الَّذِي يُوعَدُونَ ﴿٦٠﴾

پس هلاکت دے | هغه کسانو د پاره | چه کافران دی | د دوی له هغه ورځے نه | د کومے چه | د دوی سره وعده کولے شی

کوی - پس کافرانو خلقو له د هغه ورځے په راتلو کښے ډیره تباهی ده د کومے چه ورسره وعده شوے ده

سُورَةُ الطُّورِ مَكِّيَّةٌ وَهِيَ تِسْعٌ وَّأَرْبَعُونَ آيَةً وَّفِيهَا رُكُوعَانِ

سورة طور په مکه کښے نازل شوا و په دے کښے ۴۹ آیتونه او دوه رکوع دی

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

شروع کوم په نوم د الله چه لوئے مهربان ډیر زیات رحم کوونکے دے

د الله په نوم شروع کوم چه لوئے مهربان د ډیر زیات رحم خاوند دے

وَالطُّورِ ﴿١﴾ وَكِتَابٍ مَّسْطُورٍ ﴿٢﴾ فِي رَقٍّ مَّنشُورٍ ﴿٣﴾ وَالْبَيْتِ

قسم دے په طور | او په یو کتاب | (چه) لیکلے شوے دے | په کاغذ | پرانستلے شوی کښے | او قسم دے په کور

په کوهِ طور باندِ قسم دے - او قسم دے په لیکلے شوی کتاب (چه) په غوړیدلی کاغذ کښے (دے) او قسم دے په

الْمَعْمُورِ ﴿٤﴾ وَالسَّقْفِ الْمَرْفُوعِ ﴿٥﴾ وَالْبَحْرِ الْمَسْجُورِ ﴿٦﴾ إِنَّ عَذَابَ

آباد باندِ | او قسم دے په چت | اُوچت کړے شوی | او قسم دے په دریاب | ډک کړے شوی | چه بیشکه عذاب

آباد کور - او (قسم دے) په اُوچت چت (یعنی آسمان) او (قسم دے) په ډک دریاب - یقیناً ستا د رب

رَبِّكَ لَوَاقِعٌ ﴿٧﴾ مَّا لَهُ مِن دَافِعٍ ﴿٨﴾ يَوْمَ تَمُورُ السَّمَاءُ

ستا د رب | خامخا واقع کیدونکے دے | نشته دے د دے | (څوک) دفع کوونکے | په کومه ورځ چه | حرکت به وکړی | آسمان

عذاب خامخا راتلونکے دے ۔ هیڅوک یے دفع کولے نهٔ شی - په هغه ورځ چه آسمان به ولړزیږی

مَوْرًا ﴿٩﴾ وَتَسِيرُ الْجِبَالُ سَيْرًا ﴿١٠﴾ فَوَيْلٌ يَوْمَئِذٍ

په حرکت کولو سره | او روان به شی | غرونه | په روانیدلو سره | پس هلاکت دے | په دغه ورځ

او غرونه به د خپل ځائے نه روان شی - نو په دغه ورځ به د دروغ گڼړونکو

وقف لازم

لِّلْمُكَذِّبِيْنَ ⑪ الَّذِيْنَ هُمْ فِيْ خَوْضٍ يَّلْعَبُوْنَ ⑫ يَوْمَ يُدَعُّوْنَ

دروغ گنړونکو دَپاره | کوم خلق چه | په فضولو خبرو کښې لګیادی | لوبې کوی. | په هغه ورځ چه | دوئ به وردېکلے شی

شامت راشی. څوک چه د(حق نه د) انکار په لوبه کښې لګیا دی فضول لوبې کوی. دا به هغه ورځ وی چه دوئ به به

اِلٰى نَارِ جَهَنَّمَ دَعًّا ⑬ هٰذِهِ النَّارُ الَّتِيْ كُنْتُمْ بِهَا تُكَذِّبُوْنَ ⑭

دَ دوزخ دَ اور طرف ته | په دیکلو سره | هم دادے | اور | هغه چه | تاسو به هغه | دروغ ګنړلو

دیکو دیکو دَ دوزخ اور ته وردېکلے شی. چه دا هغه دوزخ دے چه تاسو به دروغ ګنړلو.

اَفَسِحْرٌ هٰذَآ اَمْ اَنْتُمْ لَا تُبْصِرُوْنَ ⑮ اِصْلَوْهَا فَاصْبِرُوْٓا

پس ایا دا جادو دے؟ | یا | تاسو | نهٔ ګورئ؟ | داخل شئ تاسو دے ته | پس تاسو صبر کوئ

(اوس ووایئ) ایا دا هم جادو دے که نهٔ ستاسو نظر نهٔ لګی؟ اوس دے (دوزخ) کښې ورننوزئ، نو که تاسو په دے

اَوْ لَا تَصْبِرُوْا ۚ سَوَآءٌ عَلَيْكُمْ ۗ اِنَّمَا تُجْزَوْنَ مَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ⑯

یا صبر نهٔ کوئ | برابره ده | په تاسو | بیشکه | تاسو له به بدله درکولے شی | دَ هغه څهٔ چه تاسو به کول.

صبر کوئ او که بے صبری کوئ، دواړه درله برابر دی تاسو ته خو بس دَ هغې کارونو بدله درکولے شی چه تاسو پخپله کول

اِنَّ الْمُتَّقِيْنَ فِيْ جَنّٰتٍ وَّنَعِيْمٍ ⑰ فٰكِهِيْنَ بِمَآ اٰتٰىهُمْ

بیشکه | پرهیزګاران به | په باغونو کښې | او په نعمتونو کښې وی | خوشحاله به وی | په هغې چه | ورکړل دوی ته

بیشکه چه پرهیزګاران به په باغونو کښې او نعمتونو کښې اوسیږی. او دَ خپل رب په ورکړو به

رَبُّهُمْ ۚ وَوَقٰىهُمْ رَبُّهُمْ عَذَابَ الْجَحِيْمِ ⑱ كُلُوْا وَاشْرَبُوْا

رب دَ دوی | او بچ کړل دوی | رب دَ دوی | له عذاب | دَ دوزخ نه | خورئ | او څښئ

خوشحالیږی او خپل رب به ئے دَ دوزخ دَ عذاب نه بچ وساتی (ورته به وویلے شی چه) ښهٔ په مزه

هَنِيْٓـئًا بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ⑲ مُتَّكِـِٕيْنَ عَلٰى سُرُرٍ

په مزے سره | په بدل دَ هغه (عملونو) | چه تاسو به | کول | تکیه لګوونکی | په تختونو

خورئ څښئ دَ هغې (نیکو) کارونو په بدل کښې چه تاسو به کول. دَ دے به ئے وهلے وی په برابر برابر

مَّصْفُوْفَةٍ ۚ وَزَوَّجْنٰهُمْ بِحُوْرٍ عِيْنٍ ⑳ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا

برابر غوړیدلی | او واده به وکړو مونږ دَ دوئ | دَ غټو سترګو حورو سره | او کومو خلقو چه | ایمان راوړو

غوړیدلو تختونو او دَ غټو غټو سترګو حورے به مونږ دَ دوئ بیبیانے جوړے کړو او چا چه ایمان راوړے دے

وَاتَّبَعَتْهُمْ ذُرِّيَّتُهُمْ بِاِيْمَانٍ اَلْحَقْنَا بِهِمْ ذُرِّيَّتَهُمْ

او دَ دوئ پیروی وکړه | دَ دوئ اولاد | په ایمان کښې | مونږ به ملاو کړو (په جنت کښې) دوئ سره | اولاد دَ دوئ

او خپل اولاد ورسره په ایمان راوړو کښې ملګرتیا کړے ده نو مونږ به (په جنت کښې) دَ دوئ اولاد دَ دوئ سره یوځائے

وَمَآ اَلَتْنٰهُمْ مِّنْ عَمَلِهِمْ مِّنْ شَيْءٍ ۗ كُلُّ امْرِئٍ ۢ بِمَا كَسَبَ

او کم به نهٔ کړو مونږ | دَ دوئ له عمل نه | هیڅ څیز | هر یو کس به | دَ خپل عمل سره

کړو او مونږ به دَ دوئ په عملونو کښې هیڅ کمے ونهٔ کړو. هر یو کس به په خپل عمل کښې

رَهِيْنٌ ﴿٢١﴾ وَاَمْدَدْنٰهُمْ بِفَاكِهَةٍ وَّلَحْمٍ مِّمَّا يَشْتَهُوْنَ ﴿٢٢﴾

گیروی | او مونږ به رسوو دوئی ته | میوه | او غوښه | له هغه څه نه | چه دوئی ئې غواړی

گیروی - او مونږ به جنتیانو ته میوے، غوښه او څۀ چه ئې زړۀ غواړی ورکوو -

يَتَنَازَعُوْنَ فِيْهَا كَاْسًا لَّا لَغْوٌ فِيْهَا وَلَا تَاْثِيْمٌ ﴿٢٣﴾

نیولی به د یو بل نه | هلته | پیاله (د شرابو) | چه نۀ به وی فضول خبره هلته | او نۀ د گناه کار

(د شرابو) په جامونو به یو بل سره (د خوند د پاره) اتکته اچوی خو په هغې (شرابو) کښې به نۀ بکواس کیږی او نۀ د گناه څۀ

وَيَطُوْفُ عَلَيْهِمْ غِلْمَانٌ لَّهُمْ كَاَنَّهُمْ لُؤْلُؤٌ مَّكْنُوْنٌ ﴿٢٤﴾

او چارچاپیره به گرځی | دوی ته | هلکان | د دوئی (د خدمت) د پاره | لکه چه دوئی | ملغلرے دی | په پرده کښے پټے

او د دوئی نه چارچاپیره به هلکان د خدمت د پاره اوړی راوړی لکه د پټو ساتلے شوو ملغلرو په شان به وی۔

وَاَقْبَلَ بَعْضُهُمْ عَلٰى بَعْضٍ يَّتَسَآءَلُوْنَ ﴿٢٥﴾ قَالُوْٓا اِنَّا كُنَّا

او را مخامخ به شی | ځنے د دوی | په ځنو باندے | چه له یو بل نه به پوښتنه کوی | دوی به وائی | بیشکه مونږ وو

او یو بل ته به مخ کړی او خبرے اترے به کوی، او دا به (هم) وائی چه مونږ به

قَبْلُ فِىْٓ اَهْلِنَا مُشْفِقِيْنَ ﴿٢٦﴾ فَمَنَّ اللّٰهُ عَلَيْنَا وَوَقٰىنَا

له دے نه وړاندے | په خپل کور والو کښے | ویریدونکی | پس احسان وکړو | الله | په مونږ باندے | او بچ ئې کړو مونږ

مخوا په خپلو کورونو کښے ډیر ډیر ویریدو۔ نو الله تعالیٰ را باندے ډیر احسان وکړو او مونږ ئې د دوزخ

عَذَابَ السَّمُوْمِ ﴿٢٧﴾ اِنَّا كُنَّا مِنْ قَبْلُ نَدْعُوْهُ ؕ اِنَّهٗ هُوَ الْبَرُّ

له عذاب نه | د گرمے هوا | بیشکه مونږ | له دے نه وړاندے | عبادت به کولو د ده | بیشکه ده دے | احسان کوونکے

د عذاب نه بچ کړو۔ بیشکه مونږ به له دے نه وړاندے د الله تعالیٰ نه دُعا گانے غوښتلے بیشکه دے ډیر احسان کوونکے

الرَّحِيْمُ ﴿٢٨﴾ فَذَكِّرْ فَمَآ اَنْتَ بِنِعْمَتِ رَبِّكَ بِكَاهِنٍ

مهربان | پس ته نصیحت کوه | پس نه ئې ته | په فضل | د رب خپل | کاهن

مهربان دے۔ نو (اے نبی!) دا خلق پوهوه، ته د خپل رب په فضل سره نۀ خو کاهن یئے

وَّلَا مَجْنُوْنٍ ﴿٢٩﴾ اَمْ يَقُوْلُوْنَ شَاعِرٌ نَّتَرَبَّصُ بِهٖ رَيْبَ

او نۀ لیونے | آیا دوئی وائی | دے شاعر دے | انتظار کوو مونږ | په ده | د حوادثو

او نۀ لیونے۔ آیا دوئی څۀ وائی چه دا شاعر دے (او) مونږ د ده په حقله د زمانے د حادثاتو

الْمَنُوْنِ ﴿٣٠﴾ قُلْ تَرَبَّصُوْا فَاِنِّىْ مَعَكُمْ مِّنَ الْمُتَرَبِّصِيْنَ ﴿٣١﴾ؕ

د زمانے | ووایه | تاسو انتظار کوئ | بیشکه زۀ (هم) | تاسو سره | له انتظار کوونکو نه یم۔

انتظار کوو۔ ته ورته ووایه چه تاسو هم انتظار کوئ او زۀ هم تاسو سره انتظار کوم۔

اَمْ تَاْمُرُهُمْ اَحْلَامُهُمْ بِهٰذَآ اَمْ هُمْ قَوْمٌ طَاغُوْنَ ﴿٣٢﴾ۚ اَمْ يَقُوْلُوْنَ

آیا حکم کوی دوی ته | عقلونه د دوئی | د دے (خبرے) | یا دوی خلق دی | سرکشه؟ | آیا دوی وائی

آیا د دوئی عقلونه دوئی ته هم دا ښائی یا دا خلق سرکشه دی؟ آیا دوئی وائی

تَقَوَّلَهٗ ۚ بَلْ لَّا يُؤْمِنُوْنَ ﴿٣٣﴾ فَلْيَاْتُوْا بِحَدِيْثٍ مِّثْلِهٖٓ اِنْ كَانُوْا

آیا دۀ په خپله جوړ کړے دے دا | (نه) بلکه | دوئ ایمان نه راوړی | پس دوئ دې راوړی | (څه) کلام | په شان د دے | که چرے وی دوی

چه دۀ (قرآن) د ځان نه جوړ کړے دے حقیقت دا دے چه دوئ هیڅ ایمان نه لری۔ بیا دا خلق د هم داسے کلام (جوړ کړی او) راوړی که دوئ

صٰدِقِيْنَ ﴿٣٤﴾ اَمْ خُلِقُوْا مِنْ غَيْرِ شَيْءٍ اَمْ هُمُ الْخٰلِقُوْنَ ﴿٣٥﴾

رښتینی | آیا | پیدا کړے شوی دوی | بے د پیدا کوونکی نه | یا دوی | پخپله پیدا کوونکی دی

(په خپله دعوی کښے) رښتینی وی، آیا دوئ بغیر د پیدا کوونکی نه پخپله پیدا شوی دی او که دوئ پخپله د ځانونو خالقان دی؟

اَمْ خَلَقُوا السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ ۚ بَلْ لَّا يُوْقِنُوْنَ ﴿٣٦﴾ اَمْ عِنْدَهُمْ

یا پیدا کړی دی دوی | آسمانونه | او زمکه | (نه) بلکه | دوی یقین نه کوی | آیا | دوی سره دی

آیا (دا) آسمانونه او زمکه دوئ پیدا کړی دی؟ خبره دا ده چه دوئ بے یقینه خلق دی۔ آیا دوئ سره ستا

خَزَآئِنُ رَبِّكَ اَمْ هُمُ الْمُصَۜيْطِرُوْنَ ﴿٣٧﴾ اَمْ لَهُمْ سُلَّمٌ

خزانے | د رب ستا | یا دوی دی | داروغه ګان | آیا دوی سره | اندرپایه ده

د رب خزانے دی کۀ نه دوئ حاکمان دی؟ یا دوئ سره داسے اندرپایه ده چه په هغے

يَّسْتَمِعُوْنَ فِيْهِ ۚ فَلْيَاْتِ مُسْتَمِعُهُمْ بِسُلْطٰنٍ مُّبِيْنٍ ﴿٣٨﴾ اَمْ

چه اوری دوئ په هغے (ختلو سره) | نو را دې وړی | اورېدونکے د دوی | (څۀ) دلیل | ښکاره | آیا

(بره خیژی او) خبرے اوری؟ (کۀ داسے وی) نو چا چه آورېدن نه کړی وی هغه دې یو څرګند دلیل را محکښے کړی (له دوئ نه

لَهُ الْبَنٰتُ وَلَكُمُ الْبَنُوْنَ ﴿٣٩﴾ اَمْ تَسْـَٔلُهُمْ اَجْرًا فَهُمْ

دۀ د پاره | لونړه دی | او تاسو د پاره | ځامن؟ | آیا | ته سوال کوے له دوی نه | د څۀ اجر | پس دوئ

تپوس وکړه) آیا د الله تعالیٰ خو لونړه دی او ستاسو ځامن؟ یا آیا ته له دوئ نه څۀ بدله غواړے چه دا خلق

مِّنْ مَّغْرَمٍ مُّثْقَلُوْنَ ﴿٤٠﴾ اَمْ عِنْدَهُمُ الْغَيْبُ فَهُمْ يَكْتُبُوْنَ ﴿٤١﴾

له تاوان نه | درانۀ شوی دی | یا دوئ سره | (علم د) غیبو دے | چه دوی (دا) | لیکی۔

د هغے تاوان د پنهلانړ درانۀ شوی دی؟ آیا دوئ سره د غیبو څۀ علم شته چه دوئ هغه لیکی؟

اَمْ يُرِيْدُوْنَ كَيْدًا ۗ فَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا هُمُ الْمَكِيْدُوْنَ ﴿٤٢﴾ اَمْ لَهُمْ

آیا دوئ غواړی | څۀ بد تدبیر | پس کوم خلق چه | کافران دی | هم دوئ | په بد تدبیر کښے راګیرېدونکی دی | یا د دوئ

آیا دوئ (ناته) چل جوړ کړے دے؟ نو کافران به په خپل چل کښے پخپله راګیر شی۔ آیا د الله تعالیٰ نه

اِلٰهٌ غَيْرُ اللّٰهِ ۗ سُبْحٰنَ اللّٰهِ عَمَّا يُشْرِكُوْنَ ﴿٤٣﴾ وَاِنْ يَّرَوْا

(څوک) معبود دے | سیوا د الله نه | پاک دے | الله | له هغه څۀ نه | چه دوی ئے شریکوی | او که چرے | دوی ووینی

سیوا د دوئ بل څوک معبود شته؟ الله تعالیٰ د دوئ د جوړ کړو شریکانو نه پاک دے۔ او که چرے دوئ د آسمان

كِسْفًا مِّنَ السَّمَآءِ سَاقِطًا يَّقُوْلُوْا سَحَابٌ مَّرْكُوْمٌ ﴿٤٤﴾ فَذَرْهُمْ

یوه ټکړه | له آسمان نه | راپرېوتونکے | نو دوی به ووائی | (چه) وریځ ده | قط په قط | پس پرېږده دوی

یوه ټوټه راپرېوتونکے ووینی، نو هغه وخت به هم ووائی چه دا خو قط په قط جوړه وریځ ده، نو دوئ

حَتّٰى يُلٰقُوْا يَوْمَهُمُ الَّذِيْ فِيْهِ يُصْعَقُوْنَ ﴿۴۵﴾ يَوْمَ لَا يُغْنِيْ

تر دې چه | دوی ملاقات وکړی | خپلې هغې ورځې سره | چه په هغې کښې به | دوی بې هوشه کړې شی | په کومه ورځ چه به | په کار رانه شی

تر هغې پرېږده چه هغه ورځ وړاندې راشی چه هوش به ئې والوزی۔ هغه ورځ چه د دوئ ټول

عَنْهُمْ كَيْدُهُمْ شَيْـًٔا وَّلَا هُمْ يُنْصَرُوْنَ ﴿۴۶﴾ وَاِنَّ لِلَّذِيْنَ ظَلَمُوْا

د دوئ | مکر د دوئ | هیڅ هم | او نه به د دوئ | مدد وکړے شی | او بیشکه | د هغو خلقو د پاره | چه ظلم ئې وکړو

تدا بیرونه به هیڅ په کار نهٔ راځی او نهٔ به (د چرته نه) مدد بیا مومی۔ او په ظالمانو خو د دغې ورځې نه وړاندې

عَذَابًا دُوْنَ ذٰلِكَ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿۴۷﴾ وَاصْبِرْ لِحُكْمِ

عذاب دے | د دې نه علاوه | او لیکن | اکثر له دوی نه | نهٔ پوهیږی | او صبر کوه | په حکم

هم یو عذاب راتلونکے دے خو په دوئ کښې اکثر کسان نهٔ پوهیږی۔ او تهٔ د خپل رب حکم ته

رَبِّكَ فَاِنَّكَ بِاَعْيُنِنَا وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ حِيْنَ تَقُوْمُ ﴿۴۸﴾

د رب خپل | پس بیشکه تهٔ | زمونږ د سترګو په وړاندې یې | او تسبیح کوه | د ستائنې سره | د رب خپل | کوم وخت چه پاسیږې ته

په انتظار او سیږه ځکه چه زمونږ په تا نظر دے او د خپل رب حمد او تسبیح وایه څهٔ وخت چه تهٔ پاسځې۔

وَمِنَ الَّيْلِ فَسَبِّحْهُ وَاِدْبَارَ النُّجُوْمِ ﴿۴۹﴾

او په شپه کښې (هم) | پس د دهٔ پاکی بیانوه | او د وروستو د غائب کیدلو د ستورو نه

او د شپې په څهٔ حصه کښې د هغهٔ تسبیح لوله او د ستورو (د ډوبیدو) نه پس هم.

سُوْرَةُ النَّجْمِ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ اثْنَتَانِ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | وَّسِتُّوْنَ اٰيَةً وَّثَلٰثُ رُكُوْعَاتٍ

سورهٔ نجم په مکه کښې نازل شوا وپه | شروع کوم په نامه د الله چه ډیر مهربان ډیر زیات رحم کوونکے دے | دے کښې ۶۲ آیتونه او ۳ رکوع دی

د الله په نامه شروع کوم چه لوئے مهربان د ډیر زیات رحم خاوند دے

وَالنَّجْمِ اِذَا هَوٰى ﴿۱﴾ مَا ضَلَّ صَاحِبُكُمْ وَمَا غَوٰى ﴿۲﴾ وَمَا يَنْطِقُ

قسم دے په ستوری | هر کله چه | ښکته پریوځی | بې لارې نهٔ شو | ملګرے ستاسو | او نهٔ ئې غلطه کړې ده لار | او دے خبرې نهٔ کوی

قسم دے په ستوری څهٔ وخت چه ډوبیږی۔ چه ستاسو ملګرے (رسول) نهٔ بې لارې شوے دے او نهٔ په غلطه لار روان دے۔ او هغه د خپل

عَنِ الْهَوٰى ﴿۳﴾ اِنْ هُوَ اِلَّا وَحْيٌ يُّوْحٰى ﴿۴﴾ عَلَّمَهٗ شَدِيْدُ الْقُوٰى ﴿۵﴾

له خواهش د نفس نه | نهٔ دی دا څهٔ نور | مګر وحی | چه نازلولے شی | ښودلے ده دهٔ ته | (جبرائیل) د ډیرو قوتونو خاوند

ځان نه خبرې نهٔ جوړوی، د هغهٔ خو هره خبره یوه وحی ده چه ورته لیږلے شوې ده هغهٔ ته یوه طاقتوره (فرښته) ښودنه کوی

ذُوْ مِرَّةٍ فَاسْتَوٰى ﴿۶﴾ وَهُوَ بِالْاُفُقِ الْاَعْلٰى ﴿۷﴾ ثُمَّ دَنَا

چه ډیر طاقتور دے | بیا هغه قائم شو (په اصلی صورت کښې) | او هغه | په کناره | اوچته (د آسمان) وو | بیا نزدے شو

چه ډیره زور اوره ده۔ نو هغه په خپل اصلی شکل کښې ښکاره شوه په دې حال کښې چه د افق په اوچته غاړه ولاړه وه بیا رانزدے

فَتَدَلّٰى ﴿۸﴾ فَكَانَ قَابَ قَوْسَيْنِ اَوْ اَدْنٰى ﴿۹﴾ فَاَوْحٰٓى اِلٰى عَبْدِهٖ

او ښکته راغے | بیا شو | په اندازه | د دوؤ کمانونو | یا له دې نه هم کم | نو دهٔ وحی وکړه | د خپل بنده طرف ته

شوه ډیره رانژدې شوه نو د دوؤ لیندو هومره فاصله ترمینځه پاتے شوه یا د دې نه څهٔ کمه نو الله تعالیٰ خپل بنده ته وحی وکړه

مَآ اَوْحٰى ۝۱۰ مَا كَذَبَ الْفُؤَادُ مَا رَاٰى ۝۱۱ اَفَتُمٰرُوْنَهٗ عَلٰى مَا

څهٔ چه | دهٔ وحی وُکړه | نهٔ دی دروغ وئیلی | زړهٔ | څهٔ چه ئے وُلیدل | نو آیا جګړه کوئ دهٔ سره | په هغه څهٔ کښے

څهٔ چه ئے وُکړل، دَ هغهٔ زړهٔ په خپل لیدلی کښلی څیز کښے هیڅ غلطی نهٔ ده کړے نو آیا تاسو ورسره په هغه څیز کښے جګړه

يَرٰى ۝۱۲ وَلَقَدْ رَاٰهُ نَزْلَةً اُخْرٰى ۝۱۳ عِنْدَ سِدْرَةِ الْمُنْتَهٰى ۝۱۴

چه دے ئے وینی | او بیشکه | دهٔ لیدلے وو دغه | یو ځل بل (هم) | سره | دَ بیرے | دَ آخری حد

کوئ چه هغهٔ په خپلو سترګو لیدلے دے او هغهٔ دغه (فرښته) یو ځل بل هم لیدلے ده (یعنی) دَ سدرة المنتهٰی په خوا کښے

عِنْدَهَا جَنَّةُ الْمَاْوٰى ۝۱۵ اِذْ يَغْشَى السِّدْرَةَ مَا يَغْشٰى ۝۱۶ مَا زَاغَ

چه دے سره دے | جنت الماوٰی | هر کله چه خوریدو | په بیره باندِ | هغه چه خوریدو (نور) | نهٔ کږ ے شوے

چه دَ هغے په خوا کښے جنت الماوٰی دے. څهٔ وخت چه په سدره باندِ راغوړیدل څهٔ چه راغوړیدل، نهٔ خو دهغهٔ نظر

الْبَصَرُ وَمَا طَغٰى ۝۱۷ لَقَدْ رَاٰى مِنْ اٰيٰتِ رَبِّهِ الْكُبْرٰى ۝۱۸

سترګے | او نهٔ دَ حد نه تیروتے | بیشکه | دهٔ وُلیدلے | نخښے | دَ رب خپل | غټے غټے

بل خوا کوږ شوے وو او نهٔ د وکه شوے وو. هغهٔ دَ خپل رب (دَ قدرتونو) ډیرے غټے غټے نخښے وُلیدلے.

اَفَرَءَيْتُمُ اللّٰتَ وَالْعُزّٰى ۝۱۹ وَمَنٰوةَ الثَّالِثَةَ الْاُخْرٰى ۝۲۰ اَلَكُمُ الذَّكَرُ

آیا کتلی دی تاسو | لات | او عزٰی | او منات ته | چه دریم دے | دَ دوئ نه علاوه | آیا تاسو دَ پاره هلکان دی

آیا تاسو چرے دَ لات او دَ عزٰی په حالت باندِ غور کړے دے؟ او دریم دَ منات په حالت. آیا ستاسو خو ځامن

وَلَهُ الْاُنْثٰى ۝۲۱ تِلْكَ اِذًا قِسْمَةٌ ضِيْزٰى ۝۲۲ اِنْ هِيَ اِلَّآ

او دهٔ دَ پاره | جینکئ دی؟ | داخو | په دے وخت | تقسیم دے | ظالمانه | نهٔ دی دا | مګر

وُرسیدل او دَ الله لونړه؟ دا خو ډیر بے جوړه غوندِ تقسیم دے. دا خو تش نومونه قدرله

اَسْمَآءٌ سَمَّيْتُمُوْهَآ اَنْتُمْ وَاٰبَآؤُكُمْ مَّآ اَنْزَلَ اللّٰهُ بِهَا

نامے دی | چه ایښودی دی دا نامے تاسو | او پلارانو ستاسو | نهٔ دے نازل کړے الله | د دے

دی چه پخپله تاسو او ستاسو نیکونو ایښی دی، الله تعالیٰ په دے څیزونو هیڅ دلیل

مِنْ سُلْطٰنٍ ۭ اِنْ يَّتَّبِعُوْنَ اِلَّا الظَّنَّ وَمَا تَهْوَى الْاَنْفُسُ ۚ وَلَقَدْ

(څهٔ) دلیل | دوئ پیروی نهٔ کوی | مګر | دَ ګمان | او دَ هغه څهٔ چه غواړی ئے نفس | او بیشکه

نهٔ دے رالیږلے. دا خلق (اوس هم) صرف په ګمان او دَ خپل نفس په خواهشونو پسے روان دی، سره دَ دے

جَآءَهُمْ مِّنْ رَّبِّهِمُ الْهُدٰى ۝۲۳ اَمْ لِلْاِنْسَانِ مَا تَمَنّٰى ۝۲۴ زصلے

راغلے دے دوئ ته | دَ دوئ دَ رب له طرف نه | هدایت | آیا | انسان دَ پاره دی | هغه څهٔ چه دے ئے آرزو کوی

چه دَ خپل رب دَ طرف نه ورته هدایت رارسیدلے دے، آیا دَ بنیادمو هره یوه تمنا پوره کیږی؟

فَلِلّٰهِ الْاٰخِرَةُ وَالْاُوْلٰى ۝۲۵ ع وَكَمْ مِّنْ مَّلَكٍ فِى السَّمٰوٰتِ

پس الله دَ پاره دے | آخرت هم | او دُنیا هم | او ډومره | فرښتے دی | په آسمانونو کښے

(نه بلکه هره تمنا) الله تعالیٰ سره ده دَ آخرت هم او دَ دنیا هم. او په آسمانونو کښے ډیرے فرښتے دی چه

ع ۲۵ ۵

لَا تُغْنِىْ شَفَاعَتُهُمْ شَيْـًٔا اِلَّا مِنْۢ بَعْدِ اَنْ يَّاْذَنَ اللّٰهُ لِمَنْ

چه په کار به رانهٔ شی | سفارش دَ دوی | هیڅ هم | مګر | پس له دے نه | چه | حکم به ورکړی | الله | دَ پاره دَ هغه چا

دَ هغوئی سفارش هیڅ په کار راتلے نهٔ شی، سِوا دَ دِے نه چه الله تعالیٰ چاله اجازت ورکړی او د

يَّشَآءُ وَيَرْضٰى ﴿۲۶﴾ اِنَّ الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ لَيُسَمُّوْنَ

چه دے ئے وغواړی | او خوښه ئے شی | بیشکه | کوم خلق چه | ایمان نهٔ راوړی | په آخرت باندِ | دوئی نامے ږدی

هغهٔ رضا وی ـ بیشکه خوک چه آخرت نهٔ منی هغوئی په فرښتو

الْمَلٰٓئِكَةَ تَسْمِيَةَ الْاُنْثٰى ﴿۲۷﴾ وَمَا لَهُمْ بِهٖ مِنْ عِلْمٍ ؕ اِنْ يَّتَّبِعُوْنَ

دَ فرښتو | په نامو | دَ ښځو | او نشته دوئی ته | دَ دے | (څهٔ) علم | دوئی پیروی نهٔ کوی

دَ زنانوٴ نومونه ږدی ـ حال دا دے چه دغے خلقو ته دَ دِے خبرے هیڅ علم نشته، دوئی خو بس په

اِلَّا الظَّنَّ ۚ وَاِنَّ الظَّنَّ لَا يُغْنِىْ مِنَ الْحَقِّ شَيْـًٔا ﴿۲۸﴾ ۚ فَاَعْرِضْ

مګر دَ وهم | او بیشکه | وهم | په کار به نهٔ راځی | دَ حق په مخکښے | هیڅ هم | پس مخ واړوه

وهم او ګمان پسے روان دی او ګمان دَ حق په مقابله کښے هیڅ کار نهٔ ورکوی ، نو ته دَ هغه چا پروا مهٔ

عَنْ مَّنْ تَوَلّٰى ۙ عَنْ ذِكْرِنَا وَلَمْ يُرِدْ اِلَّا الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا ﴿۲۹﴾ ؕ ذٰلِكَ

له هغه چانه | چه مخ واړوی | زمونږ له ذکرنه | او وُنهٔ غواړی | سِوا | دَ ژوند دَ دُنیا نه | دا دَه

سانه چه زمونږ دَ نصیحت نه بے پروا شوے دے او دَ دنیا دَ ژوند تیرولو نه بغیر بل هیڅ مقصد نهٔ لری. دَ دغے خلقو

مَبْلَغُهُمْ مِّنَ الْعِلْمِ ؕ اِنَّ رَبَّكَ هُوَ اَعْلَمُ بِمَنْ ضَلَّ عَنْ سَبِيْلِهٖ ۙ

رسائی دَ دوئی | دَ علم | بیشکه ستا رب | ښهٔ پوهیږی | په هغه چا | چه بے لارے شو | دَ لارے دَ دهٔ نه

پوهے آخری حد بس دغه هومره دے ـ ستا رب ډیر ښهٔ پوهیږی چه څوک دَ دهٔ دَ لارے نه بے لارے شوے دے

وَهُوَ اَعْلَمُ بِمَنِ اهْتَدٰى ﴿۳۰﴾ وَلِلّٰهِ مَا فِى السَّمٰوٰتِ وَمَا

او هم دے | ښهٔ پوهه دے | په هغه چا | چه لارے ئے موندله | او هم دَ الله دی | څهٔ چه | په آسمانونو کښے دی | او څهٔ چه

او هغه په دے هم ښهٔ پوهیږی چه څوک په سمه لاره روان دے. او په آسمانونو او په زمکه کښے هر څهٔ چه موجود دی هغه ټول

فِى الْاَرْضِ ۙ لِيَجْزِىَ الَّذِيْنَ اَسَآءُوْا بِمَا عَمِلُوْا وَيَجْزِىَ

په زمکه کښے دی | چه دے جزا ورکړی | هغه خلقو ته | چه بدی ئے وکړه | دَ دوئی دَ عملونو په بدله کښے | او جزا ورکړی

دَ الله تعالیٰ دی ـ آخر دا چه هغه به بدانو له دَ بد عمل سزا ورکړی ، او نیکانو له به

الَّذِيْنَ اَحْسَنُوْا بِالْحُسْنٰى ﴿۳۱﴾ ۚ اَلَّذِيْنَ يَجْتَنِبُوْنَ كَبٰٓئِرَ الْاِثْمِ

هغه کسانو ته | چه نیکی ئے وکړه | په ښهٔ خصلت | کوم خلق چه | ځان ساتی | له لویو | ګناهونو نه

دَ نیک عمل نیکه بدله ورکړی دا (نیکان) هغه کسان دی چه دَ لویو لویو ګناهونو او د

وَالْفَوَاحِشَ اِلَّا اللَّمَمَ ؕ اِنَّ رَبَّكَ وَاسِعُ الْمَغْفِرَةِ ؕ هُوَ اَعْلَمُ

او له بے حیائی نه | سِوا | له وړو ګناهونو نه | بیشکه ستا رب | فراخه | بخښونکے دے | هم دے ښهٔ پوهه دے

بے شرمئ دَ کارونو نه ځان بچ ساتی سِوا دَ وړو ګناهونو ـ ستا رب دَ ډیرے فراخے بخښنے خاوند دے ـ هغهٔ ته ستاسو

بِكُمْ اِذْ اَنْشَاَكُمْ مِّنَ الْاَرْضِ وَاِذْ اَنْتُمْ اَجِنَّةٌ فِیْ بُطُوْنِ

پہ تاسو | هر کله چه | دهٔ پیدا کړی وئ تاسو | له زمکے نه | او هر کله چه وئ تاسو | بچی | په ګیډو کښے

حال د ہر یو معلوم دے څهٔ وخت چه تاسو ئے د زمکے نه راپیدا کړی وئ ، او څهٔ وخت چه تاسو د میندو په ګیډو کښے بچی

اُمَّهٰتِكُمْ ۚ فَلَا تُزَكُّوْۤا اَنْفُسَكُمْ ؕ هُوَ اَعْلَمُ بِمَنِ اتَّقٰى ﴿۳۲﴾

د میندو خپلو | پس پاک مهٔ ګڼړئ | خپل ځانونه | هم دے | ښهٔ پوهه دے | په هغه چا چه | پرهیزګاری ئے وکړه

وئ پس خپل ځان ډیر پاکیزه مهٔ ګڼړئ ، الله تعالیٰ پرهیزګار خلق ډیر ښهٔ پیژنی.

اَفَرَءَیْتَ الَّذِیْ تَوَلّٰى ﴿۳۳﴾ وَاَعْطٰى قَلِیْلًا وَّ اَكْدٰى ﴿۳۴﴾ اَعِنْدَهٗ

آیا تا کتلی دی | هغه چا نه چه | مخ ئے واړولو | او ورئے کړو | لږ (مال) | او | بند ئے کړو | آیا دهٔ سره

آیا تا هغه سړے لیدلے دے کوم چه مخ واړولو او لږ غوندے (مال) ئے ورکړو او (بیائے) لاس راښکلو آیا دهٔ سره د

عِلْمُ الْغَیْبِ فَهُوَ یَرٰى ﴿۳۵﴾ اَمْ لَمْ یُنَبَّاْ بِمَا فِیْ صُحُفِ مُوْسٰى ﴿۳۶﴾

علم غیب دے | چه دے ئے | ګوری | آیا دهٔ ته خبر نهٔ دے رسیدلے | د هغه (خبرو) | چه دی په صحیفو کښے | د موسیٰ

غیبو علم دے چه (هر څهٔ) وینی ګوری ۔ آیا دهٔ ته د هغه مضمون خبر نهٔ دے رارسیدلے چه د موسیٰ په صحیفو کښے دو؟

وَاِبْرٰهِیْمَ الَّذِیْ وَفّٰۤى ﴿۳۷﴾ اَلَّا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِّزْرَ اُخْرٰى ﴿۳۸﴾

او د ابراهیمؑ | چا چه | پوره کړه (خپله وعدهٔ) | چه نهٔ به اوچتوی | څوک پیټے اوچتونکے | پیټے | د بل چا

او د ابراهیمؑ د صحیفو چه قول حکمونه ئے په ځائے کړل ، دا چه هیڅ یو بار وړونکے به د بل چا بار اوچتولے نهٔ شی۔

وَاَنْ لَّیْسَ لِلْاِنْسَانِ اِلَّا مَا سَعٰى ﴿۳۹﴾ وَاَنَّ سَعْیَهٗ سَوْفَ یُرٰى ﴿۴۰﴾

او چه نشته | انسان د پاره | مګر | هغه څهٔ چه دهٔ ئے کوشش وکړو | او چه | کوشش د دهٔ به | ډیر زر | کتلے شی

او دا چه هر انسان ته هم هغه ملاویږی د کوم چه هغه کوشش کوی او دا چه د انسان کوشش به ډیر زر ولیدلے شی۔

ثُمَّ یُجْزٰىهُ الْجَزَآءَ الْاَوْفٰى ﴿۴۱﴾ وَاَنَّ اِلٰى رَبِّكَ الْمُنْتَهٰى ﴿۴۲﴾

بیا به | جزا ورکړے شی دهٔ ته | جزا | پوره | او دا چه | ستا د رب طرف ته | (د ټولو) رسیدل دی

بیا به ورته پوره پوره بدله ورکړے شی او دا چه (ټولو له) ستا د رب طرف ته رسیدل دی۔

وَاَنَّهٗ هُوَ اَضْحَكَ وَاَبْكٰى ﴿۴۳﴾ وَاَنَّهٗ هُوَ اَمَاتَ وَاَحْیَا ﴿۴۴﴾ وَاَنَّهٗ خَلَقَ

او دا چه هم دے | خندوی | اوژړوی | او دا چه هم دے | وژل کوی | او ژوندی کول کوی | او دا چه هم دهٔ | پیدا کړه

او دا چه هغه خندول او ژړول کوی ، او دا چه هغه وژل او ژوندی کول کوی ، او دا چه د نر

الزَّوْجَیْنِ الذَّكَرَ وَالْاُنْثٰى ﴿۴۵﴾ مِنْ نُّطْفَةٍ اِذَا تُمْنٰى ﴿۴۶﴾ وَاَنَّ

جوړه | د نر | او د مادے | له یوے نطفے نه | هر کله چه | واچولے شی (په رحم کښے) | او دا چه

او د مادے جوړهٔ هغهٔ پیدا کړی دی ، د نطفے نه څهٔ وخت چه (په رحم کښے) تویه کړے شی ، او دا چه

عَلَیْهِ النَّشْاَةَ الْاُخْرٰى ﴿۴۷﴾ وَاَنَّهٗ هُوَ اَغْنٰى وَاَقْنٰى ﴿۴۸﴾ وَاَنَّهٗ هُوَ

هم د دهٔ په ذمه دی | پیدا کول | بل | او دا چه هم دے | غنی کوی | او سرمایه ورکوی | او دا چه هم دے

سر دوباره پیدا او ښتا هم د هغهٔ ذمه واری ده او دا چه هم هغه غنی کوی او هم هغه دولت ورکوی او دا چه هم هغه

رَبُّ الشِّعْرٰى ﴿٤٩﴾ وَاَنَّهٗٓ اَهْلَكَ عَادَا ۨ الْاُوْلٰى ﴿٥٠﴾ وَثَمُوْدَاۡ

رب | دَ شعرٰی (ستوری) | او چه هم دهٔ | هلاک کړو | عاد | وړومبنی | او ثمود

دَ شعرٰی (ستوری) رب دے او دا چه هغهٔ اولنی عادیان ــــ هم تباه کړی دی او ثمودیان هم چه هیڅوک ئے

فَمَآ اَبْقٰى ﴿٥١﴾ وَقَوْمَ نُوْحٍ مِّنْ قَبْلُ ؕ اِنَّهُمْ كَانُوْا هُمْ اَظْلَمَ

پس باقی ئے پرے نهٔ ښودلو | او قوم دَ نوح | له دے نه وړاندې | بیشکه دوی | ؤو | دوی | زیات ظالمان

(ترے نه) باقی پریښودی نهٔ دی او دَ دوئی نه وړاندې دَ نوح قوم (ئے هم هلاک کړے دے)، ځکه چه هغوئی ډیر ظالمان

وَاَطْغٰى ﴿٥٢﴾ وَالْمُؤْتَفِكَةَ اَهْوٰى ﴿٥٣﴾ فَغَشّٰىهَا مَا غَشّٰى ﴿٥٤﴾ فَبِاَيِّ

او زیات سرکشه | او اُلټه کیدونکی کلی ئے | را وُغورزول | پس پټ ئے کړل | هغه څهٔ چه پټ ئے کړل | پس په کوم کوم

او سرکشه وو او (دغه) اوړیدلی کلی هم هغهٔ (په بل ځای) اړولی وو نو دِ هغې کلونه راتاؤ شو څهٔ چه ترې نه راتاو شو، نو ته په دَ

اٰلَآءِ رَبِّكَ تَتَمَارٰى ﴿٥٥﴾ هٰذَا نَذِيْرٌ مِّنَ النُّذُرِ الْاُوْلٰى ﴿٥٦﴾

نعمت کښے | دَ خپل رب به | تهٔ شک کوے | دا | یو ویرونکے دے | له وړومبنو ویرونکو نه

خپل رب په کوم کوم نعمت کښے شک کوے؟ دا (پیغمبر) هم دَ پخوانو ویرونکو غوندې یو ویرونکے دے۔

اَزِفَتِ الْاٰزِفَةُ ﴿٥٧﴾ لَيْسَ لَهَا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ كَاشِفَةٌ ﴿٥٨﴾

نزدے راغے | نزدے راتلونکے | نشته | دَ دے | سوا | دَ الله نه | لرے کونکے۔

هغه (دَ قیامت) راتلونکے (ساعت) راؤرسیدو، دَ الله تعالیٰ نه بغیر دا بل څوک دفع کولے نهٔ شی۔

اَفَمِنْ هٰذَا الْحَدِيْثِ تَعْجَبُوْنَ ﴿٥٩﴾ وَتَضْحَكُوْنَ وَلَا تَبْكُوْنَ ﴿٦٠﴾

پس آیا له دے خبرے نه | تاسو تعجب کوئی؟ | او تاسو خاندئ | او تاسو ژاړئ نه

آیا تاسو دَ دے کلام په حقله تعجب کوئ ــــ؟ او خندا کانے ورپورے کوئ ــــ او ژړا کانے نهٔ کوئ

وَاَنْتُمْ سٰمِدُوْنَ ﴿٦١﴾ فَاسْجُدُوْا لِلّٰهِ وَاعْبُدُوْا ﴿٦٢﴾ السجدة

او تاسو | غافله یئی | پس تاسو سجده کوئ | الله ته | او عبادت کوئ۔

او تاسو غافلان یئ۔ خدائے ته سجدے لګوی، او دَ هغهٔ عبادت کوئ۔

سُوْرَةُ الْقَمَرِ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ خَمْسٌ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | وَّخَمْسُوْنَ اٰيَةً وَّثَلٰثُ رُكُوْعَاتٍ

سورہ قمر په مکه کښے نازل شوا و | شروع کوم دَ الله په نوم چه لوئے مهربان ډیر زیات رحم کوونکے دے | په دے کښے ۵۵ آیتونه او ۳ رکوع دی

دَ الله په نوم شروع کوم چه لوئے مهربان دَ ډیر زیات رحم خاوند دے

اِقْتَرَبَتِ السَّاعَةُ وَانْشَقَّ الْقَمَرُ ﴿١﴾ وَاِنْ يَّرَوْا اٰيَةً يُّعْرِضُوْا

نزدے راغے | قیامت | او وچودله | سپوږمئ | او که چرے دُوی وینی | نخښنه | نو دوی مخ اړوی

قیامت رانزدے شو او سپوږمئ وُچودله او دوئی که یوه نخښنه وُوینی نو هغے نه مخ اړوی

وَيَقُوْلُوْا سِحْرٌ مُّسْتَمِرٌّ ﴿٢﴾ وَكَذَّبُوْا وَاتَّبَعُوْٓا اَهْوَآءَهُمْ

او وائی | جادو دے | چه همیشه نه راروان دے | او دوی دروغ وګڼړلو | او پیروی ئے وکړه | دَ خواهشاتو خپلو

او وینا شروع کړی چه دا خو جادو دے چه دَ همیشه نه راروان دے او دوئی پیغمبر دروغژن وګڼړلو او په خپلو خواهشونو پسے روان شول

وَكُلُّ اَمۡرٍ مُّسۡتَقِرٌّ ۝٣ وَلَقَدۡ جَآءَهُمۡ مِّنَ الۡاَنۡۢبَآءِ مَا فِيۡهِ مُزۡدَجَرٌ ۝٤

او هر کار دَ پاره | يو وخت مقرر دے | او بیشکه راغلل دوئ ته | هغه خبرونه | په کومو کښے چه | عبرت دے۔

او دَ هر کار يو وخت مقرر دے۔ او دوئ ته دومره ډیر خبرونه راغلل چه په هغے کښے کافی عبرت دے

حِكۡمَةٌۢ بَالِغَةٌ فَمَا تُغۡنِ النُّذُرُ ۝٥ فَتَوَلَّ عَنۡهُمۡ ۘ يَوۡمَ يَدۡعُ

حکمت | پوره | پس نهٔ ورکوی فائده | ویرَونکی | پس مخ واړوه | له دوئ نه | په کومه ورځ چه به | راوُبلی

(دَ) اُوچت حکمت (نه ډک دے) خو ویرَونکی خیزونه دوئ ته هیڅ فائده نهٔ رسوی، نو (اے نبی!) نهٔ دَ دوئ پروا مه ساته، په کومه ورځ چه

الدَّاعِ اِلٰى شَيۡءٍ نُّكُرٍ ۝٦ خُشَّعًا اَبۡصَارُهُمۡ يَخۡرُجُوۡنَ مِنَ الۡاَجۡدَاثِ

بلونکے | طرف دَ يو خیز ناخوښه ته | ښکته کړے | خپلے سترګے | دوی به راوُځی | له قبرونو نه

يوه رابلونکے (فرښته) به دوئ يو ناخوښه خیز ته رابلی، سترګے به ئے کوزے وی، دَ قبرونو نه به په داسے شان بهر راوُځی

كَاَنَّهُمۡ جَرَادٌ مُّنۡتَشِرٌ ۝٧ مُّهۡطِعِيۡنَ اِلَى الدَّاعِ ؕ يَقُوۡلُ الۡكٰفِرُوۡنَ

لکه چه دوئ | ملخان دی | خوارهٔ شوی | په منډه به وی | طرف دَ بلونکی ته | وائی به | کافران

لکه چه ملخان راخوارهٔ شی ، دَ بلونکی طرف ته به په منډه ورځی ، کافران به وائی چه دا خو ډیره

هٰذَا يَوۡمٌ عَسِرٌ ۝٨ كَذَّبَتۡ قَبۡلَهُمۡ قَوۡمُ نُوۡحٍ فَكَذَّبُوۡا عَبۡدَنَا

دا ورځ ده | ډیره سخته | دروغ ګنړلے وو | وړاندِ له دوئ نه | قوم دَ نوحؑ | پس دروغ وګنړلو دوی | بنده زمونږ

سخته ورځ ده ، دَ دے نه وړاندِ دَ نوحؑ قوم (پیغمبران) دروغژن ګنړلی وو ، نو زمونږ بنده ئے دروغژن

وَقَالُوۡا مَجۡنُوۡنٌ وَّازۡدُجِرَ ۝٩ فَدَعَا رَبَّهٗۤ اَنِّىۡ مَغۡلُوۡبٌ

او دوئ ووئیل | دیوانه دے | او دهٔ ته سخته خبرے وکړے شوے | پس دهٔ وُبللو | خپل رب | چه زهٔ | مغلوب یم

وُګنړلو او داسے ووئیل چه (نوحؑ) لیونے دے او سخته خبرے ورته وکړے شوے په دے بانِدِ هغهٔ خپل ربّ ته دُعا وکړه چه زهٔ ډیر عاجزه شوے یم

فَانۡتَصِرۡ ۝١٠ فَفَتَحۡنَاۤ اَبۡوَابَ السَّمَآءِ بِمَآءٍ مُّنۡهَمِرٍ ۝١١ وَّفَجَّرۡنَا

پس ته بدله واخله | پس پرانستلے مونږ | دروازے | دَ آسمان | په اوبو سره | چه ډیرے راتویدونکے وے | او روانے کړے مونږ

نو ته زما بدله واخله، نو مونږ دَ آسمان دروازے دَ شړپ په اوُبو سره راپرانستلے او دَ زمکے نه موچینے راوُبهیولے نو هغه اُوبهٔ

الۡاَرۡضَ عُيُوۡنًا فَالۡتَقَى الۡمَآءُ عَلٰٓى اَمۡرٍ قَدۡ قُدِرَ ۝١٢ وَحَمَلۡنٰهُ

له زمکے نه | چینے | بیا جمع شوے | اُوبهٔ | په یوه خبره | چه مقدّر شوے وه | او سور کړو مونږ دے

په هغه کار پسے رایو ځائے شوے کوم چه تجویز شوے وو . او مونږ نوحؑ دَ تختو

عَلٰى ذَاتِ اَلۡوَاحٍ وَّدُسُرٍ ۝١٣ تَجۡرِىۡ بِاَعۡيُنِنَا ۚ جَزَآءً لِّمَنۡ

په کشتئ کښے | چه تختو | او میخونو والاوه | روانه به وه | زمونږ دَ سترګو په وړاندِ | دَ جزا ورکولو دَ پاره | هغه چا ته

او دَ میخونو په یوه کشتئ کښے سور کړو، چه زمونږ دَ سترګو په وړاندِ روانه وه دا دَ هغه چا دَ پاره بدل

كَانَ كُفِرَ ۝١٤ وَلَقَدۡ تَّرَكۡنٰهَاۤ اٰيَةً فَهَلۡ مِنۡ مُّدَّكِرٍ ۝١٥ فَكَيۡفَ كَانَ

دَ کوم چه انکار شوے وو | او بیشکه پریښودله مونږ دا | یوه نخښه | نو آیا شته | څوک نصیحت اخستونکے | پس څنګه وو

[illegible] دَ کوم چه انکار ترے نهٔ شوے وو او دا واقعه مونږ دَ نخښے په طور یادګار پریښودے ده نو آیا څوک سبق اخستونکے شته؟ نو (وګوره چه) زما

عَذَابِیْ وَنُذُرِ ﴿۱۶﴾ وَلَقَدْ یَسَّرْنَا الْقُرْاٰنَ لِلذِّکْرِ فَهَلْ مِنْ مُّدَّکِرٍ ﴿۱۷﴾

زما عذاب | او زما ویرول | او مونږ آسان کړے دے | قرآن | نصیحت دَپاره | پس آیا شته | څوک نصیحت حاصلوونکے

عذاب او زما ویرول څنګه وو او مونږ قرآن (دَ خلقو دَ) پوهولو دَپاره آسان کړے دے نو ایا شته دے څوک نصیحت قبلوونکے.

کَذَّبَتْ عَادٌ فَکَیْفَ کَانَ عَذَابِیْ وَنُذُرِ ﴿۱۸﴾ اِنَّآ اَرْسَلْنَا

دروغژن وګڼړلو | قوم دَعاد (هم) | پس څنګه وو | عذاب زما | او ویرول زما | بیشکه مونږ لیږلے وکا

عاد یا تو هم (پیغمبران) دروغژن وګڼړل نو (وګوره چه) زما عذاب او زما ویرول څنګه شو، بیشکه مونږ په هغوی باندِ

عَلَیْهِمْ رِیْحًا صَرْصَرًا فِیْ یَوْمِ نَحْسٍ مُّسْتَمِرٍّ ﴿۱۹﴾ تَنْزِعُ النَّاسَ

په دوئ باندِ | سیلئ | ډیر سخته | په ورځ کښے | دَسپیرے | همیشه | راوښکل ئے | خلق

یوه تُنده سیلئ راوُلیږله په داسے ورځ چه تل سپیره وه خلق به ئے داسے راغورزول

کَاَنَّهُمْ اَعْجَازُ نَخْلٍ مُّنْقَعِرٍ ﴿۲۰﴾ فَکَیْفَ کَانَ عَذَابِیْ وَنُذُرِ ﴿۲۱﴾

لکه چه هغه | جرړے دی | دَ قجورے | دَبیخ نه وتلے | نو څنګه وو | زما عذاب | او زما ویرول

لکه دَ راوتلو قجورو ننے چه (په زمکه) پرتے وی. نو (وګوره چه) زما عذاب او زما ویرول څنګه شو؟

وَلَقَدْ یَسَّرْنَا الْقُرْاٰنَ لِلذِّکْرِ فَهَلْ مِنْ مُّدَّکِرٍ ﴿۲۲﴾ کَذَّبَتْ

او مونږ آسان کړے دے | قرآن | دَ نصیحت دَپاره | نو آیا شته | څوک نصیحت قبلوونکے؟ | دروغ ګڼړلی وو

او مونږ قرآن (دَ خلقود) پوهولو دَ پاره اسان کړے دے نو آیا څوک نصیحت قبلوونکے شته؟ ثمود یا نو هم

ثَمُوْدُ بِالنُّذُرِ ﴿۲۳﴾ فَقَالُوْٓا اَبَشَرًا مِّنَّا وَاحِدًا نَّتَّبِعُهٗٓ

(قوم دَ) ثمود (هم) | ویرونکی | پس دوی ووئیل | آیا دَ داسے سړی | چه له مونږ نه | یو دے | مونږ پیروی وکړو

پیغمبران دروغژن وګڼړل. هغوئ ووئیل چه آیا مونږ دَ خپل ځان په شان یو انسان پسے روان شو (که

اِنَّآ اِذًا لَّفِیْ ضَلٰلٍ وَّسُعُرٍ ﴿۲۴﴾ ءَاُلْقِیَ الذِّکْرُ عَلَیْهِ

بیشکه مونږ به | دغه وخت (یُو) | په ګمراهئ کښے | او لیونتوب کښے | آیا نازله شوے ده | وحی | په دهٔ باندِ

داسے وُکړو نو) مونږ به په ګمراهئ او لیونتوب کښے اخته شو. آیا په مونږ نو لو کښے صرف هم په دهٔ وحی نازله

مِنْۢ بَیْنِنَا بَلْ هُوَ کَذَّابٌ اَشِرٌ ﴿۲۵﴾ سَیَعْلَمُوْنَ غَدًا مَّنِ الْکَذَّابُ

زمونږ له مینځ نه | بلکه | دے | ډیر دروغژن | خود پسند دے | دوی به ډیر زر پوهه شی | صبا نه | چه څوک دے | دروغژن

شوے ده، نه بلکه دے عنئ دروغژن دے چه لافے وهی. صبا (په قیامت کښے) به ورته معلومه شی چه څوک غټ

الْاَشِرُ ﴿۲۶﴾ اِنَّا مُرْسِلُوا النَّاقَةِ فِتْنَةً لَّهُمْ فَارْتَقِبْهُمْ وَاصْطَبِرْ ﴿۲۷﴾

خود پسند | بیشکه مونږ | رالیږونکی یُو | دَ اوښے | دَدوئ دَ آزمیښت دَپاره | پس انتظار کوه دَدوئ | او صبر کوه.

دروغژن او لافوګر سړے وو مونږ دَدوئ دَ آزمیښت دَپاره یوه اُوښه لیږو نو ته دَدوئ کار و تو ته ګوره او دَ صبر نه کار اخله.

وَنَبِّئْهُمْ اَنَّ الْمَآءَ قِسْمَةٌۢ بَیْنَهُمْ ۚ کُلُّ شِرْبٍ مُّحْتَضَرٌ ﴿۲۸﴾

او ته خبر کړه دوئ | چه دا اوبهٔ | تقسیم شوی دی | دَدوی په مینځ کښے | هر یو له | دَ اُوبو په وار باندِ | حاضریدل پکار دی

او دوئ خبر کړه چه اوبهٔ دَ دوئ ترمینځه ویشلے شوی دی، نو دَ وار خاوندان دِ په خپل وار حاضریږی.

فَنَادَوْا صَاحِبَهُمْ فَتَعَاطٰى فَعَقَرَ ﴿۲۹﴾ فَكَيْفَ كَانَ عَذَابِىْ

پس اواز ورکړو دوی | خپل ملګری ته | نو ده لاس واچولو | پس زخمی ئے کړله | پس څنګه وو | زما عذاب

بیا هغوئی خپل (بد بخت) ملګرے راؤغوښتلو هغهٔ (اوښه) ونیوله او د هغے پښے ئے زخمی کړلے، نو (وګوره چه) زما عذاب او زما

وَنُذُرِ ﴿۳۰﴾ اِنَّآ اَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ صَيْحَةً وَّاحِدَةً فَكَانُوْا كَهَشِيْمِ

او ویرول زما | بیشکه مونږ راؤلیږله | په دوئ باندِ | چغه | هم یوه | پس شول دوی | په شان د چوړے د شپول

ویرول څنګه شو۔ مونږ په هغوئ یوه چغه وویستله ، نو دا سے چوړه شول لکه د شپول لګوونکی (د لاسه)

الْمُحْتَظِرِ ﴿۳۱﴾ وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْاٰنَ لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِنْ مُّدَّكِرٍ ﴿۳۲﴾

د شپول جوړونکی | او بیشکه مونږ آسان کړو | قران | د پاره د نصیحت | پس آیا شته | څوک نصیحت قبلوونکے؟

دوهیدلے د بوسو چوړه او مونږ قرآن د پوهیدلو د پاره آسان کړے دے پس څوک شته چه نصیحت قبول کړی؟

كَذَّبَتْ قَوْمُ لُوْطٍۭ بِالنُّذُرِ ﴿۳۳﴾ اِنَّآ اَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ حَاصِبًا

دروغژن ګڼړلی وو | قوم د لوط (هم) | ویروونکی | بیشکه مونږ | راؤلیږله | په دوئ باندِ | د کانړو سیلئ

د لوط ؑ قوم هم پیغمبران دروغژن وګڼړل ۔ نو په هغوئ باندِ مونږ د کانړونه ډکه سیلئ وچلوله

اِلَّآ اٰلَ لُوْطٍ ؕ نَجَّيْنٰهُمْ بِسَحَرٍ ﴿۳۴﴾ نِّعْمَةً مِّنْ عِنْدِنَا ؕ كَذٰلِكَ

سوا | د لوط ؑ د کورواله نه | خلاصے ورکړو مونږ دوئ ته | سحروختی | په مهربانئ سره | د خپل طرف نه | دغه شان

خو د لوط ؑ کور والا مو بچ کړل، هغوئ مو سحروختی بچ کړل ۔ دا زمونږ فضل وو ، څوک چه (زمونږ) شکر

نَجْزِىْ مَنْ شَكَرَ ﴿۳۵﴾ وَلَقَدْ اَنْذَرَهُمْ بَطْشَتَنَا فَتَمَارَوْا بِالنُّذُرِ ﴿۳۶﴾

مونږ بدله ورکوؤ | هغه چاته چه شکر کوی | او بیشکه | ده و ویرول دوئ | زمونږ د نیولو نه | نو دوئ شک وکړو | په ویرولو کښے

وباسی مونږ ورله دغسے بدله ورکوؤ۔ او (پیغمبر) دغه خلق زمونږ د نیولو نه ویرولی وو هغوئ په دغه تعلیم کښے جګړے راوویستلے

وَلَقَدْ رَاوَدُوْهُ عَنْ ضَيْفِهٖ فَطَمَسْنَآ اَعْيُنَهُمْ فَذُوْقُوْا عَذَابِىْ

او دوئ له ده نه وغوښتل | د ده میلمانه | نو مونږ ړندے کړلے | سترګے د دوئ | پس وڅکئ | زما عذاب

او د لوط ؑ نه ئے د هغهٔ میلمانهٔ په بد نیت وغوښتل نو مونږ ورله سترګے په تپو ړندے کړے چه اوس زما عذاب او زما د ویرولو

وَنُذُرِ ﴿۳۷﴾ وَلَقَدْ صَبَّحَهُمْ بُكْرَةً عَذَابٌ مُّسْتَقِرٌّ ﴿۳۸﴾ فَذُوْقُوْا عَذَابِىْ

او زما ویرول | او بیشکه | د سحره په دوئ باندِ راپریوتلو | وختی | عذاب | دائمی | پس وڅکئ | زما عذاب

مزه وڅکئ او صبا وختی په هغوئ باندِ دائمی عذاب راغے ۔ نو (واخلئ) زما د عذاب او د ویرولو

وَنُذُرِ ﴿۳۹﴾ وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْاٰنَ لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِنْ مُّدَّكِرٍ ﴿۴۰﴾ وَلَقَدْ

او زما ویرول | او بیشکه مونږ آسان کړے دے | قرآن | د پاره د نصیحت | نو آیا شته | څوک نصیحت قبلوونکے؟ | او بیشکه

خوند وڅکئ ۔ او مونږ قرآن د پوهیدلو د پاره آسان کړے دے نو څوک سبق اخستونکے شته ؟ او د فرعون

جَآءَ اٰلَ فِرْعَوْنَ النُّذُرُ ﴿۴۱﴾ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا كُلِّهَا فَاَخَذْنٰهُمْ

راغلل | قوم د فرعون ته (هم) | ویرونکی (پیغمبران) | دوئ دروغ وګڼړلے | زمونږه نخښے | ټولے | نو مونږ ونیول دوی

قوم ته د ویرے ډیر څیزونه ورسیدل ۔ هغوئ زمونږ ټولے نخښے دروغ وګڼړلے نو مونږ هغوئ داسے

ع ۲ / ۱۸ / ۹

اَخۡذَ عَزِيۡزٍ مُّقۡتَدِرٍ ﴿۴۲﴾ اَكُفَّارُكُمۡ خَيۡرٌ مِّنۡ اُولٰٓئِكُمۡ اَمۡ لَكُمۡ

په شان دَ نيولو | دَ غالب | قوی | آيا کافران ستاسو | غوره دی | له دے خلقو نه | يا تاسو دَ پاره

راۇ نيول لکه څنګه چه يو مضبوط او دَ قدرت خاوند رانيول کوی - آيا ستاسو دَ زمانے کافران دَ هغوئ نه غوره دی يا تاسو دَ پاره

بَرَآءَةٌ فِى الزُّبُرِ ﴿۴۳﴾ اَمۡ يَقُوۡلُوۡنَ نَحۡنُ جَمِيۡعٌ مُّنۡتَصِرٌ ﴿۴۴﴾

خلاصے (ليکلے شوے) دے | په کتابونو کښے | يا | دوی وائی | مونږ | يو ټولے يُو | انتقام اخستونکے

په کتابونو کښے څۀ معافی ليکلے شوے ده؟ يا دوئ دا خيال کوی چه مونږ يو داسے ټولے يُو چه تل به غالب يُو۔

سَيُهۡزَمُ الۡجَمۡعُ وَيُوَلُّوۡنَ الدُّبُرَ ﴿۴۵﴾ بَلِ السَّاعَةُ مَوۡعِدُهُمۡ

ډير زر به ماتے ورکړے شی | دے جماعت ته | او دُوی به ګرځوی دوی | شا | (نه) بلکه | قيامت | دَ دوئ دَ وعدے وخت دے

دا ټولے به زر ببيلات وُکړی او په شا اړخ به وُتښتی خو دَ دوئ په حقله اصلی وعده خو دَ قيامت وعده

وَالسَّاعَةُ اَدۡهٰى وَاَمَرُّ ﴿۴۶﴾ اِنَّ الۡمُجۡرِمِيۡنَ فِىۡ ضَلٰلٍ وَّسُعُرٍ ﴿۴۷﴾

او قيامت | ډير سخت | او ډير تريخ دے | بيشکه | مجرمان خلق | په ګمراهئ | او لويه بے عقلئ کښے دی

او قيامت ډير سخت او تريخ څيز دے۔ دا مجرمان په غټه ګمراهئ او په لويه بے عقلئ کښے پراته دی۔

يَوۡمَ يُسۡحَبُوۡنَ فِى النَّارِ عَلٰى وُجُوۡهِهِمۡ ؕ ذُوۡقُوۡا مَسَّ سَقَرَ ﴿۴۸﴾

په کومه ورځ چه | دوی به راښکلے شی | په اور کښے | په مخونو دَ دوی | چه وُڅکئ تاسو | لاس رسول | دَ دوزخ

په کومه ورځ چه په اور کښے پرمخے راښکے شی (نو ورته به وويلے شی) چه (اوس) دَ دوزخ دَ اور خوند وُڅکئ

اِنَّا كُلَّ شَىۡءٍ خَلَقۡنٰهُ بِقَدَرٍ ﴿۴۹﴾ وَمَاۤ اَمۡرُنَاۤ اِلَّا وَاحِدَةٌ

بيشکه مونږ | هر څيز | پيدا کړے دے | په يو اندازه | او نۀ دے | زمونږ حکم | مګر (صرف) | يو (حکم)

مونږ هر يو څيز په يو خاص انداز پيدا کړے دے۔ او ز مونږ حکم به بس داسے ناګهانه راشی

كَلَمۡحٍۢ بِالۡبَصَرِ ﴿۵۰﴾ وَلَقَدۡ اَهۡلَكۡنَاۤ اَشۡيَاعَكُمۡ فَهَلۡ مِنۡ مُّدَّكِرٍ ﴿۵۱﴾

په شان دَ رپ | دَ سترګے | او بيشکه هلاک کړی دی مونږ | ستاسو په شان ډلے | پس آيا | څوک نصيحت قبلونکے شته؟

لکه دَ سترګے رپ۔ او مونږ ستاسو په شان څومره هلاک کړی دی، بيا شته څوک عبرت اخستونکے؟

وَكُلُّ شَىۡءٍ فَعَلُوۡهُ فِى الزُّبُرِ ﴿۵۲﴾ وَكُلُّ صَغِيۡرٍ وَّكَبِيۡرٍ مُّسۡتَطَرٌ ﴿۵۳﴾

او هر يو څيز | چه کړے دے دوی | په اعمالنامه کښے (موجود) دے | او هر يو | وړکوټے | او لوئے (کار) | ليکلے شوے دے

او هر څۀ چه دوئ وُکړل هغه په کتابونو کښے درج دی - او هره وړه او غټه خبره پکښے درج ده۔

اِنَّ الۡمُتَّقِيۡنَ فِىۡ جَنّٰتٍ وَّنَهَرٍ ﴿۵۴﴾ فِىۡ مَقۡعَدِ صِدۡقٍ

بيشکه | پرهيزګاران به | په باغونو کښے | او نهرونو کښے وی | په ځائے | رښتينی کښے

بيشکه پرهيزګاران به په باغونو کښے دننه او دَ نهرونو په غاړو او سيرېږی، په يو اوچت ځائے کښے دَ هغے

عِنۡدَ مَلِيۡكٍ مُّقۡتَدِرٍ ﴿۵۵﴾

نزدے | دَ بادشاه | دَ قدرتونو خاوند

بادشاه سره چه دَ قدرتونو خاوند دے۔

وقف لازم

سُوْرَةُ الرَّحْمٰنِ مَدَنِيَّةٌ وَّهِيَ ثَمَانٌ وَّسَبْعُوْنَ اٰيَةً وَّثَلٰثُ رُكُوْعَاتٍ

سورۂ رحمان په مدینه کښې نازل شوې ده په کښې ۷۸ آیتونه او ۳ رکوع دي

# بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

(شروع کوم) په نامه دَ الله چه ډیر مهربان ډیر زیات رحم کوونکے دے

دَ الله په نامه شروع کوم چه لوئے مهربان دَ ډیر زیات رحم خاوند دے

اَلرَّحْمٰنُ ① عَلَّمَ الْقُرْاٰنَ ② خَلَقَ الْاِنْسَانَ ③ عَلَّمَهُ الْبَيَانَ ④

رحمان | وُښودلو | قرآن | دهٔ پیدا کړو | انسان | وُئے ښودله دهٔ ته | وینا

الله ډیر مهربان دے چه دَ قرآن تعلیم ئے ورکړے دے، هم هغهٔ انسان پیدا کړے دے، هغهٔ ته ئے وینا ښودلے ده۔

اَلشَّمْسُ وَالْقَمَرُ بِحُسْبَانٍ ⑤ وَّالنَّجْمُ وَالشَّجَرُ يَسْجُدٰنِ ⑥

نُوَر | او سپوږمئ | په یو حساب (روان) دي | او بُوټي | او اونے | سجدے کوي۔

نُور او سپوږمئ (هم) دَ حساب پابند دي او بُوټي او اونے (هم هغهٔ ته) سجدے کوي۔

وَالسَّمَآءَ رَفَعَهَا وَوَضَعَ الْمِيْزَانَ ⑦ اَلَّا تَطْغَوْا فِي الْمِيْزَانِ ⑧

او آسمان | دهٔ اوچت کړو دا | او دهٔ کیښوده | تله | چه تاسو زیاتے مهٔ کوئ | په تله کښې

او آسمان هغهٔ اُوچت کړے دے او تله (دَ انصاف ئې) ایښے ده چه تاسو په تول کښې کمبړ نهٔ کوئ۔

وَاَقِيْمُوا الْوَزْنَ بِالْقِسْطِ وَلَا تُخْسِرُوا الْمِيْزَانَ ⑨ وَالْاَرْضَ وَضَعَهَا

او قائم کړئ | وزن | په انصاف | او مهٔ کوئ کمے | په تله کښې | او زمکه | دهٔ وغوړوله دا

او تول په انصاف باندې برابر ساتئ، او په تله کښې کمے مهٔ کوئ۔ او هم هغهٔ دَ خلقو دَ پاره

لِلْاَنَامِ ⑩ فِيْهَا فَاكِهَةٌ وَّالنَّخْلُ ذَاتُ الْاَكْمَامِ ⑪ وَالْحَبُّ

دَ پاره دَ مخلوق | په دے کښې | میوے دي | او اُونے دَ قجورے | میر منے دَ غلافونو | او غله

زمکه غوړولے ده چه په هغے کښې میوے دي او دَ غلافونو میر منے دَ قجورو اُونے او غله ده چه دَ

ذُو الْعَصْفِ وَالرَّيْحَانُ ⑫ فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ⑬ خَلَقَ

دَ بُوسو والا | او خوشبویه ګلونه | پس کوم کوم | نعمتونه | دَ خپل رب به تاسو دواړه | دروغ ګڼړئ | دهٔ پیدا کړو

بُوسو او دَ خوراکے (دواړو) څیزونه دي او خوشبویه ګلونه۔ نو (اے پیریانو او انسانانو) تاسو به دَ خپل رب کوم کوم نعمتونه دروغ ګڼړئ؟ هغهٔ

الْاِنْسَانَ مِنْ صَلْصَالٍ كَالْفَخَّارِ ⑭ وَخَلَقَ الْجَآنَّ مِنْ مَّارِجٍ

انسان | دَ اُوچے خټے نه | په شان دَ ټیکرې | او دهٔ پیدا کړل | پیریان | له شعلے

انسان دَ داسے خاورے نه راپیدا کړو چه دَ ټیکرې په شان ټنګید له۔ او پیریان ئے دَ اُور دَ شعلے نه راپیدا

مِّنْ نَّارٍ ⑮ فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ⑯ رَبُّ الْمَشْرِقَيْنِ وَرَبُّ

دَ اور نه | پس کوم کوم | نعمتونه | دَ خپل رب به تاسو دواړه | دروغ ګڼړئ | رب دے | دَ دواړو مشرقونو | او رب دے

کړل۔ نو تاسو دواړه به دَ خپل رب کوم کوم نعمتونه دروغ ګڼړئ، هغه دَ دواړو مشرقونو رب دے او دَ دواړو

الْمَغْرِبَيْنِ ⑰ فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ⑱ مَرَجَ الْبَحْرَيْنِ

دَ دواړو مغربونو | نو کوم کوم | نعمتونه | دَ خپل رب به تاسو دواړه | دروغ ګڼړئ | دهٔ وُبهیول | دوه دریابونه

مغربونو رب دے۔ نو تاسو دواړه به دَ خپل رب کوم کوم نعمتونه دروغ ګڼړئ۔ هغهٔ دوه دریابونه یو ځائے کړل

يَلْتَقِيٰنِ ﴿١٩﴾ بَيْنَهُمَا بَرْزَخٌ لَّا يَبْغِيٰنِ ﴿٢٠﴾ فَبِاَيِّ اٰلَآءِ

چه جمع شي دواړه | دَ دے دواړو تر مينځه | پرده ده | چه په يو بل باندِ نهٔ ورتيرېږي | پس کوم کوم | نعمتونه

چه سره يو ځلئے هم دی او دَ دے دواړو تر مينځه پرده ده چه دواړه پرے يو بل نه وړاندِ کيدے نهٔ شي ۔ نو تاسو دواړه به دَ

رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿٢١﴾ يَخْرُجُ مِنْهُمَا اللُّؤْلُؤُ وَالْمَرْجَانُ ﴿٢٢﴾ فَبِاَيِّ اٰلَآءِ

دَ خپل رب به تاسو دواړه | دروغ گڼړئ؟ | راوځي | له دے دواړو نه | ملغلرے | او مرجان | پس کوم کوم | نعمتونه

خپل رب کوم کوم نعمتونه دروغ گڼړئ ؟ دَ دے دواړو دريابونو نه ملغلرے او مرجان راوځي ۔ نو بيا تاسو دواړه به دَ

رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿٢٣﴾ وَلَهُ الْجَوَارِ الْمُنْشَئٰتُ فِي الْبَحْرِ كَالْاَعْلَامِ ﴿٢٤﴾

دَ خپل رب به تاسو دواړه | دروغ گڼړئ | او هم دَ دهٔ دی | کشتۍ | اُوچتے ولاړے | په درياب کښے | په شان دَ غرونو

خپل رب کوم کوم نعمتونه دروغ گڼړئ ؟ او دغه جهازونه هم دَ هغهٔ په اختيار کښے دی چه په سمندر کښے دَ غرونو په شان اوچت ولاړ دی

فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿٢٥﴾ كُلُّ مَنْ عَلَيْهَا فَانٍ ﴿٢٦﴾ وَّيَبْقٰى

پس کوم کوم | نعمتونه | دَ خپل رب به تاسو دواړه | دروغ گڼړئ | هر څوک چه | په دے (زمکه) دے | فاني کيدُونکے دے | او باقي به پاتے کيږي

بيا تاسو دواړه به دَ خپل رب کوم کوم نعمتونه دروغ گڼړئ؟ هر څوک چه په دے زمکه باندِ آباد دی هغه فنا کيدونکی دی او صرف

وَجْهُ رَبِّكَ ذُو الْجَلٰلِ وَالْاِكْرَامِ ﴿٢٧﴾ فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿٢٨﴾

ذات | ستا دَ رب | چه خاوند دَ لوئے شان | او دَ عظمت دے | پس کوم کوم | نعمتونه | دَ خپل رب به تاسو دواړه | دروغ گڼړئ

ستا دَ رب ذات به باقي پاتے وی چه دَ لويئ او دَ احسان خاوند دے ۔ نو تاسو دواړه به دَ خپل رب کوم کوم نعمتونه دروغ گڼړئ

يَسْـَٔلُهُ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ كُلَّ يَوْمٍ هُوَ فِيْ شَاْنٍ ﴿٢٩﴾

سوال کوی له دهٔ نه | څوک چه | په اسمانونو کښے | او زمکه (کښے دی) | هره ورځ | دے | په يو (نوی) شان کښے دے

دَ اسمانونو او دَ زمکے ټول مخلوق دَ هغهٔ نه خواست کوی ۔ هغه هر وخت په يو کار کښے لګيا وی ۔

فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿٣٠﴾ سَنَفْرُغُ لَكُمْ اَيُّهَ

نو کوم کوم | نعمتونه | دَ خپل رب به تاسو دواړه | دروغ گڼړئ | موږ به ډير زر فارغ (متوجه) شو | تاسو دَ پاره | اے

نو تاسو دواړه به دَ خپل رب کوم کوم نعمتونه دروغ گڼړئ ؟ اے دَ پيريانو او انسانانو (ډلو)! موږ به ډير زر تاسو ته او ز کار يږ

الثَّقَلٰنِ ﴿٣١﴾ فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿٣٢﴾ يٰمَعْشَرَ الْجِنِّ وَالْاِنْسِ

پيريانو او انسانانو! | نو کوم کوم | نعمتونه | دَ خپل رب به تاسو دواړه | دروغ گڼړئ | اے ډلے | دَ پيريانو | او انسانانو!

او ناسو ته به متوجه کيږو، بيا تاسو به دَ خپل رب کوم کوم نعمتونه دروغ گڼړی ؟ اے دَ پيريانو او انسانانو ډلو !

اِنِ اسْتَطَعْتُمْ اَنْ تَنْفُذُوْا مِنْ اَقْطَارِ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ فَانْفُذُوْا ؕ

که چرے | ستاسو وس رسی | چه | بهر ته لاړ شئ | له غاړو نه | دَ آسمانونو | او دَ زمکے | نو اُوځئ

که چرے تاسو نه کيدے شی چه دَ آسمانونو او دَ زمکے دَ حدونو نه چرته اُوځئ نو (بيشکه) اُوځئ

لَا تَنْفُذُوْنَ اِلَّا بِسُلْطٰنٍ ﴿٣٣﴾ فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿٣٤﴾ يُرْسَلُ

بهر ته به لاړ نهٔ شی | مگر په زور سره | نو کوم کوم | نعمتونه | دَ خپل رب به تاسو دواړه | دروغ گڼړئ | راليږلے به شی

خو بغير دَ زور نه و تلے نهٔ شئ ۔ نو تاسو دواړه به دَ خپل رب کوم کوم نعمتونه دروغ گڼړئ ؟ په تاسو دواړو به

عَلَيْكُمَا شُوَاظٌ مِّنْ نَّارٍ ۙ وَّنُحَاسٌ فَلَا تَنْتَصِرٰنِ ﴿٣٥﴾ فَبِاَيِّ اٰلَآءِ

په تاسو بانډې | شعلې | دَ اور | او لوګي | پس مقابله به نهٔ شئ کولے تاسو | پس کوم کوم | نعمتونه

دَ اور شعلې او لوخړے راپرېښودے شي نو تاسو به ئې بېرته نه کولے نهٔ شئ ۔ نو تاسو دواړه به دَ خپل رب

رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿٣٦﴾ فَاِذَا انْشَقَّتِ السَّمَآءُ فَكَانَتْ وَرْدَةً كَالدِّهَانِ ﴿٣٧﴾

دَ خپل ربّ به تاسو دواړه | دروغ ګڼړئ | بیا هر کله چه | وُچوی | آسمان | نو شي به | سُور | په شان دَ خرمنے سرے

کوم کوم نعمتونه دروغ ګڼړئ ؟ بیا هر کله چه آسمان وُشلیږی او دَ سرے خرمنے په شان تک سُور شي

فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿٣٨﴾ فَيَوْمَئِذٍ لَّا يُسْئَلُ عَنْ ذَنْۢبِهٖۤ

پس کوم کوم | نعمتونه | دَ خپل رب به تاسو دواړه | دروغ ګڼړئ | پس په دغه ورځ به | سوال نهٔ شي کیدے | دَ دهٔ دَ ګناه په حقله

نو تاسو دواړه به دَ خپل رب کوم کوم نعمتونه دروغ ګڼړئ ؟ بیا په دغه ورځ به دَ انسان یا دَ پیری نه دَ هغهٔ دَ

اِنْسٌ وَّلَا جَآنٌّ ﴿٣٩﴾ فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿٤٠﴾ يُعْرَفُ

له هیڅ انسان | او نهٔ له پیری نه | نو کوم کوم | نعمتونه | دَ خپل ربّ به تاسو دواړه | دروغ ګڼړئ | پیژندلی به شي

ګناهونو په حقله پُوښتنه نهٔ کیږی ۔ نو تاسو به دَ خپل رب کوم کوم نعمتونه دروغ ګڼړئ ؟ مجرمان خو به دَ شکل

الْمُجْرِمُوْنَ بِسِيْمٰهُمْ فَيُؤْخَذُ بِالنَّوَاصِيْ وَالْاَقْدَامِ ﴿٤١﴾ فَبِاَيِّ

مجرمان | دَ خپلو مخونو نه | پس نیولی به شي دوی | په وېښتو دَ تندی | او په قدمونو | پس کوم کوم

نه په خپله پیژندل ے شي ، نو دَ تندی (دَ وېښتو) او د پښو نه به رانیولے شي ، نو تاسو دواړه

اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿٤٢﴾ هٰذِهٖ جَهَنَّمُ الَّتِيْ يُكَذِّبُ بِهَا الْمُجْرِمُوْنَ ﴿٤٣﴾

نعمتونه | دَ خپل ربّ به تاسو دواړه | دروغ ګڼړئ | دا دے | دوزخ | هغه چه | دروغ به ګڼړلو هغه | مجرمانو

به دَ خپل رب کوم کوم نعمتونه دروغ ګڼړئ ؟ دا هغه دوزخ دے چه مجرمانو به دروغ ګڼړلو ۔

يَطُوْفُوْنَ بَيْنَهَا وَبَيْنَ حَمِيْمٍ اٰنٍ ﴿٤٤﴾ فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا

دوی به چاپیره ګرځی | په مینځ دَ دے کښے | او په مینځ دَ تودو ایشیدلو اوبو کښے | پس کوم کوم | نعمتونه | دَ خپل ربّ به تاسو دواړه

دوی به دَ دغه اور او دَ ګرمو ایشیدلو اوبو ترمینځه په ګرځیدلو (مجبوره) وی نو تاسو به دَ خپل رب کوم کوم نعمتونه دروغ

تُكَذِّبٰنِ ﴿٤٥﴾ وَلِمَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهٖ جَنَّتٰنِ ﴿٤٦﴾ فَبِاَيِّ

دروغ ګڼړئ | او دَ پاره دَ هغه چا | چه ویریږی | له او دریدو | دَ خپل ربّ په وړاندې | دوه باغونه به وی | نو کوم کوم

ګڼړئ ؟ او څوک چه دَ خپل رب په وړاندې دَ او دریدلو نه ویریږی هغوئ دَ پاره به دوه باغونه وی ۔ نو تاسو دواړه

اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿٤٧﴾ ذَوَاتَآ اَفْنَانٍ ﴿٤٨﴾ فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿٤٩﴾

نعمتونه | دَ خپل ربّ به تاسو دواړه | دروغ ګڼړئ | دَ ډیرو ښاخونو والا | نو کوم کوم | نعمتونه | دَ خپل ربّ به تاسو دواړه | دروغ ګڼړئ

به دَ خپل رب کوم کوم نعمتونه دروغ ګڼړئ ؟ په دے دواړو باغونو کښے به ډیر ښاخونه وی بیا تاسو به دَ خپل رب کوم کوم نعمتونه دروغ ګڼړئ

فِيْهِمَا عَيْنٰنِ تَجْرِيٰنِ ﴿٥٠﴾ فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿٥١﴾

په دے دواړو کښے به | دوه چینے | بهیږی | نو کوم کوم | نعمتونه | دَ خپل رب به تاسو دواړه | دروغ ګڼړئ

په دے دواړو (باغونو) کښے به دوه چینے بهیږی ۔ بیا تاسو به دَ خپل رب کوم کوم نعمتونه دروغ ګڼړئ

وقف لازم

ع ٢/٢ ١٢

فِيهِمَا مِن كُلِّ فَاكِهَةٍ زَوْجَانِ ﴿٥٢﴾ فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٥٣﴾

په دې دواړو کښې به | دَ هرې میوې | دوه قسمه وي | نو کوم کوم | نعمتونه | دَ خپل رب به تاسو دواړه | دروغ ګڼړئ؟

په هغې کښې به دَ هرې یوې میوې دوه دوه قسمه وي. بیا تاسو به دَ خپل رب کوم کوم نعمتونه دروغ ګڼړئ؟

مُتَّكِئِينَ عَلَىٰ فُرُشٍ بَطَائِنُهَا مِنْ إِسْتَبْرَقٍ ۚ وَجَنَى الْجَنَّتَيْنِ

تکیه لګونکي | په فرشونو باندې | چه استر دَ هغې به | دَ پیړو ریښمو وي | او میوې | دَ دواړو باغونو

هغوئ به دې وخت کښې په داسې فرشونو باندې ناست وي چه استرونه به ئې دَ برغو ریښمونه جوړ وي او دَ دواړو باغونو میوې به نږدې

دَانٍ ﴿٥٤﴾ فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٥٥﴾ فِيهِنَّ قَاصِرَاتُ الطَّرْفِ

نږدې به وي | نو کوم کوم | نعمتونه | دَ خپل رب به تاسو دواړه | دروغ ګڼړئ؟ | په دې کښې به | ښځې وي | سترګې ښکته ساتونکې

وي. نو تاسو دواړه به دَ خپل رب کوم کوم نعمتونه دروغ ګڼړئ؟ په هغې کښې به سترګې ښکته ساتونکې ښځې وي.

لَمْ يَطْمِثْهُنَّ إِنسٌ قَبْلَهُمْ وَلَا جَانٌّ ﴿٥٦﴾ فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا

دوي نه به لاس نه وي وروړې | چا انسان | له دوئ نه وړاندې | او نه چا پیری | نو کوم کوم | نعمتونه | دَ خپل رب به تاسو دواړه

په دې جنتیانو نه وړاندې چا انسان یا پیری به لاس نه دی ورته وروړې نه وي. نو تاسو دواړه به دَ خپل رب کوم کوم نعمتونه

تُكَذِّبَانِ ﴿٥٧﴾ كَأَنَّهُنَّ الْيَاقُوتُ وَالْمَرْجَانُ ﴿٥٨﴾ فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا

دروغ ګڼړئ؟ | لکه چه دوئ | یاقوت | او مرجان دي | نو کوم کوم | نعمتونه | دَ خپل رب به تاسو دواړه

دروغ ګڼړئ؟ هغه ښځې به داسې (سرې سپینې) وي لکه یاقوت او مرجان. نو تاسو دواړه به دَ خپل رب کوم کوم

تُكَذِّبَانِ ﴿٥٩﴾ هَلْ جَزَاءُ الْإِحْسَانِ إِلَّا الْإِحْسَانُ ﴿٦٠﴾ فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا

دروغ ګڼړئ؟ | نه دَه | جزا | دَ نیکئ | سوا | دَ نیکئ نه | نو کوم کوم | نعمتونه | دَ خپل رب به تاسو دواړه

نعمتونه دروغ ګڼړئ؟ او دَ احسان بدله دَ احسان نه سوا نوره څه دَه. نو تاسو به دَ خپل رب کوم کوم نعمتونه

تُكَذِّبَانِ ﴿٦١﴾ وَمِن دُونِهِمَا جَنَّتَانِ ﴿٦٢﴾ فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٦٣﴾

دروغ ګڼړئ؟ | او دَ دې دواړو نه علاوه | دوه باغونه نور دي | نو کوم کوم | نعمتونه | دَ خپل رب به تاسو دواړه | دروغ ګڼړئ؟

دروغ ګڼړئ؟ او دَ دې دواړو نه علاوه به دوه باغونه نور وي. نو تاسو دواړه به دَ خپل رب کوم کوم نعمتونه دروغ ګڼړئ؟

مُدْهَامَّتَانِ ﴿٦٤﴾ فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٦٥﴾ فِيهِمَا عَيْنَانِ

دواړه به تک شنه وي | نو کوم کوم | نعمتونه | دَ خپل رب به تاسو دواړه | دروغ ګڼړئ؟ | په دې دواړو کښې به | چینې وي

دواړه (باغونه) به تک شنه (وي)، نو تاسو دواړه به دَ خپل رب کوم کوم نعمتونه دروغ ګڼړئ؟ په دې باغونو کښې به دَ اوبو دوه

نَضَّاخَتَانِ ﴿٦٦﴾ فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٦٧﴾ فِيهِمَا فَاكِهَةٌ وَنَخْلٌ

راخوټکیدونکې | نو کوم کوم | نعمتونه | دَ خپل رب به تاسو دواړه | دروغ ګڼړئ؟ | په دې دواړو کښې به | میوې | او قجورې

چینې راخوټکیږي. بیا تاسو دواړه به دَ خپل رب کوم کوم نعمتونه دروغ ګڼړئ؟ په دې (باغونو) کښې به میوې، او قجورې

وَرُمَّانٌ ﴿٦٨﴾ فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٦٩﴾ فِيهِنَّ خَيْرَاتٌ حِسَانٌ ﴿٧٠﴾

او انار وي | نو کوم کوم | نعمتونه | دَ خپل رب به تاسو دواړه | دروغ ګڼړئ؟ | په دې کښې به | غوره | ښائسته ښځې (وي)

او انار وي. نو تاسو دواړه به دَ خپل رب کوم کوم نعمتونه دروغ ګڼړئ؟ په دې باغونو کښې به نیک خویه ښکلې میرمنې وي

فَبِاَیِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿٧١﴾ حُوْرٌ مَّقْصُوْرٰتٌ فِی الْخِیَامِ ﴿٧٢﴾

نوکوم کوم | نعمتونه | دَخپل ربّ به تاسو دواړه | دروغ گڼړئ؟ | حورے دی | محفوظے | په خیمو کښے

نو تاسو دواړه به دَ خپل رب کوم کوم نعمتونه دروغ گڼړئ؟ (دا) حورے به په خیمو کښے دننه محفوظے وی.

فَبِاَیِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿٧٣﴾ لَمْ یَطْمِثْهُنَّ اِنْسٌ قَبْلَهُمْ

نوکوم کوم | نعمتونه | دَ خپل ربّ به تاسو دواړه | دروغ گڼړئ | دوئ ته به لاس نه وی وروړے | چا بنیادم | وړاندِ له دوئ نه

نو تاسو دواړه به دَ خپل رب کوم کوم نعمتونه دروغ گڼړئ؟ دَ دوئ نه وړاندِ به ورته چا انسان یا پیری لاس

وَلَا جَآنٌّ ﴿٧٤﴾ فَبِاَیِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿٧٥﴾ مُتَّكِـِٕیْنَ

او نه چا پیری | نو کوم کوم | نعمتونه | دَ خپل رب به تاسو دواړه | دروغ گڼړئ | تکیه به ئے لگولی وی

هم وروړے نه وی. نو تاسو دواړه به دَ خپل رب کوم کوم نعمتونه دروغ گڼړئ؟ دوئ به په شنو شنو اعلیٰ

عَلٰی رَفْرَفٍ خُضْرٍ وَّعَبْقَرِیٍّ حِسَانٍ ﴿٧٦﴾ فَبِاَیِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا

په بالښتونو | شنو باندِ | او (په) فرشونو | ښائستو باندِ | نو کوم کوم | نعمتونه | دَ خپل ربّ به تاسو دواړه

مُتکو او په ښائسته صوفو ډډے وهلی وی. نو تاسو دواړه به دَ خپل رب کوم کوم نعمتونه دروغ

تُكَذِّبٰنِ ﴿٧٧﴾ تَبٰرَكَ اسْمُ رَبِّكَ ذِی الْجَلٰلِ وَالْاِكْرَامِ ﴿٧٨﴾

دروغ گڼړئ؟ | برکت والا دے | نوم | ستا دَ رب | خاوند دَ لوئے شان | او عظمت دے.

گڼړئ؟ ستا دَ رب نوم ډیر برکتی دے چه دَ لوئے شان او عظمت خاوند دے.

سُوْرَةُ الْوَاقِعَةِ مَكِّیَّةٌ وَّهِیَ سِتٌّ وَّتِسْعُوْنَ اٰیَةً وَّثَلٰثُ رُكُوْعَاتٍ

سورۂ واقعه په مکه کښے نازل شوا وپه دے کښے ٩٦ آیتونه او ٣ رکوع دی

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ

(شروع) په نامه دَ الله چه لوئے مهربان ډیر زیات رحم کوونکے دے

دَ الله په نامه شروع کوم چه لوئے مهربان دَ ډیر زیات رحم خاوند دے

اِذَا وَقَعَتِ الْوَاقِعَةُ ﴿١﴾ لَیْسَ لِوَقْعَتِهَا كَاذِبَةٌ ﴿٢﴾ خَافِضَةٌ

هرکله چه واقع شی | واقع کیدونکے (قیامت) | نشته | په واقع کیدو دَ دے کښے | دروغ | ښکته کوونکے

څهٔ وخت چه قیامت راشی، چه دَ هغے په واقع کیدو کښے هیڅ خلاف نشته. نو څوک به ښکته کړی

رَّافِعَةٌ ﴿٣﴾ اِذَا رُجَّتِ الْاَرْضُ رَجًّا ﴿٤﴾ وَّبُسَّتِ الْجِبَالُ

اوچتوونکے دے | هرکله چه خوزولے به شی | زمکه | سخته زلزلے سره | او ریزه ریزه به شی | غرونه

(او) څوک به بره کړی، څهٔ وخت چه به په زمکه په ډیرزوړ سره زلزله راشی. او غرونه به ریزه ریزه

بَسًّا ﴿٥﴾ فَكَانَتْ هَبَآءً مُّنْۢبَثًّا ﴿٦﴾ وَّكُنْتُمْ اَزْوَاجًا ثَلٰثَةً ﴿٧﴾

په ریزه ریزه کیدو سره | نو شی به | دوړه | خوره (الوتلے) | او شئ به تاسو | قسمونه | درے

شی. نو خوره (الوتلے) دوړه به شی. او ستاسو به درے ډلے شی.

فَاَصْحٰبُ الْمَیْمَنَةِ ﴿٨﴾ مَآ اَصْحٰبُ الْمَیْمَنَةِ ﴿٨﴾ وَاَصْحٰبُ الْمَشْـَٔمَةِ

نو ښی لاس والا | څهٔ (ښهٔ) دی ښی لاس والا | او گس لاس والا

نو دَ ښی لاس خاوندان، دغه دَ ښی لاس خاوندان څومره ښهٔ خلق دی او دَ گس لاس خاوندان

وقف لازم

مَآ اَصْحٰبُ الْمَشْئَمَةِ ۝٩ وَالسّٰبِقُوْنَ السّٰبِقُوْنَ ۝١٠ اُولٰٓئِكَ

څهٔ (بد) دی کس لاس والا | اوکوم چه وړاندې تلونکی دی | هغه هم وړاندې تلونکی دی | هم داخلق

دغه دَ کس لاس خاوندان څومره حزاب خلق دی او (کوم چه) دَ او چتے مرتبے خاوندان (دی نو) هغوئ دَ اُوچتے مرتبے خاوندان دی

الْمُقَرَّبُوْنَ ۝١١ فِیْ جَنّٰتِ النَّعِيْمِ ۝١٢ ثُلَّةٌ مِّنَ الْاَوَّلِيْنَ ۝١٣

(الله ته) نزدے دی | په باغونو کښے | دَ نعمت به وی | ډیر به وی | له پخوانو خلقو نه

هغوئ (الله ته) ډیر نزدے دی چه دَ نعمتونو نه ډک باغونو کښے به وی، په دوئ کښے یو لوئے ټولے به دَ پخوانو وی۔

وَقَلِيْلٌ مِّنَ الْاٰخِرِيْنَ ۝١٤ عَلٰى سُرُرٍ مَّوْضُوْنَةٍ ۝١٥ مُّتَّكِـِٕيْنَ

او لږ به وی | له وروستنو خلقو نه | په تختونو (به وی) | دَ سرو زرو نه پنړے شوی | تکیه وهونکی

او لږ خلق به دَ وروستنو خلقو نه وی۔ دوئ به دَ سرو زرو دَ تارونو نه په پنړ لوشوو تختونو، اړخونه لګولی یو

عَلَيْهَا مُتَقٰبِلِيْنَ ۝١٦ يَطُوْفُ عَلَيْهِمْ وِلْدَانٌ مُّخَلَّدُوْنَ ۝١٧

په هغے باندې | یو بل ته مخامخ | ګیرچاپیره به ګرځی | په دوی باندې | خادمان | همیشه ځوانان

بل ته مخامخ ناست وی، داسے هلکان به ورباندې څیزونه ګرځوی چه تل به هلکان وی

بِاَكْوَابٍ وَّاَبَارِيْقَ ۙ وَكَاْسٍ مِّنْ مَّعِيْنٍ ۝١٨ لَّا يُصَدَّعُوْنَ عَنْهَا

په ګلاسونو | او چګونو | او جامونو سره | له صفا شرابو نه | نهٔ به دَ سردرد راځی | له هغے نه

صراحئ او کوزے او دَ بهیدونکو شرابو (ډکے) پیالئ۔ چه نهٔ به سرخوږے راولی

وَلَا يُنْزِفُوْنَ ۝١٩ وَفَاكِهَةٍ مِّمَّا يَتَخَيَّرُوْنَ ۝٢٠ وَلَحْمِ طَيْرٍ

او نهٔ به دوئ مستیږی | او میوے | له هغه څهٔ نه | چه دوئ ئے غواړی | او غوښه | دَ مرغانو

او نهٔ به په عقل تیارهٔ راغوړوی، او داسے میوے کومے چه هغوئ خوښوی۔ او دَ مرغانو غوښه کومه چه

مِّمَّا يَشْتَهُوْنَ ۝٢١ وَحُوْرٌ عِيْنٌ ۝٢٢ كَاَمْثَالِ اللُّؤْلُؤِ الْمَكْنُوْنِ ۝٢٣

چه دوی به ئے خوښوی | او حورے دَ غټو سترګو | په شان | دَ ملغلرو | پټو ساتلے شوو

دَ هغوئ زړونه غواړی، او حورے دَ غټو غټو سترګے میرمنے، داسے پاکیزه لکه پټے ساتلے ملغلرے۔

جَزَآءًۢ بِمَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ۝٢٤ لَا يَسْمَعُوْنَ فِيْهَا

بدله | دَ هغه څهٔ | چه دوی به کول | دوی به نهٔ آوری | په جنت کښے

دا به دَ هغوئ دَ نیکو عملونو بدله وی چه هغوئ به کول۔ نهٔ به هلته فضول خبره

لَغْوًا وَّلَا تَاْثِيْمًا ۝٢٥ اِلَّا قِيْلًا سَلٰمًا سَلٰمًا ۝٢٦ وَاَصْحٰبُ الْيَمِيْنِ ۙ

فضول خبره | او نهٔ دَ ګناه خبره | مګر وینا | سلام سلام | او دَ ښی لاس خاوندان

اُوری او نهٔ دَ ګناه وینا، بس هر طرف نه به هم دَ سلام سلام آواز راځی او دَ ښی لاس خاوندان

مَآ اَصْحٰبُ الْيَمِيْنِ ۝٢٧ فِیْ سِدْرٍ مَّخْضُوْدٍ ۝٢٨ وَّطَلْحٍ

څهٔ (ښهٔ) به وی | دَ ښی لاس خاوندان | (دوئ به وی په) بیرو | بے ازغو کښے | او کیلے

څومره ښهٔ خلق دی، هلته به اُوسیږی چه بے ازغو بیرے به په کښے وی، او قط په قط

مَّنْضُوْدٍ ﴿٢٩﴾ وَّظِلٍّ مَّمْدُوْدٍ ﴿٣٠﴾ وَّمَآءٍ مَّسْكُوْبٍ ﴿٣١﴾ وَّفَاكِهَةٍ كَثِيْرَةٍ ﴿٣٢﴾

قط په قط | او په سوری اوږده کښے | او په اوبو راایږولو شوو کښے | او په میوو | ډیرو کښے ـ

کیلے به وی او اوږده او اوږده سوری به وی ، او بهیدونکے اوبهٔ به وی ، او ډیرے ډیرے میوے به وی

لَّا مَقْطُوْعَةٍ وَّلَا مَمْنُوْعَةٍ ﴿٣٣﴾ وَّفُرُشٍ مَّرْفُوْعَةٍ ﴿٣٤﴾ اِنَّآ

چه نهٔ به ختمیږی | او نهٔ به منع کیدے شی | او په فرشونو | اُوچت کړے شوو کښے | بیشکه مونږ

نهٔ به خلاصیږی او نهٔ به پرے بانږ څهٔ بندیزوی او اُوچت اُوچت فرشونه به وی ، مونږ دغه ملئے

اَنْشَاْنٰهُنَّ اِنْشَآءً ﴿٣٥﴾ فَجَعَلْنٰهُنَّ اَبْكَارًا ﴿٣٦﴾ عُرُبًا اَتْرَابًا ﴿٣٧﴾

پیدا کړلے دا (حورے) | په خاص انداز سره | پس جوړے کړلے مونږ دوئ | پیغلے | محبوبے | همځولے

ښځے ډیرے ښے روغے کړی دی ، داسے موسازے کړی دی چه تل به پیغلے، محبوبے او همځولے وی ،

لِّاَصْحٰبِ الْيَمِيْنِ ﴿٣٨﴾ ثُلَّةٌ مِّنَ الْاَوَّلِيْنَ ﴿٣٩﴾ وَثُلَّةٌ

دَ ښی لاس دَ خاوندانو دَ پاره | (دوی به وی) ډیر | له پخوانو خلقو نه | او ډیر

دَ ښی لاس دَ خاوندانو دَ پاره ، په دوئ کښے ډیر کسان به دَ پخوانو خلقو وی ، او ډیر کسان به

ع ٣٨ / ١٤

مِّنَ الْاٰخِرِيْنَ ﴿٤٠﴾ وَاَصْحٰبُ الشِّمَالِ ۙ مَآ اَصْحٰبُ الشِّمَالِ ﴿٤١﴾

له وروستنو خلقو نه | او دَ کس لاس خاوندان | څومره (بد دی) دَ کس لاس خاوندان

دَ وروستنو خلقو وی ـ او څوک چه دَ کس اړخ خاوندان وی (هائے هائے!) دَ کس اړخ خاوندان څومره خراب خلق دی!

فِيْ سَمُوْمٍ وَّحَمِيْمٍ ﴿٤٢﴾ وَّظِلٍّ مِّنْ يَّحْمُوْمٍ ﴿٤٣﴾ لَّا بَارِدٍ

په ګرم باد | او په ګرمو اوبو کښے به وی | او په سوری (کښے) | دَ تور لوګی | نهٔ به یخ دی

په ګرمو بادونو او په ایشیدلو اوبو کښے او دَ تک تور لوګی په سوری کښے به وی چه نهٔ به یخ وی

وَّلَا كَرِيْمٍ ﴿٤٤﴾ اِنَّهُمْ كَانُوْا قَبْلَ ذٰلِكَ مُتْرَفِيْنَ ﴿٤٥﴾ وَكَانُوْا يُصِرُّوْنَ

او نهٔ به دَ عزت وی | بیشکه دوی | وو | له دے نه وړاندے | خوشحاله | او دوئ به ضد کولو

او نهٔ به زړهٔ خوشحالوی ـ دغه خلق دَ دے (قیامت) نه وړاندے ډیر خوشحاله وو ، او په ډیره غټه ګناه (یعنی شرک) باندے

عَلَى الْحِنْثِ الْعَظِيْمِ ﴿٤٦﴾ وَكَانُوْا يَقُوْلُوْنَ ۙ اَئِذَا مِتْنَا وَكُنَّا

په ګناه | لویه | او دوئ به وئیل | آیا هرکله چه | مونږ مړهٔ شو | او شو مونږ

کلک نښتی وو ـ او دا به ئے وئیل چه آیا مونږ چه بو حُل مړهٔ شو او خاورے

تُرَابًا وَّعِظَامًا ءَاِنَّا لَمَبْعُوْثُوْنَ ﴿٤٧﴾ اَوَ اٰبَآؤُنَا الْاَوَّلُوْنَ ﴿٤٨﴾ قُلْ اِنَّ

خاورے | او هډوکی | آیا مونږ به | دوباره راپاڅولے شو | آیا زمونږ پخوانی پلاران نیکونه (هم) | ووایه | بیشکه

او هډوکی شو نو لا بیا به هم راژوندی کیږو ؟ او لا زمونږ پخوانی پلاران نیکونه هم ؟ (اے نبی!) ته ورته

الْاَوَّلِيْنَ وَالْاٰخِرِيْنَ ﴿٤٩﴾ لَمَجْمُوْعُوْنَ ۙ اِلٰى مِيْقَاتِ يَوْمٍ

وړاندینی (هم) | او وروستنی (هم) | ضرور به جمع کولے شی | په مقرره وخت دَ یوے ورځے

ووایه چه وړاندینی او وروستنی ټول به راغونډولے شی ـ دَ یوے مقررے ورځے

مَّعْلُوْمٍ ﴿۵۰﴾ ثُمَّ اِنَّكُمْ اَيُّهَا الضَّآلُّوْنَ الْمُكَذِّبُوْنَ ﴿۵۱﴾

معلومے | بیا | بیشکه تاسو | اے | گمراهانو | دروغ گنړونکو

په ټاکلی وخت بیا به تاسو اے گمراهانو ! دروغ گنړونکو !

لَاٰكِلُوْنَ مِنْ شَجَرٍ مِّنْ زَقُّوْمٍ ﴿۵۲﴾ فَمَالِـُٔوْنَ مِنْهَا الْبُطُوْنَ ﴿۵۳﴾

خامخا به خوړئ تاسو | او نه | دَ زقوم | بیا به ډکوئ | له هغې نه | خیټې

دَ زقوم دَ ونې نه خوراکونه کوئ ، بیا به هم له دے نه خیټې ډکوئ

فَشٰرِبُوْنَ عَلَيْهِ مِنَ الْحَمِيْمِ ﴿۵۴﴾ فَشٰرِبُوْنَ شُرْبَ الْهِيْمِ ﴿۵۵﴾

بیا به څښئ | په هغې باندِ | یشیدلے اوبه | بیا به څښئ | په شان دَ څښلو | دَ اُوښ تږی

بیا به په دے باندِ یشیدلے اُوبۀ څښئ ، بیا به دَ سخت تږی اُوښ په شان څښئ .

هٰذَا نُزُلُهُمْ يَوْمَ الدِّيْنِ ﴿۵۶﴾ نَحْنُ خَلَقْنٰكُمْ فَلَوْلَا تُصَدِّقُوْنَ ﴿۵۷﴾

دا به | دَ دوئ میلمستیاوی | په ورځ دَ جزا | هم مونږ | پیدا کړئ تاسو | پس ولے تصدیق نۀ کوئ تاسو

دا به دَ قیامت په ورځ دَ هغوئ میلمستیاوی ، هم مونږ تاسو پیدا کړی یئ بیا ولے قیامت نه منئ ؟

اَفَرَءَيْتُمْ مَّا تُمْنُوْنَ ﴿۵۸﴾ ءَاَنْتُمْ تَخْلُقُوْنَهٗٓ اَمْ نَحْنُ

آیا وینئ تاسو | هغه څۀ | چه تاسو ئے توئ‌وئ | آیا تاسو | پیدا کوئ هغه | یا هم مونږ

ښه ! دا راته ووایئ چه تاسو کومه منی (رحم ته) رسوئ نو تاسو تړے نه بنیادم رغوئ کۀ مونږ ئے

الْخٰلِقُوْنَ ﴿۵۹﴾ نَحْنُ قَدَّرْنَا بَيْنَكُمُ الْمَوْتَ وَمَا

پیدا کوونکی یُو ؟ | مونږ | مقرر کړے دے | ستاسو په مینځ کښے | مرګ | او نۀ یُو

ترے ئے پیدا کوو ؟ مونږ ستاسو تر مینځه مرګ مقرر کړے دے او مونږ دَ

نَحْنُ بِمَسْبُوْقِيْنَ ﴿۶۰﴾ عَلٰٓى اَنْ نُّبَدِّلَ اَمْثَالَكُمْ وَ

مونږ | عاجز کړی شوی | له دے خبرے نه چه | بدل کړو مونږ | ستاسو غوندِ خلق | او

دے نه عاجزه نۀ یُو چه ستاسو په ځائے ستاسو غوندِ نور خلق راپیدا کړو او تاسو

نُنْشِئَكُمْ فِيْ مَا لَا تَعْلَمُوْنَ ﴿۶۱﴾ وَلَقَدْ عَلِمْتُمُ النَّشْاَةَ

مونږ پیدا کړو تاسو | په داسے صورت کښے | چه تاسو ئے نۀ پیژنئ | او بیشکه پیژنئ تاسو | پیدا اوښت

په داسے حالت کښے راپیدا کړو چه تاسو نه هغه معلوم نۀ وی ، او تاسو ته دَ وړومبی پیدا اوښت حال ډیر ښه

الْاُوْلٰى فَلَوْلَا تَذَكَّرُوْنَ ﴿۶۲﴾ اَفَرَءَيْتُمْ مَّا تَحْرُثُوْنَ ﴿۶۳﴾

وړومبے | بیا ولے نۀ | کوئ غور تاسو | آیا کتلی دی تاسو | هغه څۀ چه | کرئ ئے تاسو ؟

معلوم دے بیا ولے ځان نۀ پوهوئ ؟ ښه ! دا خو ووایئ چه تاسو چه څۀ کروندہ کوئ نو

ءَاَنْتُمْ تَزْرَعُوْنَهٗٓ اَمْ نَحْنُ الزّٰرِعُوْنَ ﴿۶۴﴾

آیا تاسو | رازرغونوئ هغه | یا | هم مونږ | راټوکوونکی یُو ؟

هغه تاسو راټوکوئ کۀ مونږ ئے راز رغنوو ؟

لَوْ نَشَآءُ لَجَعَلْنٰهُ حُطَامًا فَظَلْتُمْ تَفَكَّهُوْنَ ﴿٦٥﴾ اِنَّا

کهٔ چرې | مونږ وغواړو | نو کړو به مونږ دا | ریزه ریزه | پس شئ به تاسو | حیران پاتې شوی | بیشکه مونږ

کهٔ مونږ وغواړو نو هغه به چُوره چُوره کړو نو تاسو به ورته حریان دریان پاتې شئ. چه اوس

لَمُغْرَمُوْنَ ﴿٦٦﴾ بَلْ نَحْنُ مَحْرُوْمُوْنَ ﴿٦٧﴾ اَفَرَءَيْتُمُ الْمَآءَ الَّذِيْ

په تاوان کښې پریوتلُو | بلکه | مونږ یُو | بې نصیبه | آیا کتلی دی تاسو | هغه اوبهٔ | کوم چه

خو مونږ په تاوان کښې راغلو. بلکه (داخل خو) بالکل نشتوی پاتې شو. ښه! (دا دے) اوبو ته خو وګورئ چه تاسو

تَشْرَبُوْنَ ﴿٦٨﴾ ءَاَنْتُمْ اَنْزَلْتُمُوْهُ مِنَ الْمُزْنِ اَمْ نَحْنُ الْمُنْزِلُوْنَ ﴿٦٩﴾

تاسو څښئ | آیا تاسو | رابښکته کړی دی دا | له وریځې نه | یا هم مونږ | ښکته راوستونکی یُو

ئې څښئ. آیا دا تاسو د وریځو نه راوروی که دا دے وَرَوْنکی هم مونږه یُو؟

لَوْ نَشَآءُ جَعَلْنٰهُ اُجَاجًا فَلَوْلَا تَشْكُرُوْنَ ﴿٧٠﴾ اَفَرَءَيْتُمُ النَّارَ

کهٔ چرې مونږ وغواړو | نو کړو به مونږ دا | ترخې | نو تاسو ولې شکر نهٔ کوئ | آیا لیدلې دې تاسو | هغه اور

کهٔ مونږ وغواړو نو دا به ترخې کړو نو تاسو ولې شکر نهٔ کوئ؟ ښه! هم اور ته وګورئ

الَّتِيْ تُوْرُوْنَ ﴿٧١﴾ ءَاَنْتُمْ اَنْشَاْتُمْ شَجَرَتَهَآ اَمْ نَحْنُ

کوم چه | تاسو ئې بلوئ | آیا تاسو | پیدا کړې ده | اونه د هغې | یا | هم مونږ

کوم چه تاسو بلوئ. آیا دَ دے اُونه تاسو پیدا کړې ده یا د دَ دے) پیدا کوونکی

الْمُنْشِـُٔوْنَ ﴿٧٢﴾ نَحْنُ جَعَلْنٰهَا تَذْكِرَةً وَّمَتَاعًا لِّلْمُقْوِيْنَ ﴿٧٣﴾

پیدا کوونکی یُو | هم مونږ | جوړ کړو دا | نصیحت | او فائده | دَ پاره دَ مسافرو

مونږ یُو؟ دا خو مونږه دَ نصیحت یوه ذریعه او حاجتمند وکسانو له فائده منند څیز جوړ کړے دے

فَسَبِّحْ بِاسْمِ رَبِّكَ الْعَظِيْمِ ﴿٧٤﴾ فَلَآ اُقْسِمُ بِمَوٰقِعِ النُّجُوْمِ ﴿٧٥﴾

ع ٢ ٣٦ ١٥

پس پاکی بیانوه | دَ نامه | دَ رب خپل | چه لوئے شان والا دے | پس زهٔ قسم خورم | په ځائے دَ پریوتلو | دَ ستورو

نو تهٔ دَ خپل لوئے رب دَ نوم تسبیح لوله. نو زهٔ دَ ستورو په ډوبیدلو قسم خورم.

وَاِنَّهٗ لَقَسَمٌ لَّوْ تَعْلَمُوْنَ عَظِيْمٌ ﴿٧٦﴾ اِنَّهٗ لَقُرْاٰنٌ كَرِيْمٌ ﴿٧٧﴾

او بیشکه دا | یو قسم دے | کهٔ چرې تاسو پوهیږئ | ډیر لوئے | چه بیشکه دا | قرآن | خاوند دَ لوئے شان دے

او کهٔ تاسو پوهیږئ نو دا ډیر لوئے قسم دے چه دا یو ډیر عزتمند قرآن دے.

فِيْ كِتٰبٍ مَّكْنُوْنٍ ﴿٧٨﴾ لَّا يَمَسُّهٗٓ اِلَّا الْمُطَهَّرُوْنَ ﴿٧٩﴾ تَنْزِيْلٌ

په یو کتاب کښې | چه پټ دے | لاس نهٔ شی وروړے دهٔ ته | مګر | پاک شوی | رالیږولے شوے دے

چه په لوح محفوظ کښې (لیکلے شوے) دے چه دَ پاکانو نه سِوا هیڅوک ورته ګوتې وروړلے نهٔ شی. دا (قرآن) دَ

مِّنْ رَّبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿٨٠﴾ اَفَبِهٰذَا الْحَدِيْثِ اَنْتُمْ مُّدْهِنُوْنَ ﴿٨١﴾

له طرفه دَ رب | دَ عالمونو | پس آیا په دے خبره | تاسو انکار کوونکی یئ

پروردګار عالم دَ طرف نه نازل کړے شوے دے. نو آیا اوس تاسو دَ دے کلام په منلو کښې سستیا کوئ؟

وَتَجْعَلُوْنَ رِزْقَكُمْ اَنَّكُمْ تُكَذِّبُوْنَ ﴿۸۲﴾ فَلَوْلَآ اِذَا بَلَغَتِ

او جوړوئ تاسو | خپل رزق (پیشه) | داچه تاسو | دا دروغ گڼرئ | بیا ولے نه | هر کله چه | راورسیږی (روح)

او دَ دے دروغژن کول موخپل ځان له (لکه) خوراکه چه جوړه کړے ده۔ نو څهٔ وخت چه روح مری ته

الْحُلْقُوْمَ ﴿۸۳﴾ وَاَنْتُمْ حِيْنَئِذٍ تَنْظُرُوْنَ ﴿۸۴﴾ وَنَحْنُ اَقْرَبُ اِلَيْهِ

حلق ته | او تاسو | هغه وخت | گورئ | او مونږ | زیات نزدے یُو | دهٔ ته

راوُخیژی ۔ او په دغه وخت کښے تاسو ورته گورئ او دغے کس ته مونږ تاسو نه

مِنْكُمْ وَلٰكِنْ لَّا تُبْصِرُوْنَ ﴿۸۵﴾ فَلَوْلَآ اِنْ كُنْتُمْ غَيْرَ مَدِيْنِيْنَ ﴿۸۶﴾

ستاسو په نسبت | لیکن | نهٔ وینئ تاسو | نو ولے نه | کهٔ چرے تاسو | دَ چا محکوم نهٔ یئ۔

زیات نزدے یُو خو تاسو (مونږ) نهٔ وینئ، نو کهٔ تاسو دَ چا په حکم نهٔ یئ (نو) دغه (روح) پستنه ولے

تَرْجِعُوْنَهَآ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ﴿۸۷﴾ فَاَمَّآ اِنْ كَانَ مِنَ الْمُقَرَّبِيْنَ ﴿۸۸﴾

بیرته راگرځوی دا | کهٔ چرے تاسو | رښتینی یئ۔ | پس کهٔ چرے وی هغه | په نزدیکانو خلقو کښے

نهٔ راگرځوئ کهٔ تاسو (په خپله وینا کښے) رښتینی یئ، نو څوک چه په نزدیکانو خلقو کښے شمیروی۔

فَرَوْحٌ وَّرَيْحَانٌ ۙ وَّجَنَّتُ نَعِيْمٍ ﴿۸۹﴾ وَاَمَّآ اِنْ كَانَ مِنْ اَصْحٰبِ الْيَمِيْنِ ﴿۹۰﴾

نو آرام دے | او خوشبویه گلونه | او باغ دَ نعمت دے | او کهٔ چرے | هغه وی | دَ ښی لاس له خاوندانو نه

نو هغهٔ له راحت دَے او خوراکونه دی۔ او دَ عیش باغونه دی او څوک چه دَ ښی ارخ خلق وی (نو هغهٔ ته به وویلے شی چه)

فَسَلٰمٌ لَّكَ مِنْ اَصْحٰبِ الْيَمِيْنِ ﴿۹۱﴾ وَاَمَّآ اِنْ كَانَ مِنَ الْمُكَذِّبِيْنَ

نو سلام دے | په تا باندے | دَ ښی لاس دَ خاوندانو له طرف نه | او کهٔ چرے | هغه وی | له دروغ گڼرونکو

تهٔ په امن امان سره وُسیږه ځکه چه تهٔ دَ ښی لاس خاوند یئے۔ او څوک چه دروغ گڼرونکی گمراهان

الضَّآلِّيْنَ ﴿۹۲﴾ فَنُزُلٌ مِّنْ حَمِيْمٍ ﴿۹۳﴾ وَّتَصْلِيَةُ جَحِيْمٍ ﴿۹۴﴾ اِنَّ هٰذَا لَهُوَ

گمراهانو نه | نو میلمستیا ده | له یشیدلو اوبو نه | او داخلیدل دی | دوزخ ته | بیشکه دا دے | هم هغه

وی ۔ نو هغوئ ته به دَ یشیدلو اوبو میلمستیا ورکولے شی او په دوزخ کښے به ورننوځی بیشکه دا خبره

حَقُّ الْيَقِيْنِ ﴿۹۵﴾ فَسَبِّحْ بِاسْمِ رَبِّكَ الْعَظِيْمِ ﴿۹۶﴾

حق | دَ یقین قابل | پس تهٔ پاکیزگی بیانوه | دَ نامے دَ رب خپل | چه دَ لوئے شان خاوند دے

حقه ده ۔ نو تهٔ دَ خپل لوئے رب دَ نامے تسبیح لوله۔

سُوْرَةُ الْحَدِيْدِ مَدَنِيَّةٌ وَّهِيَ تِسْعٌ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | وَعِشْرُوْنَ اٰيَةً وَّاَرْبَعُ رُكُوْعَاتٍ

سوره حدید په مکه کښے نازل شوا | (شروع) دَ الله په نامه چه لوئے مهربان دَ یر زیات رحم کوونکے دے | په دے کښے ۲۹ اَیتونه او ۴ رکوع دی

دَ الله په نامه شروع کوم چه لوئے مهربان دَ یر زیات رحم خاوند دے

سَبَّحَ لِلّٰهِ مَا فِى السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۚ وَهُوَ الْعَزِيْزُ

پاکی بیانوی | دَ الله | کوم مخلوق چه دے | په آسمانونو کښے | او په زمکه (کښے) | او هغه | دَیر غالب

دَ الله پاکی بیانوی څوک چه په آسمانونو او په زمکه کښے (استوگن) دی او هغه غالب دے

الْحَكِيمُ ① لَهُ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ ۚ يُحْيِ

دَ حکمت خاوند دے | دَ دهٔ دلا | بادشاهي | دَ آسمانونو | او دَ زمکے | دے ژوندی کوی

دَ حکمت خاوند دے۔ دَ آسمانونو او دَ زمکے بادشاهي یوازے دَ هغهٔ دلا ۔ هم هغه دے چه ژوند بخښی

وَيُمِيتُ ۚ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ② هُوَ الْأَوَّلُ

او مرهٔ کوی | او دے | په هر څیز باندِ | قدرت لرونکے دے | هم دے | اول

او هم هغه دے چه مرګ راولی او الله تعالیٰ په هر څیز باندِ قادر دے، هم دے دے چه دَ ټولو نه اول

وَالْأٰخِرُ وَالظَّاهِرُ وَالْبَاطِنُ ۚ وَهُوَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ ③

او آخر | او ښکاره | او پټ دے | او دے | په هر څیز باندِ | پوهه دے.

او دَ ټولو نه وروستو دے، ښکاره هم هغه دے او پټ هم هغه دے، او په هر څهٔ ډیر ښهٔ پوهه دے.

هُوَ الَّذِي خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضَ فِي سِتَّةِ أَيَّامٍ

هم دے دے | چا چه | پیدا کړل | آسمانونه | او زمکه | په شپږو | ورځو کښے

(الله) داسے ذات دے چه آسمانونه او زمکه ئے په شپږو ورځو کښے پیدا کړل

ثُمَّ اسْتَوٰى عَلَى الْعَرْشِ ۚ يَعْلَمُ مَا يَلِجُ فِي الْأَرْضِ

بیا | دے قائم شو | په عرش باندِ | دے پوهه دے | په هغه څهٔ | چه داخلیږی | په زمکه کښے

بیا دَ بادشاهئ په تخت قائم شو ۔ الله ته معلوم دی څهٔ چه په زمکه کښے ورننوزی

وَمَا يَخْرُجُ مِنْهَا وَمَا يَنْزِلُ مِنَ السَّمَاءِ وَمَا يَعْرُجُ

او څهٔ چه | اوځی | له دے نه | او څهٔ چه | ښکته راځی | له آسمان نه | او څهٔ چه | بره خیژی

او څهٔ چه ترے نه راوُزی او څهٔ چه دَ آسمان نه راکوزیږی او څهٔ چه ورته

فِيهَا ۚ وَهُوَ مَعَكُمْ أَيْنَ مَا كُنْتُمْ ۚ وَاللّٰهُ بِمَا

په دے کښے | او دے | تاسو سره دے | کوم ځائے چه | تاسو یئ | او الله | هغه څهٔ ته چه

خیژی، او هغه د رسره مل وی هر ځائے کښے چه تاسو یئ او الله تعالیٰ ستاسو

تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ④ لَهُ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ ۚ

تاسو ئے کوئ | ګوری | هم دَ دهٔ دے | حکومت | دَ آسمانونو | او دَ زمکے

ټول کارونه وینی ګوری ۔ دَ آسمانونو او دَ زمکے بادشاهي یوازے دَ هغهٔ دلا،

وَإِلَى اللّٰهِ تُرْجَعُ الْأُمُورُ ⑤ يُولِجُ اللَّيْلَ فِي النَّهَارِ

او هم دَ الله طرف ته | واپس ګرځولے شی | ټول کارونه | دے داخلوی | شپه | په ورځ کښے

او ټولے معاملے په الله تعالیٰ ته پسته ځی، هغه شپه په ورځ کښے ننباسی

وَيُولِجُ النَّهَارَ فِي اللَّيْلِ ۚ وَهُوَ عَلِيمٌ بِذَاتِ الصُّدُورِ ⑥

او داخلوی | ورځ | په شپه کښے | او دے | پوهه دے | په رازونو | دَ سینو

او ورځ په شپه کښے ننباسی، او هغه دَ زړونو په رازونو ښهٔ پوهه دے۔

اٰمِنُوْا بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ وَاَنْفِقُوْا مِمَّا جَعَلَكُمْ مُّسْتَخْلَفِيْنَ

ایمان راوړئ | په الله | او دده په رسول | او خرڅ کوئ | له هغه څه نه | چه ده جوړ کړئ تاسو | جانشینان

تاسو په الله تعالیٰ او دده په رسول ایمان راوړئ او د هغې مالونو نه یوه برخه خیرات کړئ چه تاسو ئې پکښې د نورو خلقو

فِيْهِ ۚ فَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مِنْكُمْ وَاَنْفَقُوْا لَهُمْ اَجْرٌ كَبِيْرٌ ⑦

په هغې کښې | پس کوم خلق چه | ایمان راوړو | له تاسو نه | او هغوئ خرڅ وکړو | هغوئ د پاره دے | اجر | لوئے

خلیفه کان کړی یئ۔ په تاسو کښې څوک چه ایمان راوړی او خیراتونه وکړی نو هغوئ له غټه بدله مقرر ده۔

وَمَا لَكُمْ لَا تُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ ۚ وَالرَّسُوْلُ يَدْعُوْكُمْ لِتُؤْمِنُوْا

او په تاسو څه وشول | چه تاسو ایمان نه راوړئ | په الله | او رسول | دعوت درکوی تاسو ته | چه تاسو ایمان راوړئ

او دا په تاسو څه شوی دی چه په الله ایمان نه راوړئ؟ او حال دا چه رسول مو د ے خبرے ته رابلی چه تاسو په خپل رب

بِرَبِّكُمْ وَقَدْ اَخَذَ مِيْثَاقَكُمْ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ⑧ هُوَ الَّذِيْ

په خپل رب باندې | او بیشکه اخستے دے هغه | کلکه وعده له تاسو نه | که چرے یئ تاسو | مؤمنان | هم دے دے هغه ذات

ایمان راوړئ او الله تعالیٰ له تاسو نه کلکه وعده هم اخستے ده که چرے تاسو ایمان لرئ۔ الله هغه ذات دے

يُنَزِّلُ عَلٰى عَبْدِهٖۤ اٰيٰتٍۭ بَيِّنٰتٍ لِّيُخْرِجَكُمْ مِّنَ الظُّلُمٰتِ

چه نازلوی | په خپل بنده باندې | آیتونه | واضحه | چه دے راوباسی تاسو | له تیاروں نه

چه په خپل (کامل) بنده ئے صفا صفا آیتونه رانازل کړی دی چه تاسو له تیارو نه رانړا

اِلَى النُّوْرِ ۗ وَاِنَّ اللّٰهَ بِكُمْ لَرَءُوْفٌ رَّحِيْمٌ ⑨ وَمَا لَكُمْ

رنړا طرف ته | او بیشکه | الله | په تاسو | ډیر مهربان | نهایت رحم کوونکے دے | او په تاسو څه وشول

ته راوباسی، او یقیناً الله تعالیٰ په تاسو ډیر مشفق او مهربانه دے. او دا په تاسو څه شوی

اَلَّا تُنْفِقُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَلِلّٰهِ مِيْرَاثُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۗ

چه تاسو نه خرڅ کوئ | په لاره کښې | د الله | او الله د پاره دے | میراث | د آسمانونو | او د زمکے

دی چه د الله تعالیٰ په لاره کښې خرڅ نه کوئ، سره د دے چه آسمانونه او زمکه ټول به آخر الله تعالیٰ ته پاتے کیږی

لَا يَسْتَوِيْ مِنْكُمْ مَّنْ اَنْفَقَ مِنْ قَبْلِ الْفَتْحِ وَقٰتَلَ ۗ اُولٰٓئِكَ

برابر نه دی | له تاسو نه | چا چه خرڅ وکړو | وړاندې له فتح نه | او جنګ ئے وکړو | هم دا خلق دی

په تاسو کښې هغه کسان (د نورو سره) برابر نه دی چه د (مکے د) فتح نه وړاندې ئے (د الله په لاره کښې) خرڅونه کړی دی او جهاد ئے کړے دے، دغه

اَعْظَمُ دَرَجَةً مِّنَ الَّذِيْنَ اَنْفَقُوْا مِنْ بَعْدُ وَقٰتَلُوْا ۗ وَكُلًّا

زیات لوئے | په درجه کښې | له هغه خلقو نه | چه خرڅ ئے وکړو | پس له دے نه | او جهاد ئے وکړو | او هر یو سره

کسان په مرتبه کښې د هغه خلقو نه ډیر اوچت دی چه وروستو ئے خرڅونه کړی دی او جنګیدلی دی او الله د بیشکړے

وَّعَدَ اللّٰهُ الْحُسْنٰى ۗ وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرٌ ⑩ ع مَنْ ذَا الَّذِيْ

وعده کړے ده | الله | ښه | او الله | په هغه څه | چه تاسو ئے کوئ | خبردار دے | څوک دے | هغه چه

لوظ خو ټولو سره کړے دے۔ او الله تعالیٰ ستاسو د کارونو نه ښه خبردے۔ څوک شته چه

يُقْرِضُ اللّٰهَ قَرْضًا حَسَنًا فَيُضٰعِفَهٗ لَهٗ وَلَهٗٓ

قرض ورکوی | الله ته | قرض | ښهٔ | بیا دے غبرگ کړی دا | دهٔ دَ پاره | او دهٔ دَ پاره دے

الله تعالیٰ ته په ښهٔ شان قرضه ورکړی ، نو الله تعالیٰ به ئے ورله په څو څو چنده سوا کړی او دَ خوښئ

اَجْرٌ كَرِيْمٌ ﴿۱۱﴾ يَوْمَ تَرَى الْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُؤْمِنٰتِ يَسْعٰى نُوْرُهُمْ

اجر | لوئے | په کومه ورځ چه | ته به ووینے | مؤمنان سړی | او مؤمنانے ښځے | منډے به وهی | نور دَ دوی

بدله به ورله ورکړی ، هغه ورځ (هم دَ یاد ساتلو قابله ده) چه ته به مؤمنان او مؤمنانے ووینے چه (دَ ایمان) خپله

بَيْنَ اَيْدِيْهِمْ وَبِاَيْمَانِهِمْ بُشْرٰىكُمُ الْيَوْمَ جَنّٰتٌ تَجْرِىْ

په وړاندِ دَ دوی | او دَ دوی ښی طرف ته | زیرے دے تاسو ته | نن ورځ | دَ داسے باغونو | چه روان به وی

رڼا به ترے نه وړاندِ او ښی اړخ ته خوریږی ، نن تاسو ته زیرے درکوو دَ داسے باغونو چه دَ هغے

مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ؕ ذٰلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ ﴿۱۲﴾

لاندِ دَ هغے نه | ولے | همیشه به یئ | په هغے کښے | هم داده هغه | کامیابی لویه

لاندِ به ولے بهیږی تل به پکښے اوسیږئ ، هم دا دَ ټولو نه لویه کامیابی ده۔

يَوْمَ يَقُوْلُ الْمُنٰفِقُوْنَ وَالْمُنٰفِقٰتُ لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوا انْظُرُوْنَا

په کومه ورځ چه به | وائی | منافقان سړی | او منافقانے ښځے | هغه کسانو ته | چه ایمان ئے راوړے دے | چه انتظار وکړئ زمونږ

دا به هغه ورځ وی چه منافقان او منافقانے به دَ ایمان خاوندانو ته وائی چه مونږ ته (لږ) انتظار وکړئ

نَقْتَبِسْ مِنْ نُّوْرِكُمْ ۚ قِيْلَ ارْجِعُوْا وَرَآءَكُمْ فَالْتَمِسُوْا

چه رڼا واخلو مونږ | ستاسو دَ نور نه | وُبه وئیلے شی | چه واپس شئ | وروستو په شا کانو خپلو | پس ولټوئ

چه مونږ هم ستاسو دَ نور نه رڼا واخلو دوئ ته به ووئیلے شی چه تاسو واپس لاړ شئ بیا (هلته ځان له) رڼا

نُوْرًا ؕ فَضُرِبَ بَيْنَهُمْ بِسُوْرٍ لَّهٗ بَابٌ ؕ بَاطِنُهٗ فِيْهِ الرَّحْمَةُ

نور | بیا به ودرولے شی | دَ دوئ په مینځ کښے | یو دیوال | دَ دے به | یوه دروازه وی | دَ دے دننه خوا به | رحمت وی

ولټوئ بیا به دَ دے دواړو (ټولو) ترمینځه یو دیوال ودرولے شی چه پکښے به یوه دروازه وی چه دننه غاړے ته به پکښے رحمت

وَظَاهِرُهٗ مِنْ قِبَلِهِ الْعَذَابُ ﴿۱۳﴾ يُنَادُوْنَهُمْ اَلَمْ نَكُنْ مَّعَكُمْ ؕ

او دَ دے ظاهر چه دے | له وړاندِ دَ دهٔ نه | عذاب دے | هغوئ به دوئ ته آواز وکړی | آیا مونږ نه وُو | تاسو سره

وی ، او بهر اړخ ته به ترے نه عذاب وی ۔ منافقان به مومنانو پسے چغے وهی چه (اے خلقو!) ایا مونږ ستاسو

قَالُوْا بَلٰى وَلٰكِنَّكُمْ فَتَنْتُمْ اَنْفُسَكُمْ وَتَرَبَّصْتُمْ وَارْتَبْتُمْ

دوئ به وائی | ولے نه | لیکن تاسو | په فتنه کښے واچول | خپل ځانونه | او انتظار وکړو تاسو | او شک وکړو تاسو

ملگری نه وُو ، دوئ به وائی ولے نه تاسو پخپله خپل ځانونه په مصیبت کښے واچول او (زمونږ په حق کښے دَ مصیبتونو) تاسو انتظار کولو او شک

وَغَرَّتْكُمُ الْاَمَانِيُّ حَتّٰى جَآءَ اَمْرُ اللّٰهِ وَغَرَّكُمْ بِاللّٰهِ

او دوکه درکړه تاسو ته | آرزوگانو | تر دے چه | راغے | حکم | دَ الله | او دوکه درکړه تاسو ته | دَ الله په حقله

مو وکړو او ستاسو آرزوگانو تاسو په دوکه کښے واچولئ تر دے چه دَ الله تعالیٰ حکم (مرگ) راورسید او تاسو ته دَ الله په حقله فریبی

الْغَرُوْرُ ﴿۱۴﴾ فَالْيَوْمَ لَا يُؤْخَذُ مِنْكُمْ فِدْيَةٌ وَّلَا مِنَ الَّذِيْنَ

شیطان | پس نن ورځ به | نهٔ شی اخستلے | له تاسو نه | څهٔ فدیه | او نهٔ | له هغو خلقو نه

(شیطان) دوکه درکړه پس نن ورځ به نهٔ له تاسو نه څهٔ فدیه قبلولے شی او نهٔ له هغه خلقو نه چه کفر ئے

كَفَرُوْا ۭ مَاْوٰىكُمُ النَّارُ ۭ هِيَ مَوْلٰىكُمْ ۭ وَبِئْسَ الْمَصِيْرُ ﴿۱۵﴾

چه انکار ئے وکړو | ځائے ستاسو | اور دے | هم دا | ستاسو لائق دے | او بد دے | ځائے د ورتلو

اختیار کړے دے ستاسو ټولو ټیکاؤنړه دوزخ دے، هم دغه (دوزخ) ستاسو ملګرے دے او هغه ډیره خرابه ټیکاؤنړه ده.

اَلَمْ يَاْنِ لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اَنْ تَخْشَعَ قُلُوْبُهُمْ لِذِكْرِ اللّٰهِ وَمَا

آیا وخت نهٔ دے راغلے | هغه کسانو د پاره | چه ایمان ئے راوړو | چه نرم شی | زړونه د دوئ | د الله د ذکر د پاره | او هغه څهٔ د پاره

آیا په ایماندارو کسانو باندې لا هغه وخت راغلے نهٔ دے چه د هغوئ زړونه د الله تعالیٰ د ذکر او د هغهٔ د نازل شوی

نَزَلَ مِنَ الْحَقِّ ۙ وَلَا يَكُوْنُوْا كَالَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ مِنْ قَبْلُ

چه راکوز شو | له حق نه | او دوئ نهٔ وی | په شان د هغه کسانو | چه ورکړے شوے دے دوئ ته کتاب | وړاندې له دے نه

ربښتینی کلام په وړاند نرم شی او د هغه خلقو په شان نهٔ شی چه پخوا ورته کتاب ورکړے شوے وو

فَطَالَ عَلَيْهِمُ الْاَمَدُ فَقَسَتْ قُلُوْبُهُمْ ۭ وَكَثِيْرٌ مِّنْهُمْ فٰسِقُوْنَ ﴿۱۶﴾

نو اُوږده شوه | په دوئ باندې | موده | بیا سخت شول | زړونه د دوئ | او ډیر | په دوئ کښے | بدکاره دی

بیا په هغه یوه زمانه تیره شوه، بیا د هغوئ زړونه سخت شول او په هغوئ کښے ډیر کسان (اوس هم) بد عمله دی

اِعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ يُحْيِ الْاَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا ۭ قَدْ بَيَّنَّا لَكُمُ

پوهه شئ | چه الله | ژوندئ کوی زمکه | پس له مره کیدو د دے نه | بیشکه مونږ بیان کړل | تاسو د پاره

پوهه شئ چه الله تعالیٰ دا زمکه د اُوچیدو نه پس بیا راز رغونوی، مونږ تاسو ته پرا نستی مثالونه (حکم)

الْاٰيٰتِ لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُوْنَ ﴿۱۷﴾ اِنَّ الْمُصَّدِّقِيْنَ وَالْمُصَّدِّقٰتِ

آیتونه | چه تاسو | پوهه شئ | بیشکه | خیرات ورکوونکی سړی | او خیرات ورکوونکے ښځے

بیان کړی دی چه تاسو پرے ځان پوهه کړئ. بیشکه صدقه ورکوونکی سړی او صدقه ورکوونکے ښځے او

وَاَقْرَضُوا اللّٰهَ قَرْضًا حَسَنًا يُّضٰعَفُ لَهُمْ وَلَهُمْ اَجْرٌ

او کوم چه قرض ورکړو | الله ته | قرض | ښه | غبرګ به کړے شی (بدله) | دوئ د پاره | او دوئ د پاره به | اجر دی

هغه چه د الله تعالیٰ په لاره کښے په اخلاص خرڅ کوی نو د هغوئ صدقه به څوچنده زیاتولے شی او هغوئ د پاره ډیر د

كَرِيْمٌ ﴿۱۸﴾ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا بِاللّٰهِ وَرُسُلِهٖٓ اُولٰٓئِكَ هُمُ

د عزت | او کوم خلق چه | ایمان راوړی | په الله | او د دهٔ په رسولانو | هم دا خلق دی

عزت اجر دے. او چا چه په الله تعالیٰ او د دهٔ په رسولانو باندې ایمان راوړے دے هم دغه خلق

الصِّدِّيْقُوْنَ ۖ وَالشُّهَدَاۗءُ عِنْدَ رَبِّهِمْ ۭ لَهُمْ اَجْرُهُمْ وَنُوْرُهُمْ ۭ

ربښتینی | او شهیدان | د خپل رب په نزد | دوئ د پاره دے | د دوئ اجر | او نور د دوئ

ربښتینی دی. او خپل رب سره ګواهان دی، هغوئ د پاره (خصوصی) اجر دے او هغوئ د پاره نور هم دے

وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَكَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَآ اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ الْجَحِيْمِ ﴿۱۹﴾ ع

او هغه کسان چه | کفر ئے وکړو | او دروغ ئے وګڼړل | زمونږ آیتونه | هم دا خلق دی | دوزخیان

او کوم خلقو چه انکار وکړو او زمونږ آیتونه ئے دروغ وګڼړل نو هم دغه خلق دوزخیان دی

اِعْلَمُوْٓا اَنَّمَا الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا لَعِبٌ وَّلَهْوٌ وَّزِيْنَةٌ وَّتَفَاخُرٌۢ

پوهه شئ | چه بیشکه | ژوند | دَ دُنیا | لوبے | او تماشے | او ښائست | او فخر دے

پوهه شئ چه دَ دنیا ژوند خو بس لوبه تماشه او (سامان دَ) ښائست دے او په خپل مینځ کښے

بَيْنَكُمْ وَتَكَاثُرٌ فِى الْاَمْوَالِ وَالْاَوْلَادِؕ كَمَثَلِ غَيْثٍ

په مینځ ستاسو کښے | او ډیر والے دے | په مالونو کښے | او اولاد (کښے) | په شان | دَ باران

په یو بل باندِ فخر کول دی او په مال او په اولاد کښے خپله لوئی ښکاره کول دی، لکه باران چه دَ هغے زرغونه

اَعْجَبَ الْكُفَّارَ نَبَاتُهٗ ثُمَّ يَهِيْجُ فَتَرٰىهُ مُصْفَرًّا ثُمَّ

چه خوشحاله کړل | کروندګر | زرغونے دَ هغے | بیا | هغه اُوچ شی | پس وینے ته هغه | زیړ | بیا

زمیندارو ته ښائسته ښکاری ، بیا اُوچه شی نو ته ئے زیړه وینے بیا

يَكُوْنُ حُطَامًاؕ وَفِى الْاٰخِرَةِ عَذَابٌ شَدِيْدٌۙ وَّمَغْفِرَةٌ

هغه شی | چُوره چُوره | او په آخرت کښے | عذاب دے | سخت | او مغفرت دے

هغه ریز مریز شی او په آخرت کښے سخت عذاب هم شته او دَ الله تعالیٰ دَ

مِّنَ اللّٰهِ وَرِضْوَانٌؕ وَمَا الْحَيٰوةُ الدُّنْيَآ اِلَّا مَتَاعُ

له طرفه دَ الله نه | او رضامندی دَه | او نهٔ دے | ژوند | دَ دُنیا | مګر | سامان

طرف نه بخښنه او خوشحالی هم شته. او دَ دُنیا ژوند تش دَ دوکے سامان

الْغُرُوْرِ ﴿۲۰﴾ سَابِقُوْٓا اِلٰى مَغْفِرَةٍ مِّنْ رَّبِّكُمْ وَجَنَّةٍ عَرْضُهَا

دَ دوکے | وړاندِ شئ | بخښنے طرف ته | له طرفه دَ رب خپل نه | او جنت طرف ته | چه پلنوالے دَ هغے

دے۔ نو دَ خپل رب دَ مغفرت طرف ته منډه کړئ او دَ هغے جنت طرف ته چه دَ

كَعَرْضِ السَّمَآءِ وَالْاَرْضِۙ اُعِدَّتْ لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا

په شان دَ پلنوالی | دَ آسمان | او دَ زمکے دے | تیار کړے شوے دے | هغه کسانو دَ پاره | چه ایمان ئے راوړے دے

هغے پلنوالے دَ آسمان او دَ زمکے برابر دے، دا دَ هغه خلقو دَ پاره تیار کړے شوے دے چه په

بِاللّٰهِ وَرُسُلِهٖؕ ذٰلِكَ فَضْلُ اللّٰهِ يُؤْتِيْهِ مَنْ يَّشَآءُؕ

په الله | او دَ دهٔ په رسولانو | دا | فضل دے | دَ الله | دے ورکوی | چا ته | چه دے غواړی

الله تعالیٰ او دَ دهٔ په رسولانو ئے ایمان راوړے دے، دا دَ الله تعالیٰ فضل دے هغه چه دَ چا په حقله ئے غواړی نو فضل پرے

وَاللّٰهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيْمِ ﴿۲۱﴾ مَآ اَصَابَ مِنْ مُّصِيْبَةٍ فِى الْاَرْضِ

او الله | دَ لوئے فضل خاوند دے | نهٔ رسیږی | هیڅ مصیبت | په زمکه کښے

وکړی او الله تعالیٰ دَ ډیر لوئے فضل خاوند دے۔ هر مصیبت چه راځی کهٔ په دنیا کښے راځی

وَلَا فِیۡۤ اَنۡفُسِکُمۡ اِلَّا فِیۡ کِتٰبٍ مِّنۡ قَبۡلِ اَنۡ نَّبۡرَاَہَا ؕ

او نهٔ ستاسو په ځانونو کښې | مګر هغه (لیکلے شوے) دے په یو کتاب کښې | له دے نه وړاندې | چه | مونږ پیدا کړو دغه مصیبت

او نهٔ خاص په تاسو باندې راځی نو داټول په یو کتاب کښې لیکلی پراته دی د هغې نه پخوا چه مونږ دا رواحان پیدا کړی وُو ۔

اِنَّ ذٰلِکَ عَلَی اللّٰہِ یَسِیۡرٌ ﴿ۚ۲۲﴾ لِّکَیۡلَا تَاۡسَوۡا عَلٰی مَا فَاتَکُمۡ وَلَا تَفۡرَحُوۡا

بیشکه دا خبره | په الله باندې | آسانه ده | د پاره د دے چه تاسو غم ونه کړئ | په هغه څهٔ چه لاړل له تاسو نه | او خوشحاله نهٔ شئ

یقینًا الله تعالیٰ ته دا کار ډیر آسان دے ۔ (دا ځکه ورښودو مو ځکه وکړه چه) تاسو نه څهٔ واخستے شی چه په هغې باندې خفه نهٔ شی او چه

بِمَاۤ اٰتٰىکُمۡ ؕ وَاللّٰہُ لَا یُحِبُّ کُلَّ مُخۡتَالٍ فَخُوۡرِۣ ﴿ۙ۲۳﴾ الَّذِیۡنَ

په هغه څهٔ | چه درکړل تاسو ته | او الله | نهٔ خوښوی | هر مغرور ته | فخر کوونکے | هغه کسان

څهٔ درکړے شی په هغې ځان ته غاوره نهٔ شئ او الله تعالیٰ هیڅ یو غاوره فخر کوونکے نهٔ خوښوی ۔ چه پخپله

یَبۡخَلُوۡنَ وَیَاۡمُرُوۡنَ النَّاسَ بِالۡبُخۡلِ ؕ وَمَنۡ یَّتَوَلَّ فَاِنَّ اللّٰہَ

چه شومتیا کوی | او حکم کوی | خلقو ته | د شومتیا | او څوک چه مخ واړوی | نو بیشکه الله

هم شومتیا کوی او نورو خلقو ته هم د شومتیا سبق ورکوی او څوک چه (د دین نه) مخ واړوی نو الله تعالیٰ

ہُوَ الۡغَنِیُّ الۡحَمِیۡدُ ﴿۲۴﴾ لَقَدۡ اَرۡسَلۡنَا رُسُلَنَا بِالۡبَیِّنٰتِ وَاَنۡزَلۡنَا

هم دے بے نیازه | ستائیلے شوے | بیشکه راولیږل مونږ | پیغمبران خپل | په واضحو نخښو سره | او نازل کړو مونږ

سرتر سره بے پروا او د ستائینے ډیر دے ۔ مونږ خپل پیغمبران د ښکاره تعلیم سره راولیږل او هغوئ سره مو کتاب

مَعَہُمُ الۡکِتٰبَ وَالۡمِیۡزَانَ لِیَقُوۡمَ النَّاسُ بِالۡقِسۡطِ ۚ وَاَنۡزَلۡنَا

د دوئ سره | کتاب | او تله (د انصاف) | چه قائم اوسیږی | خلق | په انصاف | او نازل کړو مونږ

او انصاف راولیږلو ، چه خلق په انصاف (او اعتدال) ولاړ پاتے شی او مونږ اوسپنه

الۡحَدِیۡدَ فِیۡہِ بَاۡسٌ شَدِیۡدٌ وَّمَنَافِعُ لِلنَّاسِ وَلِیَعۡلَمَ اللّٰہُ

اوسپنه | چه په کښې | د جنګ قوت | سخت دے | او فائدے دی | خلقو د پاره | او چه معلوم کړی | الله

راولیږله چه په کښې ډیر هیبت دے او خلقو ته په کښې نورے ډیرے فائدے دی او دا چه الله تعالیٰ

مَنۡ یَّنۡصُرُہٗ وَرُسُلَہٗ بِالۡغَیۡبِ ؕ اِنَّ اللّٰہَ قَوِیٌّ عَزِیۡزٌ ﴿ع۲۵﴾

چه څوک | مدد کوی د ده | او د ده د رسولانو | بے لیدلو | بیشکه الله | ډیر زورآور | غالب دے ۔

ښکاره کړی چه څوک بے لیدلو د هغهٔ د دین او د هغهٔ د رسولانو امداد کوی بیشکه الله ډیر زور آور دے ، غالب دے ۔

وَلَقَدۡ اَرۡسَلۡنَا نُوۡحًا وَّاِبۡرٰہِیۡمَ وَجَعَلۡنَا فِیۡ ذُرِّیَّتِہِمَا النُّبُوَّۃَ

او بیشکه رالیږلی ؤ مونږ | نوح | او ابراهیم | او ایښی ده مونږ | د دے دواړو په اولاد کښې | پیغمبری

او بیشکه مونږ نوح او ابراهیم راولیږل ، او د دے دواړو په نسل کښې مو نبوت او کتاب جاری

وَالۡکِتٰبَ فَمِنۡہُمۡ مُّہۡتَدٍ ۚ وَکَثِیۡرٌ مِّنۡہُمۡ فٰسِقُوۡنَ ﴿۲۶﴾ ثُمَّ قَفَّیۡنَا

او کتاب | پس ځنے له دوئ نه | لاره موندونکی دی | او ډیر | له دوئ نه | بدکاران دی | بیا | راولیږل مونږ

وساتل ، بیا په دوئ کښې څوک په سمه لاره پاتے شول او ډیر په دوئ کښې بدعمله وُختل ۔ بیا مو د دوئ نه پس

عَلٰٓى اٰثَارِهِمْ بِرُسُلِنَا وَقَفَّيْنَا بِعِيْسَى ابْنِ مَرْيَمَ وَاٰتَيْنٰهُ

له وروستو دَ دوئی نه | پیغمبران خپل | او وروپسې راولیږلو مونږ | عیسیٰ ځوئے دَ مریم | او مونږ ورکړو ده ته

پرله پسې نور پیغمبران راولیږل او دَ هغوئی نه پس مو دَ مریم ځوئے عیسیٰ راولیږلو او هغهٔ له مو

الْاِنْجِيْلَ ۙ وَجَعَلْنَا فِيْ قُلُوْبِ الَّذِيْنَ اتَّبَعُوْهُ رَاْفَةً

انجیل | او کیښودله مونږ | په زړونو کښې | دَ هغه خلقو | چه پیروی ئے وُکړه دَ دهٔ | نرمی

انجیل ورکړو ۔ او څوک چه دَ هغهٔ په لاره روان شول مونږ دَ هغوئی په زړونو کښې نرمی او

وَّرَحْمَةً ۭ وَرَهْبَانِيَّةَ ۨ ابْتَدَعُوْهَا مَا كَتَبْنٰهَا عَلَيْهِمْ

او رحمت | او رهبانیت | چه دوئی پخپله ایجاد کړه دا | مونږ نهٔ وه فرض کړے دا | په دوئی باندې

مهربانی واچوله، او رهبانیت هغوئی پخپله ایجاد کړو مونږ په هغوئی دا فرض کړے نهٔ وو ،

اِلَّا ابْتِغَاۗءَ رِضْوَانِ اللّٰهِ فَمَا رَعَوْهَا حَقَّ رِعَايَتِهَا ۚ

مګر (دوئی دا سے وکړل) حاصلولو دَ پاره | دَ رضامندئ دَ الله | بیا دوئی لحاظ ونهٔ ساتلو دَ دے | لکه چه حق وو | دَ دے دَ لحاظ ساتلو

خو هغوئی (پخپله) دَ الله دَ رضامندئ دَ پاره (اختیار کړے وو) خو بیا ئے دَ هغې پوره پوره لحاظ ونهٔ ساتلے شو نو

فَاٰتَيْنَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مِنْهُمْ اَجْرَهُمْ ۚ وَكَثِيْرٌ مِّنْهُمْ فٰسِقُوْنَ ۝۲۷

نو ورکړو مونږ | هغه خلقو ته | چه ایمان ئے راوړے دے | له دوئی نه | اجر دَ دوئی | او ډیر | له دوئی نه | بدکاران دی

چا چه پکښې (اوس) ایمان راوړو هغوئی له مو پوره پوره اجر ورکړو او زیات خلق پکښې نافرمان پلتے شول۔

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اتَّقُوا اللّٰهَ وَاٰمِنُوْا بِرَسُوْلِهٖ يُؤْتِكُمْ

اے | ایمان والو ! | وُویریږئ | دَ الله نه | او ایمان راوړئ | په پیغمبر دَ دهٔ | دے به درکړی تاسو ته

اے ایمان والو ! دَ الله تعالیٰ نه ویریږئ او دَ هغهٔ په پیغمبر باندې ایمان راوړئ ، هغه به درته دَ

كِفْلَيْنِ مِنْ رَّحْمَتِهٖ وَيَجْعَلْ لَّكُمْ نُوْرًا تَمْشُوْنَ بِهٖ

دوه حصے | له خپل رحمت نه | او جوړ به کړی | تاسو دَ پاره | یو نور | چه تګ به کوئ تاسو | په هغې سره

خپل رحمت (دَ خزانې) نه دوه برخې درکړی او یوه داسے رڼا به درکړی چه په هغې سره به (وړاندې) تګ کوئ

وَيَغْفِرْ لَكُمْ ۭ وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ۝۲۸ۙ لِّئَلَّا يَعْلَمَ اَهْلُ الْكِتٰبِ

او دے به وُبخښی | تاسو | او الله | بخښونکے | مهربان دے | دَ پاره دَ دے چه پوهه شی | اهلِ کتاب

او بخښنه به درته وُکړی او الله بخښونکے ډیر رحم کوونکے دے (دا به ځکه درکړی) چه کتابیانو ته (په قیامت کښې)

اَلَّا يَقْدِرُوْنَ عَلٰي شَيْءٍ مِّنْ فَضْلِ اللّٰهِ وَاَنَّ الْفَضْلَ بِيَدِ

چه دوئی قدرت نهٔ لری | په هیڅ څیز | دَ الله له فضل نه | او دا چه | فضل | په لاس کښې

دا څرګنده شی چه دَ الله تعالیٰ په فضل باندې دَ هغوئی هیڅ اختیار نشته او دا چه فضل خو هم دَ الله تعالیٰ په لاس

اللّٰهِ يُؤْتِيْهِ مَنْ يَّشَاۗءُ ۭ وَاللّٰهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيْمِ ۝۲۹ ع

دَ الله دے | دے ورکوی دا | چا ته | چه دے وُغواړی | او الله | خاوند دَ فضل | لوئے دے۔

کښې دے چا له چه غواړی هغهٔ له ئے ورکوی او الله تعالیٰ دَ ډیر لوئے فضل خاوند دے۔

سُورَةُ الْمُجَادَلَةِ مَدَنِيَّةٌ وَّهِيَ | بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | اِثْنَتَانِ وَعِشْرُوْنَ اٰيَةً وَّثَلٰثُ رُكُوْعَاتٍ

سورۂ مجادله په مدینه کښے نازل شوا وپه | (شروع) دَ الله په نامه چه لوئے مهربان ډیر زیات رحم کوونکے دے | دے کښے ۲۲ آیتونه او ۳ رکوع دي

دَ الله په نامه شروع کوم چه لوئے مهربان دَ ډیر زیات رحم خاوند دے

قَدْ سَمِعَ اللهُ قَوْلَ الَّتِيْ تُجَادِلُكَ فِيْ زَوْجِهَا وَ تَشْتَكِيْٓ

بیشکه | واورېدله | الله | خبره | دَ هغے ښځے چه | جګړه ئے کوله تا سره | دَ خپل خاوند په حقله | او شکایت ئے کولو

بیشکه چه الله تعالیٰ دَ هغے ښځے خبره واورېدله چه دَ خپل خاوند په حقله ئے تا سره تکرار کولو او دَ الله تعالیٰ ته

اِلَى اللهِ ۖ وَاللهُ يَسْمَعُ تَحَاوُرَكُمَا ۭ اِنَّ اللهَ سَمِيْعٌۢ بَصِيْرٌ ①

دَ الله ته | او الله | آورېدے | ستا سو دَ دواړو خبرے | بیشکه الله | آورېدونکے | لیدونکے دے

ئے شکایت کولو او الله تعالیٰ ستا سو دَ دواړو خبرے آورېدے یقیناً الله تعالیٰ هر څهٔ آورى هر څهٔ وینی

اَلَّذِيْنَ يُظٰهِرُوْنَ مِنْكُمْ مِّنْ نِّسَآئِهِمْ مَّا هُنَّ اُمَّهٰتِهِمْ ۭ

کوم خلق چه | ظهار کوی | له تاسو نه | دَ خپلو ښځو سره | نهٔ دی | دوئ | میندے دَ دوی

په تاسو کښے څوک چه دَ خپلو ښځو سره ظِهار کوی ، نو هغه ښځے دَ دوئ (څهٔ) میندے (خو) نهٔ شی

اِنْ اُمَّهٰتُهُمْ اِلَّا الّٰٓـِٔيْ وَلَدْنَهُمْ ۭ وَاِنَّهُمْ لَيَقُوْلُوْنَ مُنْكَرًا

نهٔ دی میندے دَ دوئ | مګر | هغه چه | زېږولی ئے دی دوئ | او بیشکه دوئ | وائی | نا معقوله

میندے خو ئے بس هغه دی چه دوئ ئے زېږولی دی او په دے کښے شک نشته چه دوئ یوه نامناسبه

مِّنَ الْقَوْلِ وَزُوْرًا ۭ وَاِنَّ اللهَ لَعَفُوٌّ غَفُوْرٌ ② وَالَّذِيْنَ

خبره | او دروغ | او بیشکه الله | معاف کوونکے | ډیر بخښونکے دے | او کوم خلق چه

او دروغ خبره کوی ، او بیشکه الله تعالیٰ معافی کوونکے بخښونکے دے ۔ او څوک چه

يُظٰهِرُوْنَ مِنْ نِّسَآئِهِمْ ثُمَّ يَعُوْدُوْنَ لِمَا قَالُوْا فَتَحْرِيْرُ

ظهار کوی | خپلو ښځو سره | بیا دوئ واپس شی | له هغه څهٔ نه | چه دوئ وئیلی دی | نو آزادول دی

دَ خپلو ښځو سره ظهار وکړی ، بیا دَ خپلے خبرے نه واپس کېدل (یعنی تلافی کول) غواړی ، نو هغهٔ په ذمه

رَقَبَةٍ مِّنْ قَبْلِ اَنْ يَّتَمَآسَّا ۭ ذٰلِكُمْ تُوْعَظُوْنَ بِهٖ ۭ وَاللهُ

یو غلام | وړاندې له دے نه چه | دوئ دواړه یو بل ته لاس یوسی | هم په دے خبره | تاسو ته نصیحت کولے شی | او الله

یو غلام آزادول دی، وړاندې له دے نه چه دواړه یو بل سره یوځائے شی دا حکم دی چه تاسو له دے نه نصیحت واخلئ او الله

بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرٌ ③ فَمَنْ لَّمْ يَجِدْ فَصِيَامُ شَهْرَيْنِ

په هغه څهٔ | چه تاسو ئے کوئ | خبردار دے | نو څوک چه | بیا نهٔ مومی (غلام) | نو روژے دی | دَ دوؤ میاشتو

ستاسو په کارونو ښهٔ خبر دے ۔ نو څوک چه غلام بیا نهٔ مومی ، نو دوه میاشتے روژے دِ پرله پسے

مُتَتَابِعَيْنِ مِنْ قَبْلِ اَنْ يَّتَمَآسَّا ۭ فَمَنْ لَّمْ يَسْتَطِعْ فَاِطْعَامُ

پرله پسے | وړاندې له دے نه چه | دوئ دواړه یو بل ته لاس یوسی | نو څوک چه | دا سے ونهٔ کړے شی | نو طعام ورکول دی

ونیسی ۔ دَ دے نه وړاندې چه دواړه یو بل سره یوځائے شی او څوک چه دا هم نهٔ شی کولے ، نو شپیتو

سِتِّيْنَ مِسْكِيْنًا ؕ ذٰلِكَ لِتُؤْمِنُوْا بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ ؕ وَتِلْكَ

شپیتو (۶۰) | مسکینانو ته | دا | حُکه چه تاسو ایمان راوړئ | په الله | او دَدهٔ په رسول بانډِ | او دا

مسکینانوله دِ خوراک ورکړی دا (حکمونه) حُکه (دی) چه تاسو په الله او دَ دهٔ په رسول ایمان راوړئ او دا دَ الله

حُدُوْدُ اللّٰهِ ؕ وَلِلْكٰفِرِيْنَ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ۝۴ اِنَّ الَّذِيْنَ

حدونه دی | دَ الله | او کافرانو دَپاره | عذاب دے | دردناک | بیشکه | کوم خلق چه

مقرر حدونه دی ، او منکرانوله دردناک عذاب مقرر دے۔ خوک چه دَ الله او دَ دهٔ دَ

يُحَآدُّوْنَ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ كُبِتُوْا كَمَا كُبِتَ الَّذِيْنَ

مخالفت کوی | دَ الله | او دَ دهٔ دَ رسول | دوی بهٔ ذلیله کړے شی | لکه چه ذلیله کړے شوی وو | هغه خلق چه

رسول (دَ حکم) نه مخالفت کوی ، هغوئ به داسے خوارشی لکه پخوانی خلق چه خوار

مِنْ قَبْلِهِمْ وَقَدْ اَنْزَلْنَآ اٰيٰتٍۭ بَيِّنٰتٍ ؕ وَلِلْكٰفِرِيْنَ عَذَابٌ

له دوئ نه وړاندِ وو | او بیشکه نازل کړل مونږ | اَیتونه | واضحه | او کافرانو دَپاره | عذاب دے

شوی وو او مونږ خو ښکاره اَیتونه رالیږلی دی او منکرانو له سپکوونکے عذاب

مُّهِيْنٌ ۝۵ۚ يَوْمَ يَبْعَثُهُمُ اللّٰهُ جَمِيْعًا فَيُنَبِّئُهُمْ بِمَا عَمِلُوْا ؕ

رُسواکوونکے | په کومه ورځ چه به | دوئ راپاڅوی | الله | ټول | بیا به وُښائی دوئ ته | هغه څهٔ | چه دوئ به کول

مقرر دے۔ په کومه ورځ چه الله تعالیٰ دا ټول خلق (دَ قبرونو نه) راپاڅوی بیا څهٔ چه به دوئ کول هغه ټول به ورته وښائی

اَحْصٰىهُ اللّٰهُ وَنَسُوْهُ ؕ وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ شَهِيْدٌ ۝۶ ع

سنبال ساتلی دی دا الله | او دوئ هیر کړی دی دا | او الله | په هر څیز بانډِ | گواه دے۔

دَغه کارونه الله خوسنبال ساتلی دی او دَ دوئ نه هیر شوی دی، او الله تعالیٰ په هر څیز بانډِ ښهٔ خبر دے۔

اَلَمْ تَرَ اَنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ؕ

آیا نهٔ دی کتلی تا | چه بیشکه الله | پوهیږی | په هغه څهٔ | چه په آسمانونو کښے دی | او په هغه څهٔ چه | په زمکه کښے دی

آیا تا په دے خبره غور نهٔ دے کړے چه الله تعالیٰ ته دَ آسمانونو او دَ زمکے هر څیز ښهٔ معلوم دے؟

مَا يَكُوْنُ مِنْ نَّجْوٰى ثَلٰثَةٍ اِلَّا هُوَ رَابِعُهُمْ وَلَا خَمْسَةٍ

نهٔ وی | پټه مشوره | دَ دریو کسانو | مگر دے (الله وی) | څلورم په دوئ کښے | او نهٔ دَ پنځو

په دریو کسانو کښے هیڅ دَ غوږ مجلس داسے نهٔ کیږی چه څلورم پکښے الله نهٔ وی او نهٔ په پنځو کښے

اِلَّا هُوَ سَادِسُهُمْ وَلَآ اَدْنٰى مِنْ ذٰلِكَ وَلَآ اَكْثَرَ اِلَّا هُوَ مَعَهُمْ

مگر هغه (الله) وی | شپږم په دوئ کښے | او نهٔ کم | له دے نه | او نهٔ زیات | مگر دے وی | دَ دوئ سره

په کوم کښے چه شپږم الله نهٔ وی او (دغه شان) نهٔ دَ دے نه کم او نهٔ دَ دے نه زیات لیکن هغه (الله) دَ دوئ سره وی

اَيْنَ مَا كَانُوْا ۚ ثُمَّ يُنَبِّئُهُمْ بِمَا عَمِلُوْا يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ؕ

کوم ځائے کښے | چه دوئ وی | بیا به | دے وُښائی دوئ ته | څهٔ چه | دوئ کول | په ورځ | دَ قیامت

دوئ په هر ځائے کښے چه وی ، بیا دَ قیامت په ورځ به خپل کارونه ورته وړاندِ کیږی

إِنَّ اللّٰهَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ ⑦ اَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِيْنَ نُهُوْا

بیشکه الله | په هر شیز باندې | پوهه دے | آیا تا نهٔ دی کتلی | هغه خلقو ته | چه منع کړے شوی وو

بیشکه چه الله تعالیٰ ته هر څهٔ معلوم دی. آیا تهٔ دَ هغے خلقو حال ته نهٔ ګورے چه دَ ناجائزه پټو

عَنِ النَّجْوٰى ثُمَّ يَعُوْدُوْنَ لِمَا نُهُوْا عَنْهُ وَ يَتَنٰجَوْنَ

دَ پټو مشورو نه | بیا دوئ راګرځی | هغه څهٔ ته | چه منع کړے شوی وو | له هغے نه | او دوئ پټے مشورے کوی

مشورو نه منع کړے شوی وو، بیا دَ کومے خبرے نه چه دوئ منع کړے شوی وو هم په هغے کار کښے لګیادی او دَ

بِالْإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ وَمَعْصِيَتِ الرَّسُوْلِ ۫ وَإِذَا جَآءُوْكَ

په ګناه | او سرکشئ | او دَ رسول دَ نافرمانئ (سره) | او هر کله | چه دوئ راځی تا ته

ګناه او دَ زیاتی کولو او دَ رسول ؐ دَ نافرمانئ په حقله پټ پټ مجلسونه کوی او چه (اے نبیؐ!) تا ته راځی نو

حَيَّوْكَ بِمَا لَمْ يُحَيِّكَ بِهِ اللّٰهُ ۙ وَيَقُوْلُوْنَ فِيْٓ أَنْفُسِهِمْ

نو سلام کوی تا ته | په داسے لفظونو سره | چه سلام نهٔ دے کړے تا ته په هغے سره | الله | او دوئ وائی | په خپلو زړونو کښے

شی نو په داسے ټکو دریانډ سلام اچوی چه الله دریانډ هغسے سلام اچولے نهٔ دے او په خپلو زړونو کښے وائی

لَوْلَا يُعَذِّبُنَا اللّٰهُ بِمَا نَقُوْلُ ۭ حَسْبُهُمْ جَهَنَّمُ ۚ يَصْلَوْنَهَا

چه ولے نهٔ | راکوی عذاب مونږ ته الله | په هغه څهٔ | چه مونږ یے وایو | کافی دے دوئ ته پاره | دوزخ | دوئ به داخل شی دے ته

چه څهٔ مونږ وایو الله تعالیٰ مونږ له دَ هغے سزا ولے نهٔ راکوی دے خلقو له دوزخ بس دے، هغوئ به پکښے ورننوزی

فَبِئْسَ الْمَصِيْرُ ⑧ يٰٓأَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا إِذَا تَنَاجَيْتُمْ فَلَا تَتَنَاجَوْا

پس بد دے | ځائے دَ ورتلو | اے | ایمان والو! | هر کله چه تاسو یو بل سره پټے مشورے کوئ | نو پټے مشورے مهٔ کوئ

او دغه ډیره خرابه ټیکاونړه ده اے مؤمنانو! هر کله چه غونډین مجلس کوئ نو دَ ګناه دَ زیاتی او دَ

بِالْإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ وَمَعْصِيَتِ الرَّسُوْلِ وَتَنَاجَوْا بِالْبِرِّ وَالتَّقْوٰى ۭ

دَ ګناه | او سرکشئ | او دَ رسول دَ نافرمانئ | او پټے مشورے کوئ | دَ نیکئ | او پرهیزګارئ

رسول ؐ دَ نافرمانئ په حقله هیڅرے مشورے مهٔ کوئ بلکه دَ نیکئ او دَ پرهیزګارئ په حقله صلاح مشورے

وَاتَّقُوا اللّٰهَ الَّذِيْٓ إِلَيْهِ تُحْشَرُوْنَ ⑨ إِنَّمَا النَّجْوٰى مِنَ الشَّيْطٰنِ

او ویریږئ | دَ الله نه | هغه ذات | چه طرف دَ هغهٔ ته به | تاسو جمع کولے شئ | بیشکه | پټه (دَ غونډ) صلاح ګانے | خو دَ شیطان کار دے

کوئ او دَ الله تعالیٰ نه ویریږئ چه تاسو ټول به ورته راټولیږئ. غونډ پټے صلاح ګانے دَ شیطان په لمسه کیږی

لِيَحْزُنَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَلَيْسَ بِضَآرِّهِمْ شَيْـًٔا إِلَّا

چه غمژن کړی | هغه خلق چه | ایمان ئے راوړے دے | او نهٔ دے | هغه دوئ ته نقصان ورکوونکے | دَ هیڅ شیز | مګر

چه مؤمنان پرے غمژن کړی ، حال دا دے چه دَ الله تعالیٰ دَ حکم نه بغیر شیطان هغوئ ته هیڅ ضرر نهٔ

بِإِذْنِ اللّٰهِ ۭ وَعَلَى اللّٰهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُوْنَ ⑩ يٰٓأَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا

په حکم دَ الله | او هم په الله باندې | پکار دے چه توکل وکړی | مؤمنان | اے | ایمان والو!

شی رسولے او ایمان والو له خو بس هم په الله تعالیٰ توکل کول پکار دی اے مؤمنانو!

إِذَا قِيلَ لَكُمْ تَفَسَّحُوا فِي الْمَجَٰلِسِ فَافْسَحُوا يَفْسَحِ اللَّهُ

هرکله چه | وُوئیلے شی | تاسو ته | چه کشاده کښینئ تاسو | په مجلسونو کښے | پس کشاده کوئ ځائے | فراخي به پیدا کړی | الله

هر کله چه درته وُوئیلے شی چه په مجلس کښے لږ ځائے ارت کړئ نو تاسو ځائے ارتوئ الله تعالیٰ به تاسوله ارتیرت

لَكُمْ ۚ وَإِذَا قِيلَ انشُزُوا فَانشُزُوا يَرْفَعِ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا

تاسو دَ پاره | او هر کله چه وو ئیلے شی | چه پاځئ | پس پاځئ | اُوچتے به کړی | الله | دَ هغه خلقو چه | ایمان ئے راوړے دے

ځائے درکړی او چه درته وو ئیلے شی چه پاځئ وُدریږئ نو پاځئ ، الله تعالیٰ به په تاسو کښے دَ مسلمانانو

مِنكُمْ ۙ وَالَّذِينَ أُوتُوا الْعِلْمَ دَرَجَٰتٍ ۚ وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ

له تاسو نه | او دَ هغه خلقو | چه ورکړے شوے دے | علم | درجے | او الله | په هغه څهٔ | چه تاسو ئے کوئ

او دَ علم دَ خاوندانو مرتبے اُوچتے کړی ۔ او الله تعالیٰ ستاسو په کارونو ښهٔ

خَبِيرٌ ⑪ يَٰٓأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوٓا إِذَا نَٰجَيْتُمُ الرَّسُولَ فَقَدِّمُوا

خبردار دے | اے ایمان والو ! | هرکله چه | پټه مشوره کوئ تاسو | رسول سره | نو وړومبے ورکړئ تاسو

خبردے اے مؤمنانو ! تاسو چه دَ پیغمبر سره پټے صلاح مشورے کوئ نو دَ خپلو پټو صلاح

بَيْنَ يَدَيْ نَجْوَىٰكُمْ صَدَقَةً ۚ ذَٰلِكَ خَيْرٌ لَّكُمْ وَأَطْهَرُ ۚ

وړاندے | دَ خپلے مشورے نه | صدقه | دا کار | غوره دے | تاسو دَ پاره | او | زیات پاکیزه دے

مشورو نه وړاندے څهٔ (لږ ډیر) خیرات ورکوئ ، دا کار تاسو دَ پاره ډیر بهتر دے او دَ پاکئ ذریعه ده

فَإِن لَّمْ تَجِدُوا فَإِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ⑫ ءَأَشْفَقْتُمْ

پس که چرے بیا نهٔ مومئ تاسو | نو بیشکه | الله | ډیر بخښونکے | مهربان دے | آیا تاسو وُویریدئ

خو که دَ خیرات توفیق نهٔ لرئ نو بیشکه چه الله تعالیٰ بخښونکے رحم کوونکے دے آیا تاسو دَ دے نه ویریږئ

أَن تُقَدِّمُوا بَيْنَ يَدَيْ نَجْوَىٰكُمْ صَدَقَٰتٍ ۚ فَإِذْ لَمْ تَفْعَلُوا

(له دے نه) چه تاسو وړومبے ورکړئ | وړاندے دَ مشورے خپلے نه | صدقے ؟ | بیا هر کله چه | تاسو دا سے وُنهٔ کړل

چه دَ خپلو پټو مشورو نه وړاندے څهٔ لږ ډیر خیرات ورکړئ ؟ نو (خیر دے) چه دا کار درنه پُوره نهٔ شو

وَتَابَ اللَّهُ عَلَيْكُمْ فَأَقِيمُوا الصَّلَوٰةَ وَآتُوا الزَّكَوٰةَ

او معافی وکړه | الله | تاسو ته | نو قائم کړئ | مونځ | او ورکړئ | زکوٰة

او الله تعالیٰ تاسو ته معافی وُکړه نو (اوس) دَ مونځ پابند وُسیږئ او زکوٰة ورکوئ

وَأَطِيعُوا اللَّهَ وَرَسُولَهُۥ ۚ وَاللَّهُ خَبِيرٌۢ بِمَا تَعْمَلُونَ ⑬

او حکم منئ | دَ الله | او دَ دهٔ دَ رسول | او الله | خبردار دے | په هغه څهٔ | چه تاسو ئے کوئ

او دَ الله تعالیٰ او دَ دهٔ دَ رسول هره خبره منئ ، او الله تعالیٰ ته ستاسو ټول کارونه معلوم دی

أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ تَوَلَّوْا قَوْمًا غَضِبَ اللَّهُ عَلَيْهِم

آیا تا نهٔ دی کتلی | هغه خلقو ته چه | دوستی کوی | دَ داسے قوم سره | چه غضب کړے دے الله | په هغوئ باندے

اے پیغمبره ! آیا تا هغه خلقو ته نهٔ دی کتلی چه دَ داسے قوم سره دوستی لری په کوم چه دَ الله تعالیٰ غضب نازل شوے

مَا هُمْ مِّنْكُمْ وَلَا مِنْهُمْ ۙ وَيَحْلِفُوْنَ عَلَى الْكَذِبِ

نه (خو) دوئ | له تاسو نه دی | او نه له هغوئ نه | او دوئ قسم خوری | په دروغو

دا (منافقان) نه تاسو سره دی او نه د هغوئ (کافرانو) سره دی ، او سره د پوهے په دروغو قسمونه

وَهُمْ يَعْلَمُوْنَ ﴿١٤﴾ اَعَدَّ اللّٰهُ لَهُمْ عَذَابًا شَدِيْدًا ؕ اِنَّهُمْ

او دوئ پوهیږی | تیار کړے دے | الله | دوئ د پاره | عذاب | سخت | بیشکه

خوری ـــ الله تعالیٰ هغوئ د پاره سخت عذاب تیار کړے دے ، بیشکه هغه

سَآءَ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿١٥﴾ اِتَّخَذُوْٓا اَيْمَانَهُمْ جُنَّةً

بد دی | هغه څه چه دوئ ئے | کوی | جوړ کړی دی دوئ | قسمونه خپل | ډال

کارونه ډیر خراب دی چه هغوئ ئے کوی ، دوئ د خپلو قسمونو نه ځان له ډال جوړ کړے دے

فَصَدُّوْا عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ فَلَهُمْ عَذَابٌ مُّهِيْنٌ ﴿١٦﴾

پس منع کوی دوئ (خلق) | د لارے نه | د الله | نو دوئ د پاره | عذاب دے | رسوا کوونکے

بیا خلق د الله تعالیٰ د لارے نه منع کوی پس هغوئ د پاره د ذلت عذاب مقرر دے.

لَنْ تُغْنِيَ عَنْهُمْ اَمْوَالُهُمْ وَلَآ اَوْلَادُهُمْ مِّنَ اللّٰهِ شَيْـًٔا ؕ

هیڅ کله به په کار رانه شی | د دوئ | مالونه د دوئ | او نه | اولاد د دوئ | د الله په وړاندے | هیڅ هم

د هغوئ مال او د هغوئ اولاد هیچرے د الله تعالیٰ (د عذاب) نه بچ کولے نه شی

اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ النَّارِ ؕ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ﴿١٧﴾ يَوْمَ يَبْعَثُهُمُ

هم دا خلق دی | دوزخیان | دوی به | په دے کښے | همیشه وی | په کومه ورځ چه به | را پاڅوی دوئ له

هم دغه خلق دوزخیان دی تل به پکښے (لوغړن) پراته وی ، په کومه ورځ چه الله تعالیٰ دوئ

اللّٰهُ جَمِيْعًا فَيَحْلِفُوْنَ لَهٗ كَمَا يَحْلِفُوْنَ لَكُمْ

الله | ټول | نو دوئ به قسمونه خوری | د ده په وړاندے | لکه چه | دوئ به قسمونه خوړل | ستاسو په وړاندے

ټول بیا راژوندی کړی نو د الله د وړاندے به دا سے قسمونه خوری لکه څنګه چه (نن) ستاسو په وړاندے خوری

وَيَحْسَبُوْنَ اَنَّهُمْ عَلٰى شَيْءٍ ؕ اَلَآ اِنَّهُمْ هُمُ الْكٰذِبُوْنَ ﴿١٨﴾

او دوی خیال کوی | چه دوی | په (څه) فائده کښے دی | واورئ ! | بیشکه | هم دوی | دروغژن دی

او دا خیال کوی چه ګنی د دوئ څه دین ایمان شته نشته واورئ ! چه دوئ بالکل دروغژن دی

اِسْتَحْوَذَ عَلَيْهِمُ الشَّيْطٰنُ فَاَنْسٰهُمْ ذِكْرَ اللّٰهِ ؕ اُولٰٓئِكَ

غالب راغلے دے | په دوئ باندے | شیطان | پس ده هیر کړو له دوئ نه | ذکر د الله | هم دا ډله

(خبره دا ده چه) په دوئ باندے شیطان قابو موندلے دے نو د الله تعالیٰ یاد ئے ترے نه هیر کړے دے ، هم دغه

حِزْبُ الشَّيْطٰنِ ؕ اَلَآ اِنَّ حِزْبَ الشَّيْطٰنِ هُمُ الْخٰسِرُوْنَ ﴿١٩﴾ اِنَّ

ډله | د شیطان | واورئ ! | بیشکه | ډله | د شیطان | هم دوئ دی نقصان موندونکی | بیشکه

د شیطان ټولګے دے او په دے پوهه شه چه د شیطان ټولګے به په تاوان کښے پاتے وی ، څوک

الَّذِيْنَ يُحَآدُّوْنَ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗٓ اُولٰٓئِكَ فِي الْاَذَلِّيْنَ ﴿۲۰﴾

کوم خلق چه | مخالفت کوی | دَ الله | او دَ دهٔ دَ رسول | هم دا خلق دی | په ډیر زیات ذلیله خلقو کښې

چه دَ الله تعالیٰ او دَ دهٔ دَ رسول مخالفت کوی نو هم دغه غورزیدلی خلق دی.

كَتَبَ اللّٰهُ لَاَغْلِبَنَّ اَنَا وَرُسُلِيْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ قَوِيٌّ عَزِيْزٌ ﴿۲۱﴾

ؤلیکل | الله | چه خامخا به غالب شم زهٔ | او زما رسول | بیشکه الله | ډیر زور آور | غالب دے

الله تعالیٰ دا لیکلی دی چه زهٔ او زما رسول به غالب پاتے یُو، بیشکه الله تعالیٰ دَ قوت خاوند دے ډیر غالب دے

لَا تَجِدُ قَوْمًا يُّؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ يُوَآدُّوْنَ

ته به بیا نهٔ موے | یو قوم چه | ایمان لری | په الله | او په ورځ | دَ اخرت | چه دوستی به ؤکړی

نهٔ به هیچرے دا ؤنهٔ موے چه څوک په خدائے او په رسول باندِ ایمان راؤړی هغوئی دِ داسے خلقو سره

مَنْ حَآدَّ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ وَلَوْ كَانُوْٓا اٰبَآءَهُمْ اَوْ اَبْنَآءَهُمْ

دَ هغه چا سرهٔ چه مخالفت کوی | دَ الله | او دَ دهٔ دَ رسول | اگرچه | وی هغوئی | پلاران دَ دوئی | او ځامن دَ دوئی

دوستانے ؤساتی چه دَ الله او دَ رسول مخالف وی اگرکهٔ هغوئی ئے پلاران، یا ځامن یا ورونړه

اَوْ اِخْوَانَهُمْ اَوْ عَشِيْرَتَهُمْ ؕ اُولٰٓئِكَ كَتَبَ فِيْ قُلُوْبِهِمُ

یا | ورونړه دَ دوئی | یا خپلوان دَ دوئی | هم دا خلق دی | چه لیکلے دے (الله) | په زړونو دَ دوئی کښې

یا دَ کورنئی نور خلق وی - هم دغه کسان دی چه الله تعالیٰ دَ هغوئی په زړونو کښې (دَ) ایمان

الْاِيْمَانَ وَاَيَّدَهُمْ بِرُوْحٍ مِّنْهُ ؕ وَيُدْخِلُهُمْ جَنّٰتٍ

ایمان | او دَ دوئی مدد ئے وکړو | په یو روح سره | له خپل طرف نه | او دے به داخل کړی دوی | په باغونو کښې

(نور) بنخ کړے دے او هغوئی ئے په خپله مهر باندې مضبوط کړی دی او داسے باغونو ته به ئے ننباسی

تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ؕ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ

چه بهیږی به | لاندِ دَ هغے نه | ویالے | همیشه به وی | په هغے کښې | الله راضی شو | له دوئی نه

چه دَ هغے لاندِ به ویالے بهیږی، تل به پکښې استوګن وی الله تعالیٰ به دَ هغوئی نه راضی وی

وَرَضُوْا عَنْهُ ؕ اُولٰٓئِكَ حِزْبُ اللّٰهِ ؕ اَلَآ اِنَّ حِزْبَ اللّٰهِ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ ﴿۲۲﴾ ع

او دوئی راضی شول | له دهٔ نه | هم دا دهٔ | ډله دَ الله | واؤره! | بیشکه ډله دَ الله | هم دوی دی خلاصے موندونکی

او هغوئی به دَ الله تعالیٰ نه راضی وی، هم دغه دَ الله تعالیٰ ټولګے دے او ښهٔ واؤره! چه دَ الله تعالیٰ ټولګے همیشه کامیاب دے.

سُوْرَةُ الْحَشْرِ مَدَنِيَّةٌ وَّهِيَ اَرْبَعٌ وَّعِشْرُوْنَ اٰيَةً وَّثَلٰثُ رُكُوْعَاتٍ

سورۂ حشر په مدینه کښې نازل شوا او | په دے کښې ۲۴ ایتونه او درے رکوع دی

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

(شروع) په نامه دَ الله چه ډیر مهربان ډیر زیات رحم کوونکے دے

دَ الله په نامه شروع کوم چه لوئے مهربان دَ ډیر زیات رحم خاوند دے

سَبَّحَ لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ۚ وَهُوَ الْعَزِيْزُ

پاکی بیانوی دَ الله | هغه څیزونه | چه په آسمانونو کښې | او هغه | چه په زمکه کښې دی | او هم دے | غالب

دَ الله تعالیٰ پاکی بیانوی هر څهٔ چه په آسمانونو او په زمکه کښې دی او هغه ډیر زور آور دَ حکمتونو

الْحَكِيْمُ ① هُوَ الَّذِيْٓ اَخْرَجَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ

دَحکمت خاوند دے | دے دے هغه ذات چه | راوے ویستل | هغه کسان | چه کافران شو | له اهــل کتابو نه

خاوند دے ۔ اللہ تعالیٰ هغه ذات دے چه کتابیان کافران ئے په وړومبی ځل په

مِنْ دِيَارِهِمْ لِاَوَّلِ الْحَشْرِ ؕ مَا ظَنَنْتُمْ اَنْ يَّخْرُجُوْا وَظَنُّوْٓا

دَدوی له کورونو نه | دَوړومبی حشر په وخت | تاسو ګمان نهٔ کولو | چه راوُبه ځی دوئ | او هغوی خیال کولو

جمع دَ کورونو نه وو بیستل ۔ ستاسو (خو) داګمان (قدرله) نهٔ وو چه دوی به وُځی او دَهغوئ

اَنَّهُمْ مَّانِعَتُهُمْ حُصُوْنُهُمْ مِّنَ اللّٰهِ فَاَتٰىهُمُ اللّٰهُ مِنْ حَيْثُ

چه دوئ به | بچ کړی | دَدوئ قلعے | دَ اللہ نه | پس راغے دوئ ته (عذاب) دَاللہ | کوم ځائے نه

داګمان وو چه خپلے قلعه ګانے به ئے دَ اللہ دَ نیولو نه بچ اُوساتی نو (دَ اللہ (عذاب) پرے دَ داسے غاړے نه

لَمْ يَحْتَسِبُوْا ۗ وَقَذَفَ فِيْ قُلُوْبِهِمُ الرُّعْبَ يُخْرِبُوْنَ

چه دَدوئ ګمان هم نهٔ وو | او دهٔ واچولو | په زړونو دَدوئ کښے | رُعب | دوئ نړول

راغے چه دَدوئ په خواخاطر کښے هم نهٔ وو او دَهغوئ په زړونو کښے ئے رعب واچولو چه خپل کورونه ئے په

بُيُوْتَهُمْ بِاَيْدِيْهِمْ وَاَيْدِي الْمُؤْمِنِيْنَ ۗ فَاعْتَبِرُوْا يٰٓاُولِي الْاَبْصَارِ ②

کورونه خپل | په لاسونو خپلو | او په لاسونو | دَ مؤمنانو | پس عبرت حاصل کړئ | اے خاوندانو دَ سترګو!

خپلو لاسونو هم نړول او دَ مسلمانانو په لاسونو هم (نړیدل) نو اے دَ سترګو خاوندانو! دَدے نه سبق واخلئ

وَلَوْلَآ اَنْ كَتَبَ اللّٰهُ عَلَيْهِمُ الْجَلَآءَ لَعَذَّبَهُمْ

او که چرے نهٔ وے (داخبره) | چه لیکلی وُو | اللہ | په دوئ بانـدِ | بے کوره کیدل | نو خامخا به ئے عذاب ورکړے وو دوئ ته

او که اللہ دَ هغوئ په حق کښے جلاوطنی لیکلے نهٔ وے نو په دُنیا کښے به ئے (دَ قتل) سزا

فِي الدُّنْيَا ۖ وَلَهُمْ فِي الْاٰخِرَةِ عَذَابُ النَّارِ ③ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ

په دُنـیا | او دوئ دَپاره | په آخرت کښے | عذاب | دَ اور دے | دا | ځکه چه دوئ

ورکوله او په آخرت کښے خو ورله دَ اور سزا هسے هم مقرر ده دا ځکه چه دوئ دَ اللہ

شَآقُّوا اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ ۚ وَمَنْ يُّشَآقِّ اللّٰهَ فَاِنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعِقَابِ ④

مخالفت وکړو | دَاللہ | او دَدهٔ دَرسول | او څوک چه مخالفت کوی | دَ اللہ | نو بیشکه | اللہ | سخت عذاب ورکوونکے دے

او دَ رسول مخالفت کړے دے ، او څوک چه دَاللہ تعالیٰ مخالفت کوی نو اللہ تعالیٰ په سزا ورکولو کښے ډیر سخت دے

مَا قَطَعْتُمْ مِّنْ لِّيْنَةٍ اَوْ تَرَكْتُمُوْهَا قَآئِمَةً عَلٰٓى اُصُوْلِهَا

هغه څهٔ چه | پریکړے تاسو | دَ قجورے اُونے | یا تاسو پریښودے هغه | ولاړے | په خپلو جرړو بانـدِ

تاسو چه دَ قجورے کومے اُونے پریکړے یا مو په جرړو باندِ مضبوطے ولاړے وُساتلے نو

فَبِاِذْنِ اللّٰهِ وَلِيُخْزِيَ الْفٰسِقِيْنَ ⑤ وَمَآ اَفَآءَ اللّٰهُ

نو (هغه وو) دَاللہ په حکم | چه رسوا کړی | بدکاران | او هغه څهٔ چه | راوُګـرځول | اللہ

دا دَ اللہ په حکم وو او (ځکه وو) چه (اللہ) نافرمانه خلق رسوا کړی او اللہ تعالیٰ چه خپل رسول ته څهٔ (بغیر دَ جنګ

وقف النبی صلی اللہ علیہ وسلم

عَلٰى رَسُوْلِهٖ مِنْهُمْ فَمَاۤ اَوْجَفْتُمْ عَلَيْهِ مِنْ خَيْلٍ وَّلَا رِكَابٍ

پیغمبر خپل تہ | لہ دوئی نہ | چہ نۀ دی زغلولی تاسو | پہ هغے باندِ | اسُونہ | او نۀ اوښان

نہ) دَ دے (یهودو) نہ راؤگرځول ، نو پہ هغے باندِ تاسو خپل اسونہ یا اوښان خو زغلولی نۀ دی

وَّلٰكِنَّ اللّٰهَ يُسَلِّطُ رُسُلَهٗ عَلٰى مَنْ يَّشَآءُ ؕ وَاللّٰهُ

او لیکن | اللہ | غالب کوی | خپل پیغمبران | پہ چا چہ | دے وغواړی | او اللہ

خو اللہ چہ پہ چا غواړی نو خپل پیغمبران پرے غالب راولی ۔ او اللہ تعالیٰ

عَلٰى كُلِّ شَیْءٍ قَدِيْرٌ ۞ مَاۤ اَفَآءَ اللّٰهُ عَلٰى رَسُوْلِهٖ

پہ هر څیز باندِ | قادر دے | هغہ څۀ چہ راؤگرځول | اللہ | پہ پیغمبر خپل

پہ هر څیز باندِ پوره پوره قدرت لری ، اللہ تعالیٰ چہ خپل پیغمبر تہ دَ نورو کلو دَ خلقو نہ کوم مال دَ

مِنْ اَهْلِ الْقُرٰى فَلِلّٰهِ وَلِلرَّسُوْلِ وَلِذِى الْقُرْبٰى وَالْيَتٰمٰى

لہ (مالونو) دَ اوسیدونکو دَ کلو نہ | نو هغہ دَ اللہ | او دَ رسول ؐ | او دَ خپلوانو | او دَ یتیمانو

فئ ورکړے دے ، نو هغہ دَ اللہ تعالیٰ ، دَ رسول او دَ هغۀ دَ خپلوانو ، او دَ یتیمانو

وَالْمَسٰكِيْنِ وَابْنِ السَّبِيْلِ ۙ كَیْ لَا يَكُوْنَ دُوْلَةًۢ بَيْنَ الْاَغْنِيَآءِ

او دَ مسکینانو | او دَ مسافرو دَ پاره دی | چہ هغہ نۀ وی | گردش کوونکی | پہ مینځ | دَ دولتمندو کښے

او دَ مسکینانو او دَ مسافرو حق دے چہ دغہ فئ ستاسو دَ مالدارو پہ قبضہ کښے

مِنْكُمْ ؕ وَمَاۤ اٰتٰىكُمُ الرَّسُوْلُ فَخُذُوْهُ ۗ وَمَا نَهٰىكُمْ

لہ تاسو نہ | او څۀ چہ | تاسو لہ درکړی | رسول ؐ | نو وا خلئ هغہ | او هغہ څۀ | چہ منع کړی تاسو

رانۀ شی او رسول ؐ چہ تاسو لہ څۀ درکوی هغہ واخلئ ، او چہ دَ څۀ نہ ئے منع کړیئی

عَنْهُ فَانْتَهُوْا ۚ وَاتَّقُوا اللّٰهَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعِقَابِ ۞

لہ هغے نہ | پس منع شئ تاسو | او ویریږئ | دَ اللہ نہ | بیشکہ | اللہ | سخت عذاب ورکوونکے دے

دَ هغے نہ منع شئ ۔ او دَ اللہ تعالیٰ نہ ویرہ کوئ ، بیشکہ چہ اللہ تعالیٰ پہ سزا ورکولو کښے ډیر سخت دے

لِلْفُقَرَآءِ الْمُهٰجِرِيْنَ الَّذِيْنَ اُخْرِجُوْا مِنْ دِيَارِهِمْ وَاَمْوَالِهِمْ

دَ پارہ دَ فقیرانو | مهاجرینو | کوم چہ | وِیستلے شوی دی | لہ کورونو خپلو نہ | او مالونو خپلو نہ

دَ هغے حاجتمندو مهاجرینو (دَ نورو نہ زیات) حق دے چہ دَ خپلو کورونو او دَ مالونو نہ را ویستلے شوی دی ۔

يَبْتَغُوْنَ فَضْلًا مِّنَ اللّٰهِ وَرِضْوَانًا وَّيَنْصُرُوْنَ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ ؕ

چہ غواړی | فضل | دَ اللہ | او رضامندی | او مدد کوی | دَ اللہ | او دَ دۀ دَ رسول

دَ اللہ تعالیٰ فضل او دَ هغۀ رضا غواړی او دَ اللہ تعالیٰ (دَ دین) او دَ دۀ دَ رسول امداد کوی

اُولٰٓئِكَ هُمُ الصّٰدِقُوْنَ ۞ وَالَّذِيْنَ تَبَوَّؤُ الدَّارَ وَالْاِيْمَانَ

هم دا خلق دی | رښتینی (مسلمانان) | او هغہ کسانو دَ پارہ | چہ قائم پاتے شی | پہ کور کښے | او پہ ایمان باندِ

هم دغہ خلق رښتینی (مسلمانان) دی ۔ او (دا مال) دَ هغہ خلقو (هم حق دے) چہ (دَ هجرت والا دَ) کور (مدینہ) کښے دَ وړاندِ

وقف لازم

مِنْ قَبْلِهِمْ يُحِبُّوْنَ مَنْ هَاجَرَ اِلَيْهِمْ وَلَا يَجِدُوْنَ

وړاندې له دوی نه | دوئ محبّت کوی | دَ هغه چا سره | چه هجرت کوی | دَ دوئ سره | او نهٔ بیا مومی

نه دیره (انصار) دی او په ایمان کښې (ثابت قدم) دی او دَ هغې خلقو سره مینه لری چه هغوئ ښارته هجرت کوی او په خپلو زړونو کښې

فِيْ صُدُوْرِهِمْ حَاجَةً مِّمَّآ اُوْتُوْا وَيُؤْثِرُوْنَ

په خپلو سینو کښې | څهٔ تنګی | له هغه څهٔ ته | چه ورکړے شی دوئ ته | او دوئ غوره کوی نور

هیڅ تنګی نهٔ ساتی په هغې څیز چه ورته ورکړے شی او نور دَ ځان نه

عَلٰٓى اَنْفُسِهِمْ وَلَوْ كَانَ بِهِمْ خَصَاصَةٌ ۛ وَمَنْ يُّوْقَ شُحَّ

په خپلو ځانونو باندې | اګر چه وی | په دوئ باندې | ولږه | او څوک چه | وُساتلے شو | له حرص

وړاندې کوی اګر کهٔ بخپله اوږی وی او څوک چه دَ خپل نفس دَ شومتیانه

نَفْسِهٖ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ ۝٩ وَالَّذِيْنَ جَآءُوْ مِنْۢ بَعْدِهِمْ

دَ نفس خپل نه | پس دغه خلق هم دوی دی | خلاصے موندونکی | او کوم خلق چه | راغلل | پس له دوئ نه

بچ وُساتلے شو نو هم دغه خو کامیاب خلق دی۔ او دَ هغه چا (په کښې حق دے) چه دَ دوئ نه پس راشی

يَقُوْلُوْنَ رَبَّنَا اغْفِرْ لَنَا وَلِاِخْوَانِنَا الَّذِيْنَ سَبَقُوْنَا

دوئ وائی | اے زمونږ ربه! | وُبخښه مونږه | او | ورورنړه زمونږ | کوم چه | وړاندې شوی دی له مونږ نه

او دا دعا کوی چه اے زمونږ ربه! مونږ وُبخښه او زمونږ هغه وروڼړه چه زمونږ نه وړاندې مسلمانان

بِالْاِيْمَانِ وَلَا تَجْعَلْ فِيْ قُلُوْبِنَا غِلًّا لِّلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا

په ایمان راوړو کښې | او مهٔ پیدا کوه | زمونږ په زړونو کښې | کینه | هغه کسانو دَ پاره | چه ایمان ئے راوړے دے

شوی دی، او زمونږ په زړونه کښې دَ ایماندارو دَ پاره هیڅ کینه مهٔ پیدا کوه

رَبَّنَآ اِنَّكَ رَءُوْفٌ رَّحِيْمٌ ۝١٠ اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ

اے زمونږ ربه! | بیشکه تهٔ | ډیر مهربان | رحم کوونکے یئے | آیا نهٔ دی کتلی تا | هغه کسانو ته چه

اے زمونږه ربه! بیشکه تهٔ مهربان رحم کوونکے یئے۔ آیا تا هغه خلقوته نهٔ دی کتلی چه

نَافَقُوْا يَقُوْلُوْنَ لِاِخْوَانِهِمُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ

منافقت ئے وکړو | چه دوئ وائی | خپلو هغه وروڼړو ته | کوم چه | کافران دی | له اهل کتابو نه

منافقان دی هغوئ له اهل کتابو نه خپلو کافرانو وروڼړو ته وائی کهٔ چرے

لَئِنْ اُخْرِجْتُمْ لَنَخْرُجَنَّ مَعَكُمْ وَلَا نُطِيْعُ فِيْكُمْ

کهٔ چرے | وُویستلے شوئ تاسو | نو مونږ به هم اُوځو | تاسو سره | او مونږ به نهٔ منو | ستاسو په باره کښې

تاسو (دَ مدینے نه) وُویستلے شوئ نو مونږ به هم تاسو سره اُوځو او ستاسو په معامله کښې به هیچرے دَ هیچا

اَحَدًا اَبَدًا ۙ وَّاِنْ قُوْتِلْتُمْ لَنَنْصُرَنَّكُمْ ؕ وَاللّٰهُ يَشْهَدُ

دَ چا | همیشه | او کهٔ چرے | تاسو سره جنګ وُشو | نو مونږ به ستاسو مدد کوو | او الله | ګواهی ورکوی

خبره نهٔ اُورو، او کهٔ تاسو سره جنګ کیږی نو خامخا به ستاسو امداد کوو او الله په دے ګواه دے

إِنَّهُمْ لَكَٰذِبُونَ ⑪ لَئِنْ أُخْرِجُوا لَا يَخْرُجُونَ مَعَهُمْ ج وَلَئِن

چه بیشکه دوی | دروغژن دی | که چرے | دوی وُویستلے شی | نو دوی به وُنه ځی | دَ دوی سره | او که چرے

چه دوی دروغ وائی ۔ که چرے کتابیان وُویستلے شول نو دوی به ورسره وُنه ځی او که چرے

قُوتِلُوا لَا يَنصُرُونَهُمْ ج وَلَئِن نَّصَرُوهُمْ لَيُوَلُّنَّ الْأَدْبَارَ قف

دوی سره جنګ وُشی | نو دوی به دَ هغوی مدد هم ونه کړی | او که چرے | دَ هغوی مدد هم وکړی | نو خامخا به دوی وګرځوی | شا کانے

هغوی سره جنګ وُشو نو دوی به ئے مدد نه کوی او که چرے مدد ئے وکړو نو په شا به وُتښتی

ثُمَّ لَا يُنصَرُونَ ⑫ لَأَنتُمْ أَشَدُّ رَهْبَةً فِي صُدُورِهِم مِّنَ اللَّهِ ط

بیا به | دوی له مدد نهٔ شی ورکولے | البته ستاسو خوف زیات دے | دَ دوی په سینو (زړونو) کښے | له خدائے نه

او بیا به دَ دوی امداد نه کیږی ۔ (مسلمانانو!) بیشکه دَ دوی په زړونو کښے دَ الله نه هم زیاته ستاسو ویره پرته ده

ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ قَوْمٌ لَّا يَفْقَهُونَ ⑬ لَا يُقَاتِلُونَكُمْ جَمِيعًا إِلَّا

دا | ځکه چه دوی | داسے قوم دے | چه نهٔ پوهیږی | دوی به جنګ وُنهٔ کړی تاسو سره | ټول | مګر

دا ځکه چه دوی داسے خلق دی چه دَ پوهے نه کار نهٔ اخلی ۔ دوی که ټول راجمع شی نو هم تاسو سره جنګ کولے نهٔ شی

فِي قُرًى مُّحَصَّنَةٍ أَوْ مِن وَرَاءِ جُدُرٍ ط بَأْسُهُم بَيْنَهُمْ

په کلو کښے | چه قلابند شوی وی | یا | وروستو | له دیوالونو نه | جنګ دَ دوی | په خپل مینځ کښے

خو په داسے کلو کښے چه ترے نه چاپیره دیوال وی یا دَ دیوالونو شاته ، دَ دوی جنګ په خپل مینځ

شَدِيدٌ ط تَحْسَبُهُمْ جَمِيعًا وَقُلُوبُهُمْ شَتَّىٰ ط ذَٰلِكَ

ډیر سخت دے | ګمان کوے ته په دوی باندے | دَ یو ځائے والی | او | زړونه دَ دوی | جُدا جُدا دی | دا

کښے ډیر سخت وی ستا پرے داګمان دے چه ګنی دوی یو ځائے دی حالانکه دَ دوی زړونه بیل بیل دی ، دا

بِأَنَّهُمْ قَوْمٌ لَّا يَعْقِلُونَ ⑭ ج كَمَثَلِ الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ قَرِيبًا

ځکه چه دوی | داسے قوم دے | چه نهٔ پوهیږی | په شان دَ حال | دَ هغه کسانو چه | چه وړاندے له دوی نه وو | هم نزدے

ځکه چه دا خلق دَ عقل نه کار نهٔ اخلی ۔ دَ دوی مثال دَ هغه خلقو دے چه پخوا ترے نه تیر شوی دی ، هغوی

ذَاقُوا وَبَالَ أَمْرِهِمْ ج وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ⑮ ج كَمَثَلِ

دوی وُڅکلو | وبال | دَ کار خپل | او دوی دَ پاره | عذاب | درد ناک دے | په شان دَ حال

دَ خپلو کارونو خوند څکلے دے او په درد ناک عذاب اخته دی ۔ دَ دوی مثال دَ

الشَّيْطَانِ إِذْ قَالَ لِلْإِنسَانِ اكْفُرْ ج فَلَمَّا كَفَرَ قَالَ إِنِّي

دَ شیطان دے | هر کله چه دهٔ ووئیل | انسان ته | چه کافر شه | پس هر کله چه | کافر شو | نو دهٔ ووئیل | بیشکه زهٔ

شیطان دے ، چه انسان ته وائی چه کافر شه نو چه هغه کافر شی نو بیا ورته وائی چه زهٔ

بَرِيءٌ مِّنكَ إِنِّي أَخَافُ اللَّهَ رَبَّ الْعَالَمِينَ ⑯ فَكَانَ

بیزاره یم | له تا نه | بیشکه زهٔ | ویریږم | دَ الله نه | چه رب دے | دَ ټولو جهانونو | پس شی

ستا نه بری یم ، زهٔ خو دَ الله تعالیٰ نه ویریږم چه دَ ټول مخلوق رب دے ۔ نو دَ دواړو

عَاقِبَتَهُمَآ اَنَّهُمَا فِی النَّارِ خَالِدَیْنِ فِیْهَا ؕ وَذٰلِكَ

انجام دَدِے دواړو | داچه داد واړه به | په اور کښے وی | دوئ به همیشه وی | په دے کښے | او هم داده

انجام داشو چه دواړه (دَدوزخ) اورته ارتاؤکړے شو چه تل به پکښے (لوغړن) پراته وی، او دَ ظالمانو

جَزٰٓؤُا الظّٰلِمِیْنَ ﴿۱۷﴾ یٰٓاَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوا اتَّقُوا اللّٰهَ وَلْتَنْظُرْ

سزا | دَ ظالمانو | اے | مؤمنانو ! | ویره کوئ | دَالله | او پکار ده چه وګوری

سزا هم دغه مقرر ده اے مؤمنانو ! دَ الله تعالیٰ نه ویره ساتئ او هر څوک دِ دا

نَفْسٌ مَّا قَدَّمَتْ لِغَدٍ ۚ وَاتَّقُوا اللّٰهَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ خَبِیْرٌۢ

انسان | چه څۀ | وړاندِ لیږلی دی دۀ | صبا دَپاره | او اُویریږئ | دَ الله نه | بیشکه الله | خبردار دے

وګوری چه دَ صبا دَ پاره ئے څۀ لیږلی دی ؟ او دَ الله نه ویره لرئ ، هغه ستاسو دَ کارونو نه

بِمَا تَعْمَلُوْنَ ﴿۱۸﴾ وَلَا تَكُوْنُوْا كَالَّذِیْنَ نَسُوا اللّٰهَ فَاَنْسٰىهُمْ

په هغه څۀ | چه تاسو ئے کوئ | او مۀ کیږئ تاسو | په شان دَ هغه کسانو | چه هیر ئے کړو | الله | نو دۀ هیر کړل دوئ

پوره پوره خبردے - او دَ هغه چا په شان مۀ کیږئ چه الله ئے هیر کړو نو الله تعالیٰ ترے نه

اَنْفُسَهُمْ ؕ اُولٰٓئِكَ هُمُ الْفٰسِقُوْنَ ﴿۱۹﴾ لَا یَسْتَوِیْٓ اَصْحٰبُ النَّارِ

دَ دوئ ځانونه | هم دا خلق دی | نافرمانه | برابر نۀ دی | دوزخیان

خپل ځانونه هیر کړل هم دغه خو نافرمانه (بد عمله) خلق دی. دوزخیان او جنتیان هیڅکله برابر

وَاَصْحٰبُ الْجَنَّةِ ؕ اَصْحٰبُ الْجَنَّةِ هُمُ الْفَآئِزُوْنَ ﴿۲۰﴾ لَوْ اَنْزَلْنَا

او جنتیان | جنتیان | هم دوی دی | کامیاب | کۀ چرے نازل کړے وے موږ

نۀ دی - هم جنتیان کامیاب خلق دی - کۀ موږ دا قرآن

هٰذَا الْقُرْاٰنَ عَلٰی جَبَلٍ لَّرَاَیْتَهٗ خَاشِعًا مُّتَصَدِّعًا مِّنْ خَشْیَةِ

دا قرآن | په یو غر باندِ | نو خامخا به تا لیدلے وو دا | عاجزی کوونکے | ټوټے ټوټے کیدونکے | له ویرے نه

په یو غر باندِ نازل کړے وے نو تا به لیدلے وو چه دَ الله تعالیٰ دَ ویرے نه به فرمان منونکے او چاؤدلے

اللّٰهِ ؕ وَتِلْكَ الْاَمْثَالُ نَضْرِبُهَا لِلنَّاسِ لَعَلَّهُمْ یَتَفَكَّرُوْنَ ﴿۲۱﴾

دَالله | او دا | مثالونه | موږ بیانوُو دا | خلقو دَ پاره | دَ پاره دَ دے چه دوئ | فکرو کړی

وو ، او دا مثالونه موږ دَ هغه خلقو دَ پاره بیانوُو چه هغوئ دَ غور او فکر نه کار واخلی

هُوَ اللّٰهُ الَّذِیْ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۚ عٰلِمُ الْغَیْبِ وَالشَّهَادَةِ ۚ هُوَ

هم دے دے الله | هغه چه | نشته دے هیڅوک معبود | سوا دَ دۀ نه | پوهه دے | په پټو | او ښکاره څیزونو هم دے دے

الله تعالیٰ خو هم هغه دے چه دَ هغۀ نه سوا بل معبود نشته ، دَ پټ او دَ ښکاره هر څۀ نه خبر دے ، هغه ډیر

الرَّحْمٰنُ الرَّحِیْمُ ﴿۲۲﴾ هُوَ اللّٰهُ الَّذِیْ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۚ اَلْمَلِكُ

بخښونکے | مهربان | هم دے دے الله | هغه چه | نشته دے هیڅوک معبود | سوا دَ دۀ نه | دے بادشاه دے

مهربان بیا بیا رحم کوونکے دے - الله تعالیٰ خو هم هغه دے چه دَ هغۀ نه سوا بل معبود نشته ، بادشاه دے

الْقُدُّوسُ السَّلٰمُ الْمُؤْمِنُ الْمُهَيْمِنُ الْعَزِيْزُ الْجَبَّارُ الْمُتَكَبِّرُ ؕ

ډير پاک | سالم د ټولو د عيبونو نه | امن ورکوونکے | ساتندوئکے | غالب | ډير زبردست | لوئے دے

پاک دے، هر عيب نه محفوظ، امن ورکوونکے دے، حفاظت کوونکے دے، زبردست دے، د خرابئ درستوونکے دے، ډير لوئے دے

سُبْحٰنَ اللّٰهِ عَمَّا يُشْرِكُوْنَ ﴿٢٣﴾ هُوَ اللّٰهُ الْخَالِقُ الْبَارِئُ

پاک دے | الله | له هغه څه نه چه دوئ شريکوی | هم دے دے الله | پيدا کوونکے | تو ے بشکاره کوونکے

الله تعالىٰ د دوئ د شرک نه بالکل پاک دے. هم الله تعالىٰ پيدا کوونکے درست جوړوونکے

الْمُصَوِّرُ لَهُ الْاَسْمَآءُ الْحُسْنٰى ؕ يُسَبِّحُ لَهٗ مَا فِي السَّمٰوٰتِ

صورت جوړوونکے | هم د ده دی نامے | ښائسته | تسبيح کوی | د ده څه چه | په آسمانونو کښے

صورت جوړوونکے دے، د هغهٔ ښکلی ښکلی نومونه دی، په آسمانونو او په زمکه کښے هر څهٔ د هغهٔ

وَالْاَرْضِ ۚ وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ﴿٢٤﴾

او زمکه کښے دی | او هم دے دے | غالب | د حکمت خاوند

پاکی بيانوی او هغه زبردست، د حکمت خاوند دے.

سُوْرَةُ الْمُمْتَحِنَةِ مَدَنِيَّةٌ وَّهِيَ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | ثَلٰثَ عَشْرَةَ اٰيَةً وَّفِيْهَا رُكُوْعَانِ

سورة الممتحنه په مدينه کښے نازل شو | (شروع) د الله په نامه چه لوئ مهربان ډير زيات رحم کوونکے دے | او په دے کښے ۱۳ آيتونه او ۲ رکوع دی

د الله په نامه شروع کوم چه لوئ مهربان د ډير زيات رحم خاوند دے

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَتَّخِذُوْا عَدُوِّيْ وَعَدُوَّكُمْ اَوْلِيَآءَ

اے | ايمان والو! | مهٔ نيسئ تاسو | زما دښمنان | او خپل دښمنان | دوستان

اے مؤمنانو! زما دښمنان او خپل دښمنان دوستان مهٔ جوړوئ

تُلْقُوْنَ اِلَيْهِمْ بِالْمَوَدَّةِ وَقَدْ كَفَرُوْا بِمَا جَآءَكُمْ

ورلېږئ تاسو | د دوئ طرف ته | (پيغام د) محبت | او بيشکه دوی کافران شوی دی | په هغه څهٔ | چه راغلی دی تاسو ته

تاسو هغوئ ته د دوستئ (او محبت) پيغام لېږئ، حال دا دے چه هغوئ د دے دين منکران دی کوم چه تاسو

مِّنَ الْحَقِّ ۚ يُخْرِجُوْنَ الرَّسُوْلَ وَاِيَّاكُمْ اَنْ تُؤْمِنُوْا

له حق دين نه | دوئ جلا وطن کوی | پيغمبر | او خپله تاسو هم | (حکه) چه | تاسو ايمان راوړئ

ته راغلے دے، هغوئ خو (ستاسو) رسول ؑ او تاسو (ستاسو د وطن نه) وباسی، صرف په دے خبره چه تاسو

بِاللّٰهِ رَبِّكُمْ ؕ اِنْ كُنْتُمْ خَرَجْتُمْ جِهَادًا فِيْ سَبِيْلِيْ

په الله | چه ستاسو رب دے | که چرے | تاسو وتلئ | جهاد د پاره | زما په لاره کښے

په الله باندے چه ستاسو رب دے ايمان راوړے دے، که تاسو زما په لار کښے د جهاد د پاره او زما د مرضئ موندلو

وَابْتِغَآءَ مَرْضَاتِيْ ۖ تُسِرُّوْنَ اِلَيْهِمْ بِالْمَوَدَّةِ ۖ وَاَنَا اَعْلَمُ

او د پاره د لټولو | د رضامندئ زما | تاسو پټ (ورلېږئ) | د دوئ طرف ته | (پيغام د) دوستئ | او زهٔ ښه پوهيږم

په غرض راوتلی يئ تاسو ورسره پټه پټه مينه ساتئ - او ما ته په ښهٔ شان معلوم دی

بِمَآ اَخْفَيْتُمْ وَمَآ اَعْلَنْتُمْ ۭ وَمَنْ يَّفْعَلْهُ مِنْكُمْ فَقَدْ ضَلَّ

په هغه څۀ | چه تاسو ئې پټوئ | او په هغه څۀ | چه تاسو ئې ښکاره کوئ | او څوک چه | وُکړي دا سے | له تاسو نه | نو بیشکه هغه گمراه شو

څۀ چه تاسو پټوئې او څۀ چه څرګندوئ او څوک چه (دَ بیا دَ پاره) دا سے وکړی ، نو هغه دَ سمے

سَوَآءَ السَّبِيْلِ ① اِنْ يَّثْقَفُوْكُمْ يَكُوْنُوْا لَكُمْ اَعْدَآءً وَّيَبْسُطُوْٓا

دَ نیغ | لاره نه | که چرے دوئ بیا مومی تاسو | نو دوئ به شی | ستاسو | دُښمنان | او را اُوږده به کړی

لارے نه بے لارے شو که دَ هغوئ دربانډِ لاس برشی نو ستاسو دُښمنان به وی او خپل لاسونه او

اِلَيْكُمْ اَيْدِيَهُمْ وَاَلْسِنَتَهُمْ بِالسُّوْٓءِ وَوَدُّوْا لَوْ تَكْفُرُوْنَ ۭ ②

ستاسو طرف ته | خپل لاسونه | او خپلے ژبے | په بدئ سره | او دوئ خوښوی | کاش! | چه تاسو کافران شئ ۔

خپلے ژبے به درته په بدئ بانډِ را اُوږدے کړی او هغوئ خود اغواړی چه تاسو کافران شئ ۔

لَنْ تَنْفَعَكُمْ اَرْحَامُكُمْ وَلَآ اَوْلَادُكُمْ ڔ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ڔ يَفْصِلُ

هیڅکله به نفع درنه کړی تاته | خپلوان ستاسو | او نه اولاد ستاسو | په ورځ | دَ قیامت | دے به فیصله وکړی

خپل خپلوان او اولاد به مو هیڅ په کار رانهٔ شی دَ قیامت په ورځ ۔ الله تعالیٰ به

بَيْنَكُمْ ۭ وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ ③ قَدْ كَانَتْ لَكُمْ

ستاسو په مینځ کښے | او الله | هغه څهٔ ته | چه تاسو ئے کوئ | ګوری | بیشکه | وَه | تاسو دَ پاره

ستاسو ترمینځهٔ فیصله کوی او الله تعالیٰ ستاسو کارونه وینی ګوری (او) تاسو دَ پاره خو دَ ابراهیمؑ او

اُسْوَةٌ حَسَنَةٌ فِيْٓ اِبْرٰهِيْمَ وَالَّذِيْنَ مَعَهٗ ڔ اِذْ قَالُوْا

نمونه | ښه | په ابراهیم کښے | او په هغه خلقو کښے | چه دَ ده سره وُو | هرکله چه | دوئ ووئیل

دَ دوئ دَ ملګرو په (ژوند) کښے یوه اعلیٰ نمونه (موجود) ده ۔ څهٔ وخت چه هغوئ خپل قوم ته

لِقَوْمِهِمْ اِنَّا بُرَءٰٓؤُا مِنْكُمْ وَمِمَّا تَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ ز

خپل قوم ته | چه بیشکه مونږ | بیزاره یُو | له تاسو نه | او له هغه څهٔ نه | چه تاسو ئے عبادت کوئ | سِوا | دَ الله نه

ووئیل چه مونږ له تاسو نه لاس په سر یُو او دَ هغے معبودانو نه چه تاسو دَ الله نه سوا مقرر کړی دی

كَفَرْنَا بِكُمْ وَبَدَا بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمُ الْعَدَاوَةُ وَالْبَغْضَآءُ اَبَدًا

مونږ انکار وکړو | ستاسو | او ښکاره شوه | زمونږ او ستاسو ترمینځهٔ | دُښمنی | او بغض | همیشه

مونږ تاسو نه منکر یُو او زمونږ او ستاسو ترمینځهٔ دَ همیشه دَ پاره دښمنی او بغض څرګند شوے دے

حَتّٰى تُؤْمِنُوْا بِاللّٰهِ وَحْدَهٗٓ اِلَّا قَوْلَ اِبْرٰهِيْمَ لِاَبِيْهِ لَاَسْتَغْفِرَنَّ

تر دے چه | تاسو ایمان راوړئ | په الله | چه یو دے | مګر | وینا | دَ ابراهیمؑ | خپل پلار ته | چه زهٔ به بخښنه غواړم

تر څو چه تاسو په یو الله بانډِ ایمان رانهٔ وړئ، مګر دا چه ابراهیمؑ خپل پلار ته داوئیلی وو چه زهٔ ستا په

لَكَ وَمَآ اَمْلِكُ لَكَ مِنَ اللّٰهِ مِنْ شَيْءٍ ۭ رَبَّنَا

ستا دَ پاره | او زهٔ اختیار نهٔ لرم | دَ پاره ستا | له الله نه | دَ هیڅ څیز | اے زمونږ ربه!

حقله دَ بخښنے دعا غواړم او زما دَ الله تعالیٰ په وړانډِ هیڅ اختیار نشته اے زمونږه ربه!

عَلَيْكَ تَوَكَّلْنَا وَإِلَيْكَ أَنَبْنَا وَإِلَيْكَ الْمَصِيرُ ④

په تا باندې | موږ توکل وکړو | او هم ستا طرف ته | موږ رجوع وکړه | او هم ستا طرف ته | واپس درتلل دي

موږ په تا باندې توکل کوو او موږ هم ستا طرف ته رجوع کوو او هم ستا طرف ته بېرته تګ دے

رَبَّنَا لَا تَجْعَلْنَا فِتْنَةً لِّلَّذِينَ كَفَرُوا وَاغْفِرْ لَنَا رَبَّنَا ۚ

اے زموږه ربه | مه جوړوه موږ | فتنه ځاے د ازمائښت | د هغه کسانو | چه کافران دي | او وبخښه موږ | اے زموږ ربه!

اے زموږ ربه! موږ د کافرو لاسونو ته مه پرېږده ، او زموږ ګناهونه وبخښه اے زموږ ربه!

إِنَّكَ أَنتَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ⑤ لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِيهِمْ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ

بیشکه هم ته | ډېر غالب | د حکمت خاوند یې | یقینًا | دَه | تاسو د پاره | په دے کښې | یوه نمونه | غوره

ته زبردست او د حکمتونو خاوند یې. د دغه خلقو په وینا کښې تاسو د پاره ښه نمونه پرته ده

لِّمَن كَانَ يَرْجُو اللَّهَ وَالْيَوْمَ الْآخِرَ ۚ وَمَن يَتَوَلَّ فَإِنَّ

هغه چا د پاره | چه اُمید لري | د الله | او د ورځے | د آخرت | او څوک چه | مخ واړوي | نو بیشکه

د هغه چا د پاره چه الله ته د ورتلو او د آخرت د ورځے عقیده لري ، او څوک چه ترے نه مخ واړوي نو الله تعالیٰ

اللَّهَ هُوَ الْغَنِيُّ الْحَمِيدُ ⑥ ع عَسَى اللَّهُ أَن يَجْعَلَ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَ

ع ٢ / ٧

الله | بے نیازه دے | ستائیلے شوے | نزدے دے | چه الله | پیدا کړي | ستاسو په مینځ کښې | او په مینځ

(خو بالکل) بے پروا او د تعریفونو خاوند دے. داځۀ عجیبه نۀ ده چه الله تعالیٰ ستاسو او د هغې کسانو

الَّذِينَ عَادَيْتُم مِّنْهُم مَّوَدَّةً ۚ وَاللَّهُ قَدِيرٌ ۚ وَاللَّهُ

د هغه خلقو کښې | چه دښمني لرئ تاسو | له هغوئ نه | دوستي | او الله | قدرت لرونکے دے | او الله

تر مینځه مینه پیدا کړي چه (تن) ورسره ستاسو دښمني ده او الله ډېر لوئے قادر دے ، او الله تعالیٰ

غَفُورٌ رَّحِيمٌ ⑦ لَا يَنْهَاكُمُ اللَّهُ عَنِ الَّذِينَ لَمْ يُقَاتِلُوكُمْ

بخښونکے | مهربان دے | نۀ منع کوي تاسو | الله | له هغه خلقو نه | چه جنګ نۀ کوي تاسو سره

بخښونکے ډېر زیات مهربان دے. الله تعالیٰ تاسو د هغه چا نه نۀ منع کوي چه د دین په حقله درسره

فِي الدِّينِ وَلَمْ يُخْرِجُوكُم مِّن دِيَارِكُمْ أَن تَبَرُّوهُمْ

د دین په باره کښې | او دوئ نۀ یئ وېستلي تاسو | له کورونو ستاسو نه | له دے نه چه | تاسو احسان وکړئ د دوئ سره

جنګونه نۀ کوي او نۀ هغوئ تاسو د خپلو کورونو نه وېستلي یئ (بلکه الله اجازت درکوي) چه تاسو هغوئ سره ښۀ سلوک

وَتُقْسِطُوا إِلَيْهِمْ ۚ إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الْمُقْسِطِينَ ⑧ إِنَّمَا يَنْهَاكُمُ

او انصاف وکړئ | د دوئ په حق کښې | بیشکه الله | خوښوي | انصاف کوونکي | بیشکه | منع کوي تاسو

کوئ او انصاف ورسره کوئ ، بیشکه انصاف کوونکي کسان د الله تعالیٰ خوښ وي. الله تعالیٰ خو تاسو د هغه چا د

اللَّهُ عَنِ الَّذِينَ قَاتَلُوكُمْ فِي الدِّينِ وَأَخْرَجُوكُم مِّن دِيَارِكُمْ

الله | له هغه خلقو نه | چه جنګ کوي تاسو سره | د دین په حقله | او دوئ وویستلئ تاسو | له کورونو ستاسو نه

دوستئ نه منع کوي چه د دین په حقله درسره جنګیږي او هغوئ تاسو د خپلو کورونو نه وېستلي یئ

وَظٰهَرُوْا عَلٰٓى اِخْرَاجِكُمْ اَنْ تَوَلَّوْهُمْ ۚ وَمَنْ يَّتَوَلَّهُمْ

او امداد ئې کړے دے | ستاسو په ويستلو کښے | چه تاسو دوستي وکړئ د دوئ سره | او څوک چه | دوستي وکړي دوئ سره

او ستاسو په ويستلو کښے ئې د يو بل سره مدد کړے دے او څوک چه د دغے خلقو سره دوستي کوي

فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الظّٰلِمُوْنَ ۝ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِذَا جَآءَكُمُ

نو هم دغه خلق | ظالمان دي | اے | ايمان والو! | هر کله چه | راشي تاسو ته

نو هم دغه خلق ظالمان دي. اے مؤمنانو! څه وخت چه مؤمنے ښځے

الْمُؤْمِنٰتُ مُهٰجِرٰتٍ فَامْتَحِنُوْهُنَّ ۗ اَللّٰهُ اَعْلَمُ بِاِيْمَانِهِنَّ ۚ

مؤمنانے ښځے | مهاجرے | نو د دوئ امتحان واخلئ | الله | ښه پوهه دے | په ايمان د دوئ

هجرت وکړي او تاسو له راشي نو د هغوئ آزميښت کوئ الله د هغوئ د ايمان (يا بے ايماني) نه ښه واقف دے

فَاِنْ عَلِمْتُمُوْهُنَّ مُؤْمِنٰتٍ فَلَا تَرْجِعُوْهُنَّ اِلَى الْكُفَّارِ ۗ لَا هُنَّ

پس که چرے تاسو معلومے کړئ دوئ | چه مؤمنانے دي | پس مه واپس کوئ دوئ | د کافرانو طرف ته | نه هغه (ښځے)

نو که ستاسو باور وشي چه هغوئ مؤمنے دي نو کافرانو ته ئې مه واپس کوئ نه دغه ښځے

حِلٌّ لَّهُمْ وَلَا هُمْ يَحِلُّوْنَ لَهُنَّ ۗ وَاٰتُوْهُمْ مَّآ اَنْفَقُوْا ۗ

حلالے دي | د هغوئ د پاره | او نه هغه (کافران) | حلال دي | د دوئ د پاره | او ورکړئ هغوئ ته | څه چه | هغوئ خرچ وکړو

کافرانو له حلالے دي او نه کافران هغوئ له روا دي او (کافرانو له) ورکړئ څه چه هغوئ (په دے ښځو) خرچ کړے وي

وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ اَنْ تَنْكِحُوْهُنَّ اِذَآ اٰتَيْتُمُوْهُنَّ اُجُوْرَهُنَّ ۗ

او نشته ګناه | په تاسو باندے | دا چه | تاسو نکاح وکړئ دوئ سره | هر کله چه | تاسو ورکړئ دوئ ته | د دوئ مهر

او په تاسو هيڅ ګناه نشته که تاسو هغوئ سره نکاح وکړئ خو هله چه مهر ورته ادا کړئ،

وَلَا تُمْسِكُوْا بِعِصَمِ الْكَوَافِرِ وَسْـَٔلُوْا مَآ اَنْفَقْتُمْ وَلْيَسْـَٔلُوْا

او مه ساتئ تاسو | تعلقات | د کافرو ښځو سره | او غواړئ | هغه څه | چه خرچ کړي دي تاسو | او ودې غواړي دوئ

او چه کومے کافرانے ښځے دي هغوئ سره تعلقات باقي مه ساتئ او چه څومره خرچ مو پرے کړے وي هغه د کافرانو نه وغواړئ او هغوئ

مَآ اَنْفَقُوْا ۗ ذٰلِكُمْ حُكْمُ اللّٰهِ ۗ يَحْكُمُ بَيْنَكُمْ ۗ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ

هغه څه چه لګولي دي دوئ | هم دا دے | حکم د الله | دے په فيصله وکړي | ستاسو په مينځ کښے | او الله | پوهه

چه څومره خرچ کړے وي هغه دِ (تاسو نه) وغواړي هم دا د الله حکم دے هغه ستاسو تر مينځه فيصله کوي او الله تعالیٰ ډير پوهه د

حَكِيْمٌ ۝ وَاِنْ فَاتَكُمْ شَيْءٌ مِّنْ اَزْوَاجِكُمْ اِلَى الْكُفَّارِ

د حکمت خاوند دے | او که چرے | ستاسو د لاسه ووځي | څوک ښځه | له ښځو ستاسو نه | د کافرانو طرف ته

حکمت خاوند دے او که چرے ستاسو په ښځو کښے يوه ښځه په کافرانو کښے پاتے شي نو تاسو هغو (کافرانو)

فَعَاقَبْتُمْ فَاٰتُوا الَّذِيْنَ ذَهَبَتْ اَزْوَاجُهُمْ مِّثْلَ مَآ اَنْفَقُوْا ۗ

او غنيمت واخلئ کافرانو نه | نو ورکړئ | هغو ته چه | تللي دي | ښځے د دوئ | په شان د هغه څه | چه خرچ کړي وو دوئ

نه غنيمت حاصل کړئ نو د چا د لاس نه چه ښځے وتلي دي هغوئ ته د خپلے خرڅے برابر مال ادا کړئ.

وَاتَّقُوا اللّٰهَ الَّذِیٓ اَنْتُمْ بِهٖ مُؤْمِنُوْنَ ⑪ يٰٓاَيُّهَا النَّبِيُّ اِذَا جَآءَكَ

اوویره کوئ | دَالله | هغه ذات چه | تاسو په هغهٔ | ایمان لرئ | اے نبیٔ ! | هرکله چه راشی تا ته

او دَالله تعالیٰ نه ویره ساتئ چه تاسو پرے ایمان راوړے دے۔ اے پیغمبره ! چه مؤمنے ښځے درله

الْمُؤْمِنٰتُ يُبَايِعْنَكَ عَلٰٓى اَنْ لَّا يُشْرِكْنَ بِاللّٰهِ شَيْـًٔا

مؤمنانے ښځے | چه بیعت کوی تاسره | په دے خبره چه | شریک به نهٔ مقرروی | دَالله سره | څهٔ څیز

راشی ، او دَ دے خبرو بیعت درسره کوی چه الله تعالیٰ سره به هیڅوک نهٔ شریکوی

وَّلَا يَسْرِقْنَ وَلَا يَزْنِيْنَ وَلَا يَقْتُلْنَ اَوْلَادَهُنَّ وَلَا يَاْتِيْنَ بِبُهْتَانٍ

او نهٔ به دوئ غلا کوی | اونهٔ به دوئ زنا کوی | اونهٔ به دوئ وژنی | اولاد خپل | او نهٔ به لګوی | څهٔ بهتان

او غلا به نهٔ کوی ، او زنا به نهٔ کوی او خپل بچی به نهٔ وژنی او دَ بهتان اولاد به نهٔ راوړی چه مخ په مخ

يَّفْتَرِيْنَهٗ بَيْنَ اَيْدِيْهِنَّ وَاَرْجُلِهِنَّ وَلَا يَعْصِيْنَكَ فِيْ مَعْرُوْفٍ

چه دوئ تړلے وی | په مینځ دَ لاسونو خپلو | او دَ ښپو خپلو کښے | او دوئ به نافرمانی نهٔ کوی ستا | په یو نیک کار کښے

ئے (په خاوند پورے) په دروغه وتړی ، او دَ نیکئ په یو کار کښے به ستا نافرمانی نهٔ کوی

فَبَايِعْهُنَّ وَاسْتَغْفِرْ لَهُنَّ اللّٰهَ ۭ اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ⑫

نو بیعت وکړه دَ دوئ سره | او بخښنه وغواړه | دَ دوئ دَ پاره | دَالله نه | بیشکه | الله | بخښونکے | مهربان دے۔

نو تهٔ هغوئ نه لاس بنوئ کوه او دَ هغوئ په حقله دَ الله نه بخښنه غواړه بیشکه الله بخښونکے ډیر زیات مهربان دے۔

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَتَوَلَّوْا قَوْمًا غَضِبَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ قَدْ يَئِسُوْا

اے ایمان والوٓ ! | دوستی مهٔ کوئ | هغه قوم سره | چه غضب کړے دے | الله | په هغوئ باندِ | هغوئ نااُمیده شوی دی

اے مؤمنانو ! هغه خلقو سره یارانے مهٔ ساتئ چه دَ الله تعالیٰ په غضب اخته دی دَ آخرت نه دا ئے

مِنَ الْاٰخِرَةِ كَمَا يَئِسَ الْكُفَّارُ مِنْ اَصْحٰبِ الْقُبُوْرِ ⑬ ع

له آخرت نه | لکه څنګه چه | نااُمیده شوی دی | کافران | له خاوندانو دَ قبرونو نه

مایوسه دی لکه په قبرونو کښے پراته کافران چه مایوسه دی۔

سُوْرَةُ الصَّفِّ مَدَنِيَّةٌ وَّهِيَ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | اَرْبَعَ عَشَرَةَ اٰيَةً وَّفِيْهَا رُكُوْعَانِ

سورة صف په مدینه کښے نازل شوا | (شروع) دَالله په نامه چه ډیر مهربان ډیر زیات رحم کوونکے دے | په دے کښے ۱۴ آیتونه او ۲ رکوع دی

دَالله په نامه شروع کوم چه ډیر مهربان دَ ډیر زیات رحم خاوند دے

سَبَّحَ لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ۚ وَهُوَ الْعَزِيْزُ

پاکی بیانوی | دَالله | هغه څهٔ | چه په آسمانونو کښے | او هغه څهٔ | چه په زمکه کښے دی | او هم دے | غالب

دَالله تعالیٰ پاکی بیانوی هر څهٔ چه په آسمانونو او په زمکه کښے دی ، او هغه زبردست دَ حکمتونو

الْحَكِيْمُ ① يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لِمَ تَقُوْلُوْنَ مَا لَا تَفْعَلُوْنَ ②

دَ حکمت خاوند دے | اے ایمان والوٓ ! | ولے | وایئ تاسو | هغه څهٔ | چه نهٔ ئے کوئ تاسو

خاوند دے۔ اے مؤمنانو ! داسے خبرے ولے دَ خُلے نه اوباسئ چه هغه نهٔ (پوره) کوئ۔



الصف ٦١ ع ٨

كَبُرَ مَقْتًا عِنْدَ اللّٰهِ اَنْ تَقُوْلُوْا مَا لَا تَفْعَلُوْنَ ③ اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ

دېره ناخوښه شوه | په نزد دَ الله | دا چه تاسو وايئ | هغه څه چه تاسوئې نه کوئ | بيشکه الله | خوښوي

دا دَ الله تعالىٰ په نزد دَ ناراضګئ خبره ده چه داسې خبره کوئ چه هغه (پوره) کوئ نه. دَ الله تعالىٰ هغه کسان خوښ

الَّذِيْنَ يُقَاتِلُوْنَ فِيْ سَبِيْلِهٖ صَفًّا كَاَنَّهُمْ بُنْيَانٌ مَّرْصُوْصٌ ④

هغه خلق چه | جنګ کوي | دَ ده په لاره کښې | صف تړلي | لکه چه دوئ | يو دېوال دے | په قلعي سره ټينګ کړے شوے

وي چه دَ هغهٔ په لاره کښې داسې جنګيږي لکه په قلعي پوخ شوے ديوال

وَاِذْ قَالَ مُوْسٰى لِقَوْمِهٖ يٰقَوْمِ لِمَ تُؤْذُوْنَنِيْ وَقَدْ تَّعْلَمُوْنَ

او هر کله چه ووئيل | موسىٰ | خپل قوم ته | اے زما قومه! | ولې | تاسو تنزنوئ ما | او بيشکه تاسو پوهيږئ

او څهٔ وخت چه موسىٰ خپل قوم ته ووئيل اے زما قومه! تاسو ما ولې آزاروئ؟ او په دے ښهٔ پوهه يئ

اَنِّيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ اِلَيْكُمْ ؕ فَلَمَّا زَاغُوْٓا اَزَاغَ اللّٰهُ قُلُوْبَهُمْ ؕ

چه بيشکه زهٔ | رسول يم | دَ الله | ستاسو طرف ته | پس هر کله چه | دوئ کاږهٔ لاړل | تو کاږهٔ کړل | الله | زړونه دَ دوئ

چه زهٔ تاسو ته دَ الله رسول راغلے يم، بيا هر کله چه هغوئ ګمراهي اختيار کړه (نو) الله تعالىٰ دَ هغوئ زړونه واړول

وَاللّٰهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْفٰسِقِيْنَ ⑤ وَاِذْ قَالَ عِيْسَى ابْنُ مَرْيَمَ

او الله | هدايت نهٔ کوي | نافرمانه خلقو ته | او هر کله چه ووئيل | عيسىٰ ځوئے دَ مريم

او الله تعالىٰ (داسے) نافرمانه خلقو ته لاره نهٔ ښائي - او هغه وخت را ياد کړه چه عيسىٰ دَ مريم ځوئے ووئيل چه

يٰبَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ اِنِّيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ اِلَيْكُمْ مُّصَدِّقًا لِّمَا

اے بني اسرائيلو! | بيشکه زهٔ | رسول يم | دَ الله | ستاسو طرف ته | تصديق کوونکے | دَ هغه څهٔ

اے بني اسرائيلو! زهٔ دَ الله تعالىٰ رسول يم (چه) تاسو طرف ته (راليږلے شوے يم) دَ تورات تصديق کوونکے يم

بَيْنَ يَدَيَّ مِنَ التَّوْرٰىةِ وَمُبَشِّرًا بِرَسُوْلٍ يَّاْتِيْ مِنْ بَعْدِي

چه له مانه وړاندِ دے | تورات | او زيرے ورکوونکے يم | دَ يو رسول | چه راځي به | د روستو له مانه

چه زما نه وړاندِ راغلے دے، او دَ يو (بل) رسول زيرے درکوم چه زما نه پس به راځي،

اسْمُهٗٓ اَحْمَدُ ؕ فَلَمَّا جَآءَهُمْ بِالْبَيِّنٰتِ قَالُوْا هٰذَا سِحْرٌ

نامه دَ هغهٔ به | احمد وي | بيا هر کله چه | هغه راغے دوئ ته | دَ ښکاره نخښو سره | نو دوئ ووئيل | دا خو | جادو دے

نوم به ئې احمد وي. نو بيا چه هغهٔ ورته ښکاره نخښے راوړے نو دوئ ووئيل چه دا خو ښکاره

مُّبِيْنٌ ⑥ وَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ وَهُوَ

ښکاره | او څوک | زيات ظالم دے | له هغه چا نه | چه وے تړل | په الله باندِ | دروغ | او هغه

جادو دے. او دَ هغه چا نه غټ ظالم څوک دے چه په الله تعالىٰ باندِ دروغ تړي؟ حال دا دے

يُدْعٰٓى اِلَى الْاِسْلَامِ ؕ وَاللّٰهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظّٰلِمِيْنَ ⑦ يُرِيْدُوْنَ

رابللے شي | دَ اسلام طرف ته | او الله | لاره نهٔ ښائي | ظالمانو خلقو ته | دوئ غواړي

چه هغه دَ اسلام طرف ته رابللے شي، او الله تعالىٰ داسے ظالمانو ته هدايت نهٔ کوي. دوئ غواړي

لِيُطْفِـُٔوْا نُوْرَ اللّٰهِ بِاَفْوَاهِهِمْ ؕ وَاللّٰهُ مُتِمُّ نُوْرِهٖ وَلَوْ كَرِهَ

چه مړ کړی | نور د الله | په خپلو خُلو سره | او الله | پوره کوونکے | د نور خپل دے | اګر که | بدئے ګڼړی

چه د خدائے نور د خُلے په پوکو مړ کړی او الله تعالیٰ به خپل نور کمال ته رسوی اګر که په کافرانو

الْكٰفِرُوْنَ ۝۸ هُوَ الَّذِیْۤ اَرْسَلَ رَسُوْلَهٗ بِالْهُدٰی وَدِیْنِ الْحَقِّ

کافران | هم دے دے | هغه چه | ورے لیږلو | پیغمبر خپل | هدایت | او دین | د حق سره

بد لګی۔ الله تعالیٰ هغه ذات دے چه خپل رسول ئے د هدایت او د حق دین سره راولیږلو

لِیُظْهِرَهٗ عَلَی الدِّیْنِ كُلِّهٖ وَلَوْ كَرِهَ الْمُشْرِكُوْنَ ۝۹

چه دے غالب کړی دا | په ټولو دینونو باندې | اګر که | بدئے ګڼړی | مشرکان خلق

چه دا دین په نورو ټولو دینونو باندې غالب کړی اګر که د مشرکانو په زړونو باندې تیارهٔ راځی

یٰۤاَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا هَلْ اَدُلُّكُمْ عَلٰی تِجَارَةٍ تُنْجِیْكُمْ مِّنْ عَذَابٍ

اے د ایمان خاوندانو! | آیا زهٔ وُښایم تاسو ته | داسے تجارت | چه خلاصے در کړی تاسو ته | له عذاب

اے مؤمنانو ! آیا داسے تجارت درته وُښایم چه د دردناک عذاب نه مو بچ

اَلِیْمٍ ۝۱۰ تُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ وَتُجَاهِدُوْنَ فِیْ سَبِیْلِ اللّٰهِ

دردناک نه | تاسو ایمان راوړئی | په الله | او د ده په رسول | او تاسو جهاد کوئی | په لاره د الله کے

کړی۔ ؟ (هغه دا چه) په خدائے او په پیغمبر ایمان راوړئی ، او د الله تعالیٰ په لاره کښے د ځان او

بِاَمْوَالِكُمْ وَاَنْفُسِكُمْ ؕ ذٰلِكُمْ خَیْرٌ لَّكُمْ اِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ۝۱۱

په خپلو مالونو سره | او په خپلو ځانونو سره | هم دا | غوره دی | تاسو د پاره | که چرے | تاسو پوهیږئ۔

د مال جهاد کوئی ، دا درله ډیره غوره ده که تاسو پوهیږئ۔

یَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوْبَكُمْ وَیُدْخِلْكُمْ جَنّٰتٍ تَجْرِیْ مِنْ تَحْتِهَا

دے به وُبخښی | تاسو د پاره | ستاسو ګناهونه | او داخل به کړی تاسو | په باغونو کښے | چه بهیږی به | لاندې د هغے نه

الله تعالیٰ به ستاسو ګناهونه معاف کړی او داسے باغونو کښے به مو داخل کړی چه د هغے لاندې به

الْاَنْهٰرُ وَمَسٰكِنَ طَیِّبَةً فِیْ جَنّٰتِ عَدْنٍ ؕ ذٰلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِیْمُ ۝۱۲

ویالے | او محلونو | پاکیزهٔ ته | په باغونو کښے | د همیشه پاتے کیدو | هم دا ده | کامیابی | لویه

ویالے بهیږی او بنګلو پاکیزه ځایونو ته چه په تل سمسور باغونو کښے به آبادوی، هم دغه غټه کامیابی ده

وَاُخْرٰی تُحِبُّوْنَهَا ؕ نَصْرٌ مِّنَ اللّٰهِ وَفَتْحٌ قَرِیْبٌ ؕ وَبَشِّرِ

او دویمه خبره | چه تاسو ئے خوښوئی | مدد دے | د الله د طرف نه | او فتح | نزدے | او زیرے ورکړه

او یوه بله (غټه ګټه) چه ستاسو ډیره خوښه ده یعنی د الله مدد او زر ګټهات او مؤمنانو ته (د دے

الْمُؤْمِنِیْنَ ۝۱۳ یٰۤاَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا كُوْنُوْۤا اَنْصَارَ اللّٰهِ كَمَا قَالَ

مؤمنانو ته | اے | د ایمان خاوندانو | شئ تاسو | مددګار | د الله | لکه چه | ویلی وو

زیرے ورکړه اے مؤمنانو ! تاسو د الله (د دین) مددګار شئ ، لکه چه عیسیٰ د مریم

عِيْسَى ابْنُ مَرْيَمَ لِلْحَوَارِيّٖنَ مَنْ اَنْصَارِيْٓ اِلَى اللّٰهِ ؕ قَالَ

عیسیٰؑ ځوئے دَ مریم | حواریانو ته | چه څوک دے | زما مددګار | دَ الله طرف ته | وویل

ځوئے حواریانو ته وئیلی وو چه څوک ماسره دَ الله تعالیٰ دَ پاره مدد ګار کوی ؟ حواریانو

الْحَوَارِيُّوْنَ نَحْنُ اَنْصَارُ اللّٰهِ فَاٰمَنَتْ طَّآئِفَةٌ مِّنْۢ بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ

حواریانو | مونږ یو | مددګار (دَ دین) | دَ الله | نو ایمان راوړو | یو جماعت | له بنی اسرائیلو نه

جواب ورکړو چه مونږ دَ الله (دَ دین) ملاتړ یو ، نو بیا په بنی اسرائیلو کښے یو ټولی ایمان راوړو

وَكَفَرَتْ طَّآئِفَةٌ ۚ فَاَيَّدْنَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا عَلٰى عَدُوِّهِمْ

او انکار وکړو | بل جماعت | نو مونږ مدد وکړو | دَ هغه کسانو | چه ایمان ئے راوړو | په مقابله دَ دښمنانو دَ دوئی کښے

او بل ټولے منکر پاتے شو ، نو مونږ دَ دښمن په مقابله کښے دَ ایماندارو امداد وکړو

فَاَصْبَحُوْا ظٰهِرِيْنَ ﴿١٤﴾ ع

نو دوئی شول | غالب

نو هغوئی غلبه بیا موندہ ۔

ع ۵ / ۲ ۱۰

سُوْرَةُ الْجُمُعَةِ مَدَنِيَّةٌ وَّهِيَ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | اِحْدٰى عَشْرَةَ اٰيَةً وَّفِيْهَا رُكُوْعَانِ

سورۂ جمعه په مدینه کښے نازل شو | (شروع) دَ الله په نامه چه ډیر مهربان ډیر زیات رحم کوونکے دے | او په دے کښے ۱۱ آیتونه او ۲ رکوع دی

دَ الله په نامه شروع کوم چه لوئے مهربان دَ ډیر زیات رحم خاوند دے

يُسَبِّحُ لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ الْمَلِكِ

تسبیح کوی | دَ الله | هر هغه څه چه | په آسمانونو کښے | او هر هغه څه | چه په زمکه کښے دی | دے بادشاه دے

دَ الله تعالیٰ پاکی بیانوی هر څه چه په آسمانونو کښے او په زمکه کښے دی چه بادشاه دے

الْقُدُّوْسِ الْعَزِيْزِ الْحَكِيْمِ ﴿١﴾ هُوَ الَّذِيْ بَعَثَ فِي الْاُمِّيّٖنَ رَسُوْلًا

ډیر پاک | غالب | دَ حکمت خاوند دے | هم دے دے | چا چه | راولیږلو | په امیانو کښے | یو پیغمبر

پاک دے زبردست دے دَ حکمتونو خاوند دے، هغه ذات دے چه په امیانو (عربو) کښے ئے دَ هغوئی دَ ذات نه یو

مِّنْهُمْ يَتْلُوْا عَلَيْهِمْ اٰيٰتِهٖ وَيُزَكِّيْهِمْ وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ ق

هم له دوئی نه | چه تلاوت کوی په دوئی باندِ | دَ آیتونو دَ ده | او پاکوی دوئی | او زده کوی دوئی ته | کتاب | او پوهه

پیغمبر راولیږلو چه دَ الله آیتونه ورته اوروی او هغوئی پاکوی او دَ کتاب او دَ حکمت خبرے ورته ښائی

وَاِنْ كَانُوْا مِنْ قَبْلُ لَفِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ ﴿٢﴾ لا وَّاٰخَرِيْنَ مِنْهُمْ لَمَّا

اګر چه دوئی وو | له دے نه وړاندِ | په ښکاره ګمراهئی کښے | او نورو له (هم) | له دوئی نه چه لا نه دی

حال دا وو چه دوئی وړومبے په ښکاره ګمراهئی کښے پراته وو ۔ او په دوئی کښے نورو له (مو) هم (نه ئے راولیږلے)

يَلْحَقُوْا بِهِمْ ؕ وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ﴿٣﴾ ذٰلِكَ فَضْلُ اللّٰهِ يُؤْتِيْهِ

ملاؤ شوی | دَ دوئی سره | او هم دے دے | غالب | دَ حکمت خاوند | دا دے | فضل | دَ الله | دے ورکوی

چه هغوئی لا تر او سه را رسیدلی نه دی او هغه زبردست دَ حکمت خاوند دے ۔ دا دَ الله فضل دے، دَ چا په حقله چه

مَنْ يَّشَآءُ ؕ وَاللّٰهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيْمِ ④ مَثَلُ الَّذِيْنَ حُمِّلُوا

هغه چا ته چه غواړي | او الله | خاوند دَ فضل | لوئے دے | مثال | دَ هغه کسانو | چه بار کړے شو په دوى باندې

دَ چا په حقله چه وغواړي په هغه ئے وکړي او الله دَ لوئے فضل خاوند دے۔ چا ته چه په تورات باندې دَ عمل کولو حکم

التَّوْرٰىةَ ثُمَّ لَمْ يَحْمِلُوْهَا كَمَثَلِ الْحِمَارِ يَحْمِلُ اَسْفَارًا ؕ بِئْسَ

تورات | بيا | اُوچت نهٔ کړو دوئ دا | په شان دَ حال دَ خره دے | چه اُوچتوى کتابونه | بد دے

شوے وو، بيا هغوئ په دے عمل وُنهٔ کړو دَ هغوئ مثال دَ خره دے چه کتابونه پرے بار وى، دَ هغے قوم

مَثَلُ الْقَوْمِ الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِ اللّٰهِ ؕ وَاللّٰهُ لَا يَهْدِى

مثال | دَ هغه خلقو | کوم چه | دروغ وګڼړل | آيتونه دَ الله | او الله | لاره نهٔ ښائى

مثال ډير خراب دے چه دَ خدائے آيتونه ئے دروغ وګڼړل او الله تعالىٰ ظالمانو خلقو

الْقَوْمَ الظّٰلِمِيْنَ ⑤ قُلْ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ هَادُوْٓا اِنْ زَعَمْتُمْ اَنَّكُمْ

قوم | دَ ظالمانو ته | ووايه | اے خلقو! | چه يهوديان يئ! | کهٔ چرے تاسو خيال کوئ | چه تاسو

ته هدايت نهٔ کوى ته ووايه چه اے يهودو! کهٔ تاسو دا دعوىٰ لرئ چه بس يوازې

اَوْلِيَآءُ لِلّٰهِ مِنْ دُوْنِ النَّاسِ فَتَمَنَّوُا الْمَوْتَ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ⑥

دوستان يئ | دَ الله | سوا | دَ نورو خلقونه | پس آرزو وکړئ | دَ مرګ | کهٔ چرے تاسو رښتينى يئ

تاسو په ټولو خلقو کښے دَ الله دوستان يئ بل څوک نهٔ دى نو دَ خپل مرګ آرزو وکړئ کهٔ تاسو رښتينى يئ

وَلَا يَتَمَنَّوْنَهٗٓ اَبَدًاۢ بِمَا قَدَّمَتْ اَيْدِيْهِمْ ؕ وَاللّٰهُ

او | دوئ به آرزو وُنهٔ کړى دَ دے | هميشه | په وجه دَ هغه څهٔ | چه وړاندے وُليږل | لاسونو دَ دوئ | او الله

او دوئ به هيڅ کله دا آرزو وُنه کړى ځکه چه دَ خپله لاسه وړاندې ليږلى عملونه ورته معلوم دى۔ او الله

عَلِيْمٌۢ بِالظّٰلِمِيْنَ ⑦ قُلْ اِنَّ الْمَوْتَ الَّذِىْ تَفِرُّوْنَ مِنْهُ فَاِنَّهٗ

ښهٔ پوهه دے | په ظالمانو | ووايه | بيشکه | مرګ | هغه چه | تاسو تښتئ | له هغے نه | بيشکه هغه

په دے ظالمانو ډير ښهٔ پوهه دے۔ ورته ووايه چه تاسو دَ کوم مرګ نه تښتئ هغه خو به ضرور

مُلٰقِيْكُمْ ثُمَّ تُرَدُّوْنَ اِلٰى عٰلِمِ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ فَيُنَبِّئُكُمْ

تاسو ته ملاويدونکے دے | بيا به | واپس کړے شئ | طرف | دَ پوهيدونکى دَ پټو | او دَ ښکاره وُ ته | بيا به دے تاسو ته وښائى

تاسو رانيسى، بيا به دَ پټ او دَ ښکاره هر څهٔ نه واقف (الله) ته ورو وړاندې کيږئ نو هغه به درته

بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ⑧ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِذَا نُوْدِىَ لِلصَّلٰوةِ

څهٔ چه به | تاسو کول | اے | ايمان والؤ | هر کله چه | راوُ بللے شئ | مونځ دَ پاره

خپل عملونه يو په يو په ګوته کړى اے مؤمنانو! هر کله چه دَ جمعے په ورځ دَ مونځ دَ پاره

مِنْ يَّوْمِ الْجُمُعَةِ فَاسْعَوْا اِلٰى ذِكْرِ اللّٰهِ وَذَرُوا الْبَيْعَ ؕ ذٰلِكُمْ خَيْرٌ

په ورځ دَ جمعے | نو ورمنډے کړئ | دَ الله دَ ذکر طرف ته | او پريږدئ | اخستل خرڅول | هم دا خبره | غوره ده

اذان وکړے شي، نو دَ الله دَ يادولو دَ پاره روان شئ او اخستل خرڅول پريږدئ دا تاسو دَ پاره غوره ده

ع ۸

لَكُمْ اِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ۝۹ فَاِذَا قُضِيَتِ الصَّلٰوةُ فَانْتَشِرُوْا

تاسو دَ پاره | کهٔ چرے تاسو پوهيږئ. | پس هر کله چه | پُوره اداشی | مونځ | نو تاسو خوارهٔ شئ

دے کهٔ تاسو پوهيږئ. بيا چه مونځ پوره شی نو په زمکه

فِى الْاَرْضِ وَابْتَغُوْا مِنْ فَضْلِ اللّٰهِ وَاذْكُرُوا اللّٰهَ كَثِيْرًا لَّعَلَّكُمْ

په زمکه کښے | او لټوئ | فضل (رزق) | دَ الله | او ياد کړئ | الله | ډير | دَ پاره دَ دے چه تاسو

خوارهٔ شئ او دَ خدائے (مقرره کړے) روزی لټوئ او الله تعالیٰ ډير ډير يادوئ چه کامياب

تُفْلِحُوْنَ ۝۱۰ وَاِذَا رَاَوْا تِجَارَةً اَوْ لَهْوَا ۨانْفَضُّوْٓا اِلَيْهَا

خلاصے بيا مومئ | او هر کله چه | دوئ ووينی | تجارت | يا لوبه تماشه | (نو) دوئ منډے کړی | دَ هغے طرف ته

شئ. او (ځنے کسانو) چه دَ سودا يا دَ تماشے خبرَ وُليدهٔ، نو هغے پسے په منډه خوارهٔ وارهٔ شول

وَتَرَكُوْكَ قَآئِمًا ؕ قُلْ مَا عِنْدَ اللّٰهِ خَيْرٌ مِّنَ اللَّهْوِ

او پريږدی تا | ولاړ | ته ووايه | څهٔ چه | الله سره دی | هغه ډير بهٔ دی | له لوبو نه

او تهٔ ئے ولاړ پريښود ے. ورته ووايه چه دَ الله تعالیٰ سره کوم ثواب دے هغه دَ تماشو او دَ

وَمِنَ التِّجَارَةِ ؕ وَاللّٰهُ خَيْرُ الرّٰزِقِيْنَ ۝۱۱ ع

او له تجارت نه | او الله | ډير بهٔ | روزی ورکوونکے دے

سودا ګانو نه ډير غوره دے او الله تعالیٰ ډير بهٔ روزی رسان دے.

سُوْرَةُ الْمُنٰفِقُوْنَ مَدَنِيَّةٌ وَّهِىَ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | اِحْدٰى عَشْرَةَ اٰيَةً وَّفِيْهَا رُكُوْعَانِ

سورهٔ منافقون په مدينه کښے نازل شوه | (شروع) دَ الله په نامه چه لوئے مهربان ډير زيات رحم کوونکے دے | او په دے کښے ۱۱ آيتونه او ۲ رکوع دی

دَ الله په نامه شروع کوم چه لوئے مهربان ډير زيات رحم خاوند دے

اِذَا جَآءَكَ الْمُنٰفِقُوْنَ قَالُوْا نَشْهَدُ اِنَّكَ لَرَسُوْلُ اللّٰهِ

هر کله چه راشی تا ته | منافقان | (نو) وائی | مونږ ګواهی ورکوو | چه بيشکه تهٔ | دَ الله رسول يئے

(اے نبی کريم) تا له چه منافقان راشی نو وائی چه مونږ ګواهی ورکوو چه تهٔ بيشکه دَ الله رسول يئے.

وَاللّٰهُ يَعْلَمُ اِنَّكَ لَرَسُوْلُهٗ ؕ وَاللّٰهُ يَشْهَدُ اِنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ

او الله | پوهيږی | چه بيشکه تهٔ | دَ دهٔ رسول يئے | او الله | ګواهی ورکوی | (چه) بيشکه | منافقان خلق

او الله ته داخو معلومه ده چه تهٔ دَ الله رسول يئے. خو الله (دَ دے خبرے) ګواهی (هم) کوی چه دا منافقان

لَكٰذِبُوْنَ ۝۱ ج اِتَّخَذُوْٓا اَيْمَانَهُمْ جُنَّةً فَصَدُّوْا

دروغژن دی | دوئ جوړ کړی دی | قسمونه خپل | ډالونه | پس دوئ منع کړل (خلق)

دروغژن دی. دوئ ځان ته خپل قسمونه ډالونه کړی دی ، بيا دوئ (نور خلق هم) دَ

عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ؕ اِنَّهُمْ سَآءَ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ۝۲ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ

دَ الله دَ لارے نه | بيشکه بد دی | هغه څهٔ | چه دوی ئے کوی | دا | ځکه چه دوئ

الله دَ لارے نه منع کوی دَ دوئ دا کارونه ډير نا کاره دی. دا ځکه چه دوئ

ركوع ۱۲ ۳ ۲۸

وقف لازم

اٰمَنُوْا ثُمَّ كَفَرُوْا فَطُبِعَ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ فَهُمْ لَا يَفْقَهُوْنَ ③

ایمان راوړو | بیا | کافر شول | پس مُهر ووهلے شو | په زړونو دَ دوئ | پس دوئ | نهٔ پوهیږی

ایمان راوړو بیا کافران شول نو په زړونو ئے الله تعالیٰ مهر ولګولو نو اوس هغوئ نهٔ پوهیږی

وَاِذَا رَاَيْتَهُمْ تُعْجِبُكَ اَجْسَامُهُمْ ؕ وَاِنْ يَّقُوْلُوْا تَسْمَعْ

او هرکله چه | تهٔ ووینے دوئ ته | نو ښهٔ لګی تاته | بدنونه دَ دوئ | او که چرے دوئ خبره وکړی | نو تهٔ اورے

او چه تهٔ ئے ووینے نو دَ دوئ جُثے درته ښائسته ښکاره شی او چه خبرے کوی نو تهٔ دَ دوئ

لِقَوْلِهِمْ ؕ كَاَنَّهُمْ خُشُبٌ مُّسَنَّدَةٌ ؕ يَحْسَبُوْنَ كُلَّ صَيْحَةٍ

دَ دوئ خبره | لکه چه دوئ | لرګی دی | په دیوال لګولے شی | دوئ خیال کوی | هر دَ زور آواز

خبرے اورے دوئ. ځنت لکه (په دیوال پورے) وُدرَولے شوی لرګی دی، دوئ هره چغه په خپل

عَلَيْهِمْ ؕ هُمُ الْعَدُوُّ فَاحْذَرْهُمْ ؕ قٰتَلَهُمُ اللّٰهُ ؗ اَنّٰى يُؤْفَكُوْنَ ④

په خپل ځان | هم دوئ دی | دُښمنان | نو تهٔ دَ دوئ نه ځان ساته | هلاک دِ کړی دوئ | الله | چه کوم خوا | دوئ اړولی روان دی

ځان ګنړی. دوئ (ستا) دُښمنان دی دَ دوئ نه ځان ساته، الله دِ دوئ برباد کړی، دا په کومه غاړه روان دی؟

وَاِذَا قِيْلَ لَهُمْ تَعَالَوْا يَسْتَغْفِرْ لَكُمْ رَسُوْلُ اللّٰهِ لَوَّوْا

او هرکله چه | وُوئیلے شی | دوئ ته | چه راشئ تاسو | چه بخښنه وغواړی | تاسو دَ پاره | رسول دَ الله | نو دوئ تاؤ کړی

او چه ورته ووئیلے شی چه راشئ چه دَ الله پیغمبر درله بخښنه وُغواړی نو (دوئ په ګستاخئ سره)

رُءُوْسَهُمْ وَرَاَيْتَهُمْ يَصُدُّوْنَ وَهُمْ مُّسْتَكْبِرُوْنَ ⑤ سَوَآءٌ

خپل سرونه | او تهٔ به ووینے دوئ | چه دوئ مخ اړوی | او دوئ | لوئ کوونکی دی | برابره ده

خپل سرونه تاؤ کړی او تهٔ به ئے ووینے چه دوئ مخونه جارباسی او ځان غټ ګنړی. دَ دوئ په حقله

عَلَيْهِمْ اَسْتَغْفَرْتَ لَهُمْ اَمْ لَمْ تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ ؕ لَنْ يَّغْفِرَ اللّٰهُ

په دوئ باندِ | که تهٔ بخښنه وُغواړے | دَ دوئ دَ پاره | یا | بخښنه وُنهٔ غواړے | دوئ دَ پاره | هیڅکله به وُنهٔ بخښی | الله

برابره ده که تهٔ ورله بخښنه غواړے یا بخښنه نهٔ غواړے، الله تعالیٰ به دوئ ته هیچرے

لَهُمْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَا يَهْدِى الْقَوْمَ الْفٰسِقِيْنَ ⑥ هُمُ الَّذِيْنَ يَقُوْلُوْنَ

دوئ | بیشکه الله | هدایت نهٔ کوی | قوم | دَ نافرمانو ته | دا هغه کسان دی چه | دوئ وائی چه

بخښنه نهٔ کوی یقیناً الله تعالیٰ نافرمانه خلقو ته هدایت نهٔ کوی. دا خو هغه کسان دی چه وائی چه

لَا تُنْفِقُوْا عَلٰى مَنْ عِنْدَ رَسُوْلِ اللّٰهِ حَتّٰى يَنْفَضُّوْا ؕ

خرڅ مهٔ کوئ | په هغه چا باندِ | چه دَ رسول الله سره دی | تر دے چه | دوئ خوارهٔ وارهٔ شی

څوک دَ الله پیغمبر سره راټول شوی دی په هغوئ خرڅ مهٔ کوئ چه خوارهٔ وارهٔ شی

وَلِلّٰهِ خَزَآئِنُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَلٰكِنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ

او الله دَ پاره دی | خزانے | دَ آسمانونو | او دَ زمکے | او لیکن | منافقان

حال دا چه دَ آسمانونو او دَ زمکے خزانے الله تعالیٰ سره دی خو منافقان په دے

لَا يَفْقَهُوْنَ ﴿٧﴾ يَقُوْلُوْنَ لَئِنْ رَّجَعْنَآ اِلَى الْمَدِيْنَةِ لَيُخْرِجَنَّ

نهٔ پوهیږی | دوئی وائی | کهٔ چرے | مونږ واپس راوګرځیدو | مدینے ته | نو خامخا به وباسی

نهٔ پوهیږی۔ دوئی وائی چه کهٔ مونږ مدینے ته پسته لاړ شو ، نو عزتمن خلق به

الْاَعَزُّ مِنْهَا الْاَذَلَّ ؕ وَلِلّٰهِ الْعِزَّةُ وَلِرَسُوْلِهٖ وَلِلْمُؤْمِنِيْنَ وَلٰكِنَّ

ډیر عزت والا | له هغے نه | ذلیل لره | او الله دپاره دے | عزت | او دهٔ د رسول دپاره | او مؤمنانو دپاره | او لیکن

ذلیله کسان ترے نه بهر وباسی ، او عزت خو بس د الله او د رسول او د مؤمنانو دے خو منافقان

الْمُنٰفِقِيْنَ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿٨﴾ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تُلْهِكُمْ اَمْوَالُكُمْ

منافقان | نهٔ پوهیږی | اے مؤمنانو ! | غافله دِ نهٔ کړی تاسو | مالونه ستاسو

په دے نهٔ پوهیږی۔ اے مؤمنانو ! (یاد ساتئ چه) مالونه او اولاد مو د الله

وَلَآ اَوْلَادُكُمْ عَنْ ذِكْرِ اللّٰهِ ۚ وَمَنْ يَّفْعَلْ ذٰلِكَ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ

او نهٔ اولاد ستاسو | د الله د ذکر نه | او څوک چه | وکړی | دا کار | نو هم دا خلق دی

د یاد نه منع نهٔ کړی او څوک چه داسے وکړی نو هغوئی تاوانیان

الْخٰسِرُوْنَ ﴿٩﴾ وَاَنْفِقُوْا مِنْ مَّا رَزَقْنٰكُمْ مِّنْ قَبْلِ اَنْ يَّاْتِيَ

نقصان موندونکی | او خرچ کړئ | له هغه څهٔ نه | چه درکړی دی مونږ تاسو ته | وړاندِ له دے نه | چه راشی

پاتے شول۔ او مونږ چه درته څهٔ درکړی دی د هغے نه (په خیراتونو کښے) خرچ کوئ د دے نه وړاندِ چه یو تن ته

اَحَدَكُمُ الْمَوْتُ فَيَقُوْلَ رَبِّ لَوْلَآ اَخَّرْتَنِيْٓ اِلٰٓى اَجَلٍ قَرِيْبٍ ۙ

یو تن له تاسو نه | مرګ | نو وائی | اے زمارّبه ! | ولے مهلت رانهٔ کړو تا ماته | لږ موده دپاره

مرګ په سر ودریږی نو بیا به وائی چه اے زمارّبه ! ما ته دِ یو څو ورځے مهلت ولے رانهٔ کړو؟

فَاَصَّدَّقَ وَاَكُنْ مِّنَ الصّٰلِحِيْنَ ﴿١٠﴾ وَلَنْ يُّؤَخِّرَ اللّٰهُ نَفْسًا

چه ما خیرات کړے وے | او زهٔ شوے وے | له نیکانو نه | او هیڅ کله به مهلت ورنهٔ کړی | الله | یو نفس ته

چه خیرات مِ کړے وے او په نیکانو کښے شمیر شوے وے۔ او الله تعالیٰ هیڅ ته مهلت نهٔ ورکوی.

اِذَا جَآءَ اَجَلُهَا ؕ وَاللّٰهُ خَبِيْرٌۢ بِمَا تَعْمَلُوْنَ ﴿١١﴾

هر کله چه راشی | نیټه د دهٔ | او الله | خبردار دے | له هغه څهٔ نه | چه تاسو ئے کوئ.

هر کله چه نیټه ئے پوره شی او الله تعالیٰ ستاسو د کارونو نه پوره پوره خبر دے.

سُوْرَةُ التَّغَابُنِ مَدَنِيَّةٌ وَّهِيَ ثَمَانِيَ عَشَرَةَ اٰيَةً وَّفِيْهَا رُكُوْعَانِ

سورهٔ تغابن په مدینه کښے نازل شوه او په دے کښے ۱۸ آیتونه او دوه رکوع دی

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

(شروع) په نامه د الله چه تو مهربان ډیر زیات رحم کوونکے دے

د الله په نامه شروع کوم چه لوئے مهربان د ډیر زیات رحم خاوند دے

يُسَبِّحُ لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ۚ لَهُ الْمُلْكُ وَ

پاکی بیانوی | د الله | کوم مخلوق | چه په آسمانونو کښے | او کوم چه | په زمکه کښے دے | د دهٔ دے حکومت | او

د الله تعالیٰ پاکی بیانوی څهٔ چه په آسمانونو او په زمکه کښے دی ، حکومت یوازے د دهٔ دے ، او

لَهُ الْحَمْدُ ۡ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ① هُوَ الَّذِيْ

دهٔ له دهٔ | ستاینه | او هم دے | په هر څیز باندې | قدرت لرونکے دے | هم هغه دے | چا چه

ټول تعریفونه د هغهٔ دی او هغه په هر څیز پوره قدرت لری۔ الله هغه دے چه تاسو ټول ئے

خَلَقَكُمْ فَمِنْكُمْ كَافِرٌ وَّمِنْكُمْ مُّؤْمِنٌ ؕ وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ

پیدا کړئ تاسو | پس ځنې له تاسو نه | کافران دي | او ځنې له تاسو نه | مؤمنان دی | او الله | هغه څهٔ ته | چه تاسو ئے کوئ

پیدا کړئ ، نو ځنې درکښې کافر دی او ځنې مؤمنان دی او الله تعالیٰ ستاسو کارونه وینی

بَصِيْرٌ ② خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ بِالْحَقِّ وَصَوَّرَكُمْ

کوری | پیدا ئے کړل | آسمانونه | او زمکه | په حق سره | او صورت ئے جوړ کړو ستاسو

کوری۔ آسمانونه او زمکه ئے سم سم پیدا کړل ، او ستاسو صورتونه

فَاَحْسَنَ صُوَرَكُمْ ۚ وَاِلَيْهِ الْمَصِيْرُ ③ يَعْلَمُ مَا فِي السَّمٰوٰتِ

نو ښهٔ ئے جوړ کړل | صُورتونه ستاسو | او د دهٔ طرف ته | واپس تلل دی | دے پیژنی | هغه څهٔ | چه په آسمانونو کښے

ئے جوړ کړل او ډیر ښائسته ئے جوړ کړل او د هغهٔ طرف ته واپس تلل دی، هغهٔ ته د آسمانونو او د زمکے ټول څیزونه

وَالْاَرْضِ وَيَعْلَمُ مَا تُسِرُّوْنَ وَمَا تُعْلِنُوْنَ ؕ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ

او زمکه کښے دی | او دے پیژنی | څهٔ چه | تاسو پټوئ | او څهٔ چه | تاسو ښکاره کوئ | او الله | پوهه دے

معلوم دی ، او ستاسو د پټو او څرګندو کارونو نه ښهٔ واقف دے او الله تعالیٰ ته د زړونو

بِذَاتِ الصُّدُوْرِ ④ اَلَمْ يَاْتِكُمْ نَبَؤُا الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ قَبْلُ ۡ

په راز | د سینو | آیا نهٔ دے راغلے تاسو ته | خبر | د هغه خلقو | چه کافران وو | له دے نه وړاندې

ټول رازونه په ښهٔ شان معلوم دی۔ آیا تاسو ته د پخوانو خلقو خبر راغلے نهٔ دے چه تاسو نه وړاندې ئے کفر کړے وو

فَذَاقُوْا وَبَالَ اَمْرِهِمْ وَلَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ⑤ ذٰلِكَ بِاَنَّهٗ

پس وڅکلو دوئ | مصیبت | د خپل کار | او دوئ د پاره | عذاب | دردناک دے | دا | ځکه چه

نو هغوئ د خپلو کارونو په وبال اخته شول او هغوئ د پاره دردناک عذاب مقرر دے۔ دا ځکه چه هغوئ

كَانَتْ تَّاْتِيْهِمْ رُسُلُهُمْ بِالْبَيِّنٰتِ فَقَالُوْۤا اَبَشَرٌ يَّهْدُوْنَنَا ۡ

راغلی وُو دوئ ته | پیغمبران د دوئ | د واضحو نخښو سره | نو دوئ ووئیل | چه آیا بنیادمان به | مونږ ته لاره ښائی

له پیغمبران د پرانستو نخښو سره راغلل ، نو وے وئیل چه آیا بشر به مونږ ته لار ے چارے ښائی

فَكَفَرُوْا وَتَوَلَّوْا وَّاسْتَغْنَى اللّٰهُ ؕ وَاللّٰهُ غَنِيٌّ حَمِيْدٌ ⑥ زَعَمَ

پس دوئ انکار وکړو | او مخ ئے واړولو | او پرواه ونهٔ کړه | الله | او الله | بے نیازه | ستائیلے شوے دے | ګمان وکړو

نو هغوئ انکار وکړو او مخ ئے واړولو او الله هم د هغوئ پرواه ونه کړه او الله بے پرواه دے د تعریفونو لائق دے۔ د کافرانو خیال

الَّذِيْنَ كَفَرُوْۤا اَنْ لَّنْ يُّبْعَثُوْا ؕ قُلْ بَلٰى وَرَبِّيْ

هغه خلقو | چه منکر دی | چه | دوئ به هیڅ کله نهٔ شی راپاڅولے | ووایه | ولے نه | زما د قسم وی په رب زما

دے چه هغوئ به (دوباره) هیڅ کله (ژوندی) نهٔ شی راپورته کولے۔ نهٔ ووایه! چه ولے نه او زما د رب قسم دے

لَتُبْعَثُنَّ ثُمَّ لَتُنَبَّؤُنَّ بِمَا عَمِلْتُمْ ۖ وَذٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ

خامخا به راپورته کړے شئ تاسو | بیا به | تاسو ته وښودلے شی | هغه څه | چه تاسو به کول | او دا خبره | الله دپاره

چه تاسو به خامخا راپاڅولے شئ بیا به درته خپل ټول عملونه په ګوته کولے شی او دا کار الله تعالیٰ ته ډیر آسان

يَسِيرٌ ⑦ فَاٰمِنُوْا بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ وَالنُّوْرِ الَّذِيْٓ اَنْزَلْنَا ۖ وَاللّٰهُ بِمَا

آسانه ده | پس ایمان راوړئ | په الله | او د ده په رسول | او په نور | هغه چه | مونږ نازل کړو | او الله | له هغه څه نه

دے ، نو په الله تعالیٰ او د هغهٔ په رسول او په هغه نور بانډې ایمان راوړئ چه مونږ رالیږلے دے او الله تعالیٰ

تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرٌ ⑧ يَوْمَ يَجْمَعُكُمْ لِيَوْمِ الْجَمْعِ ذٰلِكَ يَوْمُ

چه تاسو ئے کوئ | خبردار دے | په هغه ورځ | چه جمع به کړی تاسو | په ورځ | د قیامت | هم دا ده | ورځ

ستاسو د کارونو نه خبردار دے، په کومه ورځ چه به هغه تاسو د جمع کیدو (یعنی د قیامت) په ورځ راجمع کړی، هم دغه د (سود)

التَّغَابُنِ ۗ وَمَنْ يُّؤْمِنْ بِاللّٰهِ وَيَعْمَلْ صَالِحًا يُّكَفِّرْ عَنْهُ سَيِّاٰتِهٖ

د ګټے بیلات | او څوک چه | ایمان راوړی | په الله | او عمل وکړی | نیک | تو لرے به کړی | له ده نه | بدیانے د ده

زیان ورځ ده۔ او چا چه په خدائے ایمان راوړے وی او د نیکئی کارونه کوی نو الله به د هغهٔ ګناهونه لرے کړی

وَيُدْخِلْهُ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَآ اَبَدًا ۗ

او داخل به کړی دے | په باغونو کښے | چه بهیږی به | لاندې د هغے نه | نهرونه | همیشه به وی | په هغے کښے | همیشه

او هغه به په داسے باغونو کښے داخل کړی چه د هغے (د اونو) لاندے ولے بهیږی همیشه به پکښے او سیږی۔

ذٰلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ ⑨ وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَكَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَآ اُولٰٓئِكَ

هم دا ده | کامیابی | لویه | او کوم خلقو | چه انکار وکړو | او دروغ ئے وګڼړل | زمونږ آیتونه | هم دا خلق دی

دا ډیره لویه کامیابی ده۔ او چا چه انکار کړے وی او زمونږ آیتونه ئے دروغ ګڼړلی وی نو هغوئ

اَصْحٰبُ النَّارِ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ۖ وَبِئْسَ الْمَصِيْرُ ⑩ مَآ اَصَابَ

دوزخیان | همیشه به وی | په هغے کښے | او بد دے | ځائے د ورتلو | نهٔ رسیږی

دوزخیان دی چه تل به پکښے پراته وی او دغه ډیره ناکاره ټیکاونړه ده۔ (دنیا کښے) هیڅ مصیبت

مِنْ مُّصِيْبَةٍ اِلَّا بِاِذْنِ اللّٰهِ ۗ وَمَنْ يُّؤْمِنْ بِاللّٰهِ يَهْدِ قَلْبَهٗ ۗ

هیڅ مصیبت | مګر | په حکم د الله | او څوک چه | ایمان راوړی | په الله | هدایت کوی | د ده زړهٔ ته

د الله تعالیٰ د حکم نه بغیر نهٔ راځی او څوک چه په الله تعالیٰ ایمان راوړی هغه د ده زړهٔ ته هدایت کوی

وَاللّٰهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ ⑪ وَاَطِيْعُوا اللّٰهَ وَاَطِيْعُوا الرَّسُوْلَ ۚ فَاِنْ

او الله | په هر څیز بانډې | ښهٔ پوهه دے | او حکم منئ | د الله | او حکم منئ | د رسول | بیا که چرے

او الله تعالیٰ په هر څیز ډیر ښهٔ پوهه دے۔ او تاسو د الله په وینا عمل کوئ او د رسول حکم منئ، نو که مخ مو

تَوَلَّيْتُمْ فَاِنَّمَا عَلٰى رَسُوْلِنَا الْبَلٰغُ الْمُبِيْنُ ⑫ اَللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۗ

تاسو مخ واړوئ | نو بیشکه | په پیغمبر زمونږ | رسول دی | ښکاره | الله | نشته هیڅوک معبود | سوا د ده نه

ترے نه واړولو نو زمونږ د رسول په ذمه خو بس تش (حکمونه) په څرګنده رسول دی، د الله تعالیٰ نه سوا بل معبود نشته

وَعَلَى اللّٰهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُوْنَ ﴿١٣﴾ يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْۤا اِنَّ

او په الله باندې | پکار ده چه توکل وکړی | مؤمنان | اے مؤمنانو ! | بیشکه

او ایماندار کسان دې بس په خدائے باندې باور ساتی۔ اے مومنانو ! ستاسو په بعضو

مِنْ اَزْوَاجِكُمْ وَاَوْلَادِكُمْ عَدُوًّا لَّكُمْ فَاحْذَرُوْهُمْ ۚ وَاِنْ تَعْفُوْا

ځنے ستاسو له بیبیانو نه | او (ځنے) ستاسو له اولاد نه | دښمنان دی | ستاسو | پس تاسو او یرېږئ له دوئ نه | او که چرے تاسو معافی ورکړئ

او اولاد کښے ځنے ستاسو دښمنان دی۔ نو د هغوئ په حقله ویښ وسیږئ او که معافی ورکړئ

وَتَصْفَحُوْا وَتَغْفِرُوْا فَاِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿١٤﴾ اِنَّمَآ اَمْوَالُكُمْ

او مخ ونکړځوئ | او بخښنه وکړئ | نو بیشکه | الله | ډیر بخښونکے | مهربان دے | بیشکه | ستاسو مالونه

او ستر گے پرے پټے کړئ او ورته بخښئ ، نو الله بخښونکے مهربان دے ۔ بیشکه ستاسو مالونه او ستاسو

وَاَوْلَادُكُمْ فِتْنَةٌ ۭ وَاللّٰهُ عِنْدَهٗۤ اَجْرٌ عَظِيْمٌ ﴿١٥﴾ فَاتَّقُوا اللّٰهَ

او ستاسو اولاد | ازمیښت دے | او الله | سره دے | اجر | ډیر لوئے | پس او یرېږئ | د الله نه

اولاد خو یو ازمیښت دے ، او الله تعالیٰ سره ډیر لوئے اجر دے ۔ نو د الله تعالیٰ نه ویره کوئ

مَا اسْتَطَعْتُمْ وَاسْمَعُوْا وَاَطِيْعُوْا وَاَنْفِقُوْا خَيْرًا لِّاَنْفُسِكُمْ ۭ وَمَنْ

څومره چه تاسو نه کیدے شی | او واورئ | او حکم منئ | او خرڅ کوئ | غوره به وی | ستاسو په حق کښے | او څوک چه

څومره چه موس رسی او خبره اورئ او حکم منئ او (د الله په لاره کښے) خرڅ کوئ دا به تاسو له غوره وی او څوک چه

يُّوْقَ شُحَّ نَفْسِهٖ فَاُولٰۤئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ ﴿١٦﴾ اِنْ تُقْرِضُوا اللّٰهَ

بچ شی | له شومتیا | د نفس خپل نه | پس هم دوئ دی | کامیابه | که چرے تاسو قرض ورکړئ | الله ته

د نفس د شومتیا نه بچ شی نو هم دغه کسان کامیاب دی۔ که تاسو الله تعالیٰ له ښه

قَرْضًا حَسَنًا يُّضٰعِفْهُ لَكُمْ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ۭ وَاللّٰهُ

قرض | ښه | نو دے به غبرگ کړی دا | تاسو د پاره | او معاف به کړی | تاسو | او الله

قرض ورکوئ لو نو هغه به ئے درله په څو څو چنده زیاتوی او ستاسو قصور به معاف کوی او الله تعالیٰ

شَكُوْرٌ حَلِيْمٌ ﴿١٧﴾ عٰلِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ﴿١٨﴾

ډیر قدردان | ډیر تحمل والا دے | پوهه دے | په پټه | او ښکاره خبره | غالب | خاوند د حکمت دے

ډیر قدردان او ډیر تحمل والا دے په پټ او ښکاره هر څه باندې پوهه دے زبردست دے د حکمت خاوند دے

سُوْرَةُ الطَّلَاقِ مَدَنِيَّةٌ وَّهِيَ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | اِثْنَتَا عَشْرَةَ اٰيَةً وَّفِيْهَا رُكُوْعَانِ

سورۂ طلاق په مدینه کښے نازل شوه | (شروع) د الله په نامه چه لوئے مهربان ډیر زیات رحم کوونکے دے | په دے کښے ۱۲ آیتونه او دوه رکوع دی

د الله په نامه شروع کوم چه لوئے مهربان د ډیر زیات رحم خاوند دے

يٰۤاَيُّهَا النَّبِيُّ اِذَا طَلَّقْتُمُ النِّسَآءَ فَطَلِّقُوْهُنَّ لِعِدَّتِهِنَّ

اے نبی ! | هر کله چه | طلاق ورکړئ تاسو | ښځو ته | پس طلاق ورکوئ دوئ ته | د دوئ د عدت په شروع کښے

اے نبی ! (مسلمانانو ته ووایه !) چه ښځو له طلاق ورکول غواړئ نو د عدت د زمانے نه وړاندے ئے ورکوئ

وَاَحْصُوا الْعِدَّةَ ۚ وَاتَّقُوا اللّٰهَ رَبَّكُمْ ۚ لَا تُخْرِجُوْهُنَّ مِنْۢ بُيُوْتِهِنَّ

او شمېره وکړئ | دَ عدّت | او اوېرېږئ | دَ الله نه | چه ستاسو رب دے | مه اُوباسئ تاسو دا ښځې | له کورونو دَ دوئ نه

او دَ عدّت (دَ ورځو) شمېر کوئ، او دَ الله خپل رب نه وېره ساتئ، او هغوئ دَ خپلو کورونو نه بهر مه اوباسئ

وَلَا يَخْرُجْنَ اِلَّآ اَنْ يَّاْتِيْنَ بِفَاحِشَةٍ مُّبَيِّنَةٍ ۗ وَتِلْكَ حُدُوْدُ اللّٰهِ ۗ

او نهٔ دِ خپله وځی | مګر | دا چه دوئ وکړی | (څرګند) بې حیائی | ښکاره | او دا | حدونه دی | دَ الله

او پخپله دِ هم نهٔ وځی خو هله! چه دَ بې شرمئ کار په څرګندهٔ وکړی ، او دا دَ الله (مقرر کړی) حدونه دی

وَمَنْ يَّتَعَدَّ حُدُوْدَ اللّٰهِ فَقَدْ ظَلَمَ نَفْسَهٗ ۗ لَا تَدْرِيْ لَعَلَّ اللّٰهَ

او څوک چه | تېرېږی | له حدونو | دَ الله نه | نو بېشکه دهٔ ظلم وکړو | په خپل ځان | ته نهٔ پوهېږې | شاید | چه الله

او څوک چه دَ الله دَ مقرر حدونو نه وړاندِ تېرشی نو هغهٔ په ځان زیاتے وکړو تا ته معلومه نهٔ دهٔ، ښائیږی چه الله

يُحْدِثُ بَعْدَ ذٰلِكَ اَمْرًا ① فَاِذَا بَلَغْنَ اَجَلَهُنَّ فَاَمْسِكُوْهُنَّ

پیدا کړی | پس له دے نه | (څهٔ نوے) خبره | بیا هر کله چه | دوئ اورسیږی | خپل میعاد ته | نو اُوساتئ دوئ

دَ دے نه پس یوه نوے خبره راپیدا کړی - نو چه هغوئ خپل میعاد ته په رسیدو شی، نو (یا خو) دَ قاعدے

بِمَعْرُوْفٍ اَوْ فَارِقُوْهُنَّ بِمَعْرُوْفٍ وَّاَشْهِدُوْا ذَوَيْ عَدْلٍ مِّنْكُمْ

په ښه طریقه | یا دوئ جدا کړئ | په ښه طریقه | او ګواهان ونیسئ | دوه انصاف پسند | له خپل قوم نه

مطابق هغوئ (په نکاح کښے) باقی پرېږدئ یا ئے دَ قاعدے مطابق جدا کړئ او په خپلو کښے دوه تنه معتبر پرے ګواهان کړئ

وَاَقِيْمُوا الشَّهَادَةَ لِلّٰهِ ۗ ذٰلِكُمْ يُوْعَظُ بِهٖ مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ

او ادا کړئ | ګواهی | دَ الله دَ پاره | هم دا خبره ده | چه نصیحت کولے شی په دے سره | هغه چا ته | چه ایمان لری

او ګواهی سمه دمه هم الله تعالیٰ دَ پاره ورکوئ، په دے مضمون هغه چا ته نصیحت کیږی چه په الله تعالیٰ او په

بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ ۗ وَمَنْ يَّتَّقِ اللّٰهَ يَجْعَلْ لَّهٗ مَخْرَجًا ②

په الله | او په ورځ | دَ آخرت | او څوک چه وېرېږی | دَ الله نه | نو دے به جوړه کړی | دهٔ دَ پاره | لاره دَ خلاصی

ورځ دَ قیامت ایمان راوړی ، او څوک چه دَ الله تعالیٰ نه وېره کوی نو الله ورله دَ خلاصی لاره راوباسی

وَّيَرْزُقْهُ مِنْ حَيْثُ لَا يَحْتَسِبُ ۗ وَمَنْ يَّتَوَكَّلْ عَلَى اللّٰهِ

او رزق به ورکړی دهٔ ته | له هغه ځائے نه | چه دهٔ ته به ګمان هم نهٔ وی | او څوک چه | توکل کوی | په الله باندِ

او دَ داسے ځایه نه ورته روزی ورکوی چه دَ هغهٔ پرے ګمان هم نهٔ راځی، او څوک چه په الله تعالیٰ باور ساتی نو هغهٔ له

فَهُوَ حَسْبُهٗ ۗ اِنَّ اللّٰهَ بَالِغُ اَمْرِهٖ ۗ قَدْ جَعَلَ اللّٰهُ لِكُلِّ شَيْءٍ

پس الله بس دے دهٔ له | بېشکه الله | پوره کوونکے دے | خپل حکم | بېشکه | مقرر کړے ده | الله | دَ هر څیز دَ پاره

یوازے الله کافی دے، الله خپل کار (په هر حال کښے) سرته رسوی ، الله هر څیز له یوه اندازه مقرر

قَدْرًا ③ وَالّٰٓـِٔيْ يَئِسْنَ مِنَ الْمَحِيْضِ مِنْ نِّسَآئِكُمْ اِنِ

یوه اندازه | او کومے ښځے | چه نا اُمیده شوے | له حیض نه | له ښځو ستاسو نه | که چرے

کړے ده - او ستاسو په طلاقو شوو ښځو کښے څوک چه دَ حیض نه مایوسه شوی وی که چرے

ارْتَبْتُمْ فَعِدَّتُهُنَّ ثَلٰثَةُ اَشْهُرٍ ۙ وَّالّٰٓئِیْ لَمْ یَحِضْنَ ؕ

تاسو ته شک وی | نو د دوی عدت دے | درے | میاشتے | او د هغه ښځو | چه لا ورته حیض نه وی راغلے

تاسو شک وی نو د هغوئ عدت درے میاشتے دے او د غسے د هغه ښځو چه جلے ئے لا راغلی نه وی

وَاُولَاتُ الْاَحْمَالِ اَجَلُهُنَّ اَنْ یَّضَعْنَ حَمْلَهُنَّ ؕ وَمَنْ یَّتَّقِ

او چه د حمل والا دی | د دوی عدت دا دے | چه ځیګوی دوی | حمل خپل | او څوک چه | ویریږی

او د امید وارو ښځو میعاد دا دے ، چه اولاد ئے وشی ، او څوک چه د اللہ نه

اللّٰهَ یَجْعَلْ لَّهٗ مِنْ اَمْرِهٖ یُسْرًا ۝۴ ذٰلِكَ اَمْرُ اللّٰهِ اَنْزَلَهٗۤ

د اللہ نه | (نو) دے به پیدا کړی | د ده د پاره | په کار د ده کښے | آسانی | هم دا دے | حکم د اللہ | چه ده نازل کړو دا

ویره کوی نو اللہ به د هغه په هر کار کښے آسانی پیدا کړی ، دا د اللہ حکم دے چه تاسو ته ئے

اِلَیْكُمْ ؕ وَمَنْ یَّتَّقِ اللّٰهَ یُكَفِّرْ عَنْهُ سَیِّاٰتِهٖ وَیُعْظِمْ لَهٗۤ

ستاسو طرف ته | او څوک چه ویریږی | د اللہ نه | نو دے به لرے کړی | له ده نه | بد یانے د ده | او زیات به ورکوی | ده ته

رالیږلے دے او څوک چه د اللہ نه ویره ساتی نو اللہ به ترے نه ګناهونه لرے کړی او غټ اجر به ورته

اَجْرًا ۝۵ اَسْكِنُوْهُنَّ مِنْ حَیْثُ سَكَنْتُمْ مِّنْ وُّجْدِكُمْ

اجر | اوسوئ دغه ښځے | کوم ځائے چه | تاسو اوسیږئ | په اندازه د طاقت خپل

ورکوی ، دغه (طلاقے شوے) ښځے د خپل حیثیت مطابق هغه ځائے کښے اوسوئ کوم ځائے چه تاسو اوسیږئ

وَلَا تُضَآرُّوْهُنَّ لِتُضَیِّقُوْا عَلَیْهِنَّ ؕ وَاِنْ كُنَّ اُولَاتِ حَمْلٍ فَاَنْفِقُوْا

او تاسو دوئ له تکلیف مه ورکوئ | چه سختی وکړئ | په دوئ باندے | او که چرے دوئ وی | حمل والا | پس خرڅ کوئ

او د هغوئ د تنګولو د پاره ورله تکلیف مه ورکوئ ، او که د هغوئ خیټه وی نو خرڅ خوراک

عَلَیْهِنَّ حَتّٰی یَضَعْنَ حَمْلَهُنَّ ۚ فَاِنْ اَرْضَعْنَ لَكُمْ فَاٰتُوْهُنَّ

په دوئ باندے | ترڅو چه | دوئ وځیګوی | حمل خپل | بیا که چرے دوئ تے ورکوی | تاسو د پاره | نو ورکړئ دوئ ته

ورکوئ ، ترڅو چه اولاد ئے پیدا شی ، بیا که هغوئ تاسو له (دغه) ماشوم پالی نو خپل (مناسب)

اُجُوْرَهُنَّ ۚ وَاْتَمِرُوْا بَیْنَكُمْ بِمَعْرُوْفٍ ۚ وَاِنْ تَعَاسَرْتُمْ فَسَتُرْضِعُ

مزدوری د دوئ | او مشوره وکړئ | په خپل مینځ کښے | په ښه طریقه | او که چرے | سختی وکړه تاسو | نو تے به ورکړی

اُجرت ورله ورکوئ ، او په خپل مینځ کښے د رواج مطابق اجر خلاصوئ او که یو بل سره مو سختی راوا خسته نو بله ښځه

لَهٗۤ اُخْرٰی ۝۶ لِیُنْفِقْ ذُوْ سَعَةٍ مِّنْ سَعَتِهٖ ؕ وَمَنْ قُدِرَ عَلَیْهِ

ده ته | بله ښځه | او خرڅ دِ وکړی | خاوند د فراخئ | د خپلے فراخئ مطابق | او هغه چه | تنګ کړے شو | په ده

به (د ماشوم) پالنه کوی ۔ مالدار له د خپلے جلے مطابق خرڅه ورکول پکار دی او د چا چه لاس تنګ وی (آمدنی

رِزْقُهٗ فَلْیُنْفِقْ مِمَّاۤ اٰتٰىهُ اللّٰهُ ؕ لَا یُكَلِّفُ اللّٰهُ نَفْسًا اِلَّا مَاۤ

رزق د ده | نو دے دِ خرڅ وکړی | له هغه څه نه | چه ورکړی دی ده ته | اللہ | تکلیف نه ورکوی | اللہ | هیچا ته | مګر موافق د هغه څه

ئے کمه وی) نو پکار دی چه اللہ څه ورکړی وی د هغے مطابق دِ خرڅ خوراک ورکوی اللہ په چا باندِ زیات بار نه اچوی خو څومره

اٰتٰىهَا ؕ سَيَجْعَلُ اللّٰهُ بَعْدَ عُسْرٍ يُّسْرًا ﴿۷﴾ وَكَاَيِّنْ مِّنْ قَرْيَةٍ عَتَتْ

چه دۀ له ئے ورکړے دی | ډېر زر به پیدا کړی | الله | دَ تنګئ نه پس | آساني | او څومره | کلی دی | چه نافرمانی ئے وکړه

چه ئے ورته (توفیق) ورکړے وی، الله به ورته دَ تنګئ نه پس فراخي راولی. او څومره کلی دی چه دَ خپل رب او دَ

عَنْ اَمْرِ رَبِّهَا وَرُسُلِهٖ فَحَاسَبْنٰهَا حِسَابًا شَدِيْدًا ۙ وَّعَذَّبْنٰهَا

دَ خپل رب دَ حکم | او دَ دۀ دَ رسولانو (دَ حکم) نه | نو مونږ حساب واخستو دَ دوئ نه | حساب | سخت | او مونږ عذاب ورکړو دوئ ته

هغۀ دَ پیغمبرانو دَ حکم نه ئے مخ واړولو نو مونږ ورسره سخت حساب وکړو او مونږ هغوئ ته

عَذَابًا نُّكْرًا ﴿۸﴾ فَذَاقَتْ وَبَالَ اَمْرِهَا وَكَانَ عَاقِبَةُ اَمْرِهَا خُسْرًا ﴿۹﴾

عذاب | ډېر خراب | پس دوئ وڅکلو | وبال | دَ خپل کار | او وو | انجام | دَ دوئ دَ کار | نقصان

ډېره درنه سزا ورکړه. غرض دا چه هغوئ دَ خپلو کارونو په وبال کښې راګير شول او انجام ئے دا چه تاوان ئے وچت کړو

اَعَدَّ اللّٰهُ لَهُمْ عَذَابًا شَدِيْدًا ۙ فَاتَّقُوا اللّٰهَ يٰۤاُولِى الْاَلْبَابِ ۛ

تیار کړے دے | الله | دَ دوئ دَ پاره | عذاب | سخت | پس او یریږئ | دَ الله نه | اے دَ عقل خاوندانو!

الله تعالیٰ هغوئ له سخت عذاب تیار کړے دے، نو دَ الله تعالیٰ نه ویره کوئ اے هوښیارانو!

الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا ۛ قَدْ اَنْزَلَ اللّٰهُ اِلَيْكُمْ ذِكْرًا ﴿۱۰﴾ رَّسُوْلًا يَّتْلُوْا

چه | ایمان مو راوړے دے | بیشکه نازل کړے دے | الله | ستاسو طرف ته | نصیحت | (یعنی) یو رسول | چه لولی

چه ایمان مو راوړے دے، الله تعالیٰ تاسو ته نصیحت نامه رالیږلے ده او رسول ئے رالیږلے دے چه تاسو ته

عَلَيْكُمْ اٰيٰتِ اللّٰهِ مُبَيِّنٰتٍ لِّيُخْرِجَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ

په تاسو باندې | دَ الله آیتونه | واضحه | دَ پاره دَ دے چه راوباسی | هغه خلق | چه ایمان ئے راوړو | او عمل ئے وکړو | نیک

دَ الله ښرګند حکمونه آوروی، چه دَ ایمان او دَ نیک عمل خاوندان دَ

مِنَ الظُّلُمٰتِ اِلَى النُّوْرِ ؕ وَمَنْ يُّؤْمِنْۢ بِاللّٰهِ وَيَعْمَلْ صَالِحًا

له تیارو نه | طرف دَ رڼا ته | او څوک | چه ایمان راوړی | په الله | او عمل وکړی | نیک

تیارو نه رڼا ته راوباسی او څوک چه په الله تعالیٰ ایمان راوړی او دَ نیکئ کارونه کوی

يُّدْخِلْهُ جَنّٰتٍ تَجْرِىْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَاۤ اَبَدًا ؕ

نو داخل به کړی دے | په باغونو کښې | چه بهیږی به | لاندې دَ هغے نه | نهرونه | همیشه به وی | په هغے کښې | همیشه همیشه

هغوئ به داسے باغونو کښے داخل کړی چه دَ هغے دَ اونو لاندې به ویالے بهیږی، تل تر تله به پکښې اوسیږی

قَدْ اَحْسَنَ اللّٰهُ لَهٗ رِزْقًا ﴿۱۱﴾ اَللّٰهُ الَّذِىْ خَلَقَ سَبْعَ سَمٰوٰتٍ وَّمِنَ الْاَرْضِ

بیشکه ښۀ ورکړے دے | الله | دۀ ته | رزق | الله | هغه ذات دے | چه پیدا ئے کړل | اووۀ | آسمانونه | او زمکه (هم)

بیشکه چه دغه سړی له الله ډېره ښۀ روزی ورکړه. الله هغه ذات دے چه اووۀ آسمانونه ئے پیدا کړی دی او دَ هغوئ په شان

مِثْلَهُنَّ ؕ يَتَنَزَّلُ الْاَمْرُ بَيْنَهُنَّ لِتَعْلَمُوْۤا اَنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَىْءٍ

په شان دَ دے | ښکته راځی | (دَ دۀ) حکم | دَ دوئ په مینځ کښې | چه تاسو پوهه شئ | بیشکه الله | په هر څیز باندې

زمکه هم. په دے ټولو کښے دَ الله حکمونه راکوزیږی چه تاسو ته معلومه شی چه الله تعالیٰ په هر څۀ قدرت

قَدِيْرٌ وَّاَنَّ اللّٰهَ قَدْ اَحَاطَ بِكُلِّ شَيْءٍ عِلْمًا ﴿۱۲﴾

قادر دے | او چه بیشکه الله | احاطه کړے ده | په هر څیز باندِ | په علم سره.

لری ، او د الله تعالیٰ علم د هر څیز نه را چاپیره شوے دے.

سُوْرَةُ التَّحْرِيْمِ مَدَنِيَّةٌ وَّهِيَ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | اِثْنَتَا عَشْرَةَ اٰيَةً وَّفِيْهَا رُكُوْعَانِ

سورة تحریم په مدینه کښے نازل شو | (شروع) د الله په نامه چه لوئے مهربان دیر زیات رحم کوونکے دے | او په دے کښے ۱۲ آیتونه او ۲ رکوع دی

د الله په نامه شروع کوم چه لوئے مهربان دیر زیات رحم خاوند دے

يٰۤاَيُّهَا النَّبِيُّ لِمَ تُحَرِّمُ مَآ اَحَلَّ اللّٰهُ لَكَ تَبْتَغِيْ مَرْضَاتَ

اے نبی! | ته ولے حرام کوے | هغه څه چه حلال کړی دی الله | تا د پاره | ته غواړے | رضامندی

اے نبی! کوم څیز چه درله خدائے حلال کړے دے هغه ولے حراموے؟ ته خپلے بیبیانے خوشحالول

اَزْوَاجِكَ وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿۱﴾ قَدْ فَرَضَ اللّٰهُ لَكُمْ تَحِلَّةَ اَيْمَانِكُمْ

د بیبیانو خپلو | او الله بخښونکے | مهربان دے | بیشکه واجب کړل | الله | تاسو د پاره | ماتول | د قسمونو ستاسو

غواړے ، او الله بخښونکے مهربان دے ، الله تعالیٰ تاسو له قسمونه ماتول مقرر کړی دی.

وَاللّٰهُ مَوْلٰىكُمْ وَهُوَ الْعَلِيْمُ الْحَكِيْمُ ﴿۲﴾ وَاِذْ اَسَرَّ النَّبِيُّ

او الله | ستاسو مالک دے | او هم دے | پوهه | د حکمت خاوند دے | او هر کله چه پټه ووئیله | نبی

او الله تعالیٰ ستاسو کارساز دے او دے پوهه د حکمت خاوند دے ، او هغه وخت را یاد کړه چه پیغمبر خپلے

اِلٰى بَعْضِ اَزْوَاجِهٖ حَدِيْثًا فَلَمَّا نَبَّاَتْ بِهٖ وَاَظْهَرَهُ اللّٰهُ

څنو بیبیانو خپلو ته | یوه خبره | بیا هر کله چه | خبر بی بی وښوده | هغه خبره | او ظاهر کړله هغه | الله

یوے بی بی ته پټه خبره وکړه ، بیا چه هغے دغه خبره (چا بل چا ته) ښکاره کړه ، او الله تعالیٰ په

عَلَيْهِ عَرَّفَ بَعْضَهٗ وَاَعْرَضَ عَنْۢ بَعْضٍ فَلَمَّا نَبَّاَهَا بِهٖ

په نبی باندِ | نو (نبی) وښودله | څنے د دے خبرے | او مخ ئے واړولو | څنے د دے خبرے نه | بیا هر کله چه | نبی وښودله دے ته | هغه خبره

دے باندِ پیغمبر خبر کړو نو پیغمبر د هغے یوه برخه ښکاره کړه او بله ئے ښکاره نه کړه بیا چه پیغمبر هغے بی بی ته خبره وښودله

قَالَتْ مَنْ اَنْۢبَاَكَ هٰذَا قَالَ نَبَّاَنِيَ الْعَلِيْمُ الْخَبِيْرُ ﴿۳﴾ اِنْ تَتُوْبَآ

نو دے ووئیل | چا وښودله تا ته | دا خبره؟ | نبی ووئیل | وښودله ما ته | پوهه | خبردار (خدائے) | که چرے تاسو دواړه توبه وکړئ

نو هغے ورته ووئیل چه دا حال درته چا ووئیلو؟ پیغمبر ووئیل چه د علم خاوند خبردار (خدائے) را ته حال ووئیلو، اے دواړو

اِلَى اللّٰهِ فَقَدْ صَغَتْ قُلُوْبُكُمَا وَاِنْ تَظٰهَرَا عَلَيْهِ فَاِنَّ

د الله په وړاندِ | پس بیشکه کاږه شوی دی | زړونه ستاسو | او که چرے | تاسو د یو بل مدد وکړو | د نبی خلاف | نو بیشکه

بیبیانو! که تاسو د الله په وړاندِ توبه ووېستله نو ستاسو زړونه هسے هم راګرځیدلی دی او که چرے تاسو دواړو د رسول خلاف د یو

اللّٰهَ هُوَ مَوْلٰىهُ وَجِبْرِيْلُ وَصَالِحُ الْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمَلٰٓئِكَةُ بَعْدَ ذٰلِكَ

هم الله دے | مددګار د ده | او جبرائیل | او نیکان | مؤمنان | او فرښتے (هم) | پس له دے نه

بل مدد کولو نو (یاد ساتئ چه) الله تعالیٰ د پیغمبر مددګار دے او جبرائیل او نیکان مؤمنان او د دے نه پس فرښتے هم د ده

ظَهِيرٌ ④ عَسٰى رَبُّهٗٓ اِنْ طَلَّقَكُنَّ اَنْ يُّبْدِلَهٗٓ اَزْوَاجًا

مدد ګارے دی | نزدے دہ | چہ رب دَ دہٗ | کہٗ چرے (نبیؐ) تاسو لہ طلاق درکړی | نو (الله) بہ پہ بدلہ کښې ورکړی دہٗ تہ | بیبیانې

مدد ګارے دی. داکیدے شی چہ کہٗ پیغمبرؐ تاسو لہ طلاق درکړی نو الله بہ ورلہ ستاسو پہ عوض کښې غوره بیبیانې ورکړی

خَيْرًا مِّنْكُنَّ مُسْلِمٰتٍ مُّؤْمِنٰتٍ قٰنِتٰتٍ تٰٓئِبٰتٍ عٰبِدٰتٍ سٰٓئِحٰتٍ ثَيِّبٰتٍ

غوره | لہ تاسو | فرمانبردارے | باور کوونکے | دُعا کوونکے | توبہ کوونکے | عبادت ګذارے | روژه دارے | کونډے

بیبیانې ورکړی مسلمانانې ، مؤمنانې ، فرمان منونکے توبہ ویستونکے عبادت کوونکے روژه لرونکے دَ خاوندانو

وَّاَبْكَارًا ⑤ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا قُوْٓا اَنْفُسَكُمْ وَاَهْلِيْكُمْ نَارًا وَّقُوْدُهَا

او پیغلے | اے دَ ایمان خاوندانو! | وُساتئ تاسو | ځانونہ خپل | او خپل کور والا | لہ اور نہ | چہ خشاک دَ هغې بہ

نہ پاتے او پیغلے. اے مؤمنانو! خپل ځانونہ او خپل کور والا دَ هغې اور نہ اوساتئ چہ دَ هغې خشاک

النَّاسُ وَالْحِجَارَةُ عَلَيْهَا مَلٰٓئِكَةٌ غِلَاظٌ شِدَادٌ لَّا يَعْصُوْنَ اللّٰهَ مَآ

خلق | او کانړی دی | پہ دے (مقرر دی) | فرښتے | سخت خویہ | زور آورے | چہ نافرمانی نہٗ کوی | دَ الله تہٗ چہ

بنیادم او کانړی دی، پہ هغې باندې سخت خویہ مضبوطے فرښتے مقررے دی چہ پہ هیڅ کار کښې دَ الله تعالی

اَمَرَهُمْ وَيَفْعَلُوْنَ مَا يُؤْمَرُوْنَ ⑥ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَا تَعْتَذِرُوا

دے حکم ورکړی دوئی تہ | او دوئی کوی | دَ هغہٗ چہ دوئی تہ حکم وُکړے شی | اے کافرانو! | تاسو بهانې مہٗ جوړوئ

نافرمانی نہٗ کوی او هم هغہ کار کوی دَ کوم چہ هغوئی تہ حکم کولے شی اے کافرانو! نن ورځ عذر معذرت

الْيَوْمَ ؕ اِنَّمَا تُجْزَوْنَ مَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ⑦ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا

نن ورځ | بیشکہ تاسو تہ بہ بدلہ درکولے شی | دَ هغہٗ | چہ تاسو بہ کول | اے دَ ایمان خاوندانو!

مہٗ کوئ، تاسو تہ خو بس هیله دَ خپلو کارونو سزا درکیدے شی اے مؤمنانو!

تُوْبُوْٓا اِلَى اللّٰهِ تَوْبَةً نَّصُوْحًا ؕ عَسٰى رَبُّكُمْ اَنْ يُّكَفِّرَ عَنْكُمْ سَيِّاٰتِكُمْ

تاسو توبہ کړئ | دَ الله پہ وړاندې | توبہ | رښتینې | اُمید دے چہ | ستاسو رب بہ | لرے کړی | لہ تاسو نہ | ګناهونہ ستاسو

دَ الله پہ وړاندې رښتینې توبہ اوباسئ. اُمید دے چہ ستاسو رب ستاسو ګناهونہ لہ تاسو نہ لرے کړی.

وَيُدْخِلَكُمْ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ ۙ يَوْمَ لَا يُخْزِي اللّٰهُ

او داخل بہ کړی تاسو | باغونو تہ | چہ بهیږی بہ | لاندې دَ هغې نہ | نهرونہ | پہ هغہ ورځ | چہ نہٗ بہ رسوا کوی | الله

او تاسو بہ پہ داسے باغونو کښې داخل کړی چہ دَ هغې لاندې بہ ویالے بهیږی. پہ هغہ ورځ بہ الله تعالی نبیؐ

النَّبِيَّ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مَعَهٗ ۚ نُوْرُهُمْ يَسْعٰى بَيْنَ اَيْدِيْهِمْ

خپل نبی | او هغہ کسان چہ | ایمان ئے راوړو | دَ دہٗ سره | نور دَ دوئی بہ | منډے وهی | دَ دوئی نہ وړاندې

او دَ هغہٗ مؤمنان ملګری نہٗ شرموی. خپل نور بہ ترے نہ وړاندې او ښی طرف تہ روان

وَبِاَيْمَانِهِمْ يَقُوْلُوْنَ رَبَّنَآ اَتْمِمْ لَنَا نُوْرَنَا وَاغْفِرْ لَنَا ۚ

او دَ دوئی ښی طرف تہ | دوئی بہ وائی | اے زمونږه ربہ! | پوره کړه | مونږ دَ پاره | نور زمونږ | او وُ بخښه مونږ

وی ، او دا بہ وائی چہ اے زمونږه ربہ! دا رڼا زمونږ دَ پاره تر آخره پورے قائمہ ساتہ او بخښنہ را تہ وکړه

إِنَّكَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ۞ يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ جَاهِدِ الْكُفَّارَ وَالْمُنَافِقِينَ

بیشکه ته | په هر څیز باندې | قادر یې ! | اے نبي ! | جهاد کوئ | کافرانو | او منافقانو سره

ته په هر څه پوره پوره قدرت لرے ـ اے پیغمبره ! دَ کافرانو او منافقانو سره جهاد کوه ـ

وَاغْلُظْ عَلَيْهِمْ ۚ وَمَأْوَاهُمْ جَهَنَّمُ ۖ وَبِئْسَ الْمَصِيرُ ۞ ضَرَبَ اللَّهُ

او سختي کوه | په دوئ باندې | او ځائے دَ دوئ | دوزخ دے | او بد دے | ځائے دَ ورتلو | بیان کړو | الله

او په هغوئ سختي کوه او دَ هغوئ ټیکاؤنړه دوزخ دے او هغه ډیر خراب ځائے دے ـ الله تعالیٰ کافرانو دَ

مَثَلًا لِّلَّذِينَ كَفَرُوا امْرَأَتَ نُوحٍ وَامْرَأَتَ لُوطٍ ۖ كَانَتَا تَحْتَ

یو مثال | دَ هغه کسانو | چه منکر دی | دَ ښځې دَ نوح ؑ | او دَ ښځې دَ لوط ؑ | وے دا دواړه | دَ لاندې دَ نکاح

پاره دَ نوح ؑ دَ ښځې او دَ لوط ؑ دَ ښځې مثال بیان فرمائی ـ هغه دواړه زمونږ له

عَبْدَيْنِ مِنْ عِبَادِنَا صَالِحَيْنِ فَخَانَتَاهُمَا فَلَمْ يُغْنِيَا

دَ دوؤ بندګانو | زمونږ له بندګانو نه | چه دواړه نیکان وو | پس دے دواړو ښځو خیانت وکړو دَ دوئ سره | نو هغه دواړه په کار رانغلل

بندګانو نه دَ دوؤ نیکانو بندګانو په نکاح کښے وے، مګر هغوئ دواړو دَ دوئ حق ضائع کړو نو هغه دواړه بندیا

عَنْهُمَا مِنَ اللَّهِ شَيْئًا وَقِيلَ ادْخُلَا النَّارَ مَعَ الدَّاخِلِينَ ۞

دَ دوئ | دَ الله په مقابله کښے | هیڅ هم | او حکم وُشو | چه تاسو دواړه داخلے شئ | اور ته | داخلیدونکو سره

دَ الله په مقابله کښے دَ هغوئ هیڅ په کار رانغلل او ورته ووئیلے شو چه دَ نورو ننوتونکو سره تاسو هم دوزخ ته ورننوزئ ـ

وَضَرَبَ اللَّهُ مَثَلًا لِّلَّذِينَ آمَنُوا امْرَأَتَ فِرْعَوْنَ إِذْ

او بیان کړو | الله | یو (بل) مثال | دَ هغه کسانو دَ پاره | چه ایمانئے راوړے دے | دَ فرعون دَ ښځې | هر کله چه

او الله تعالیٰ مؤمنانو دَ پاره دَ فرعون دَ ښځې مثال پیش کوی، هر کله چه

قَالَتْ رَبِّ ابْنِ لِي عِندَكَ بَيْتًا فِي الْجَنَّةِ وَنَجِّنِي مِن فِرْعَوْنَ

دے ووئیل | اے زما ربه ! | جوړ کړه | ما دَ پاره | دَ خپل ځان سره | یو کور | په جنت کښے | او خلاص راکړه ما ته | له فرعون نه

هغے دُعا وُغوښتله چه اے زما ربه ! ما له په جنت کښے په خپل خوا کښے یو کور جوړ کړه او ما دَ فرعون او دَ هغهٔ دَ

وَعَمَلِهِ وَنَجِّنِي مِنَ الْقَوْمِ الظَّالِمِينَ ۞ وَمَرْيَمَ ابْنَتَ عِمْرَانَ

او دَ دهٔ دَ عمل نه | او خلاصے راکړه ماته | له قوم ظالم نه | او دَ مریم لور دَ عمران

(کافرانه) عمل نه بچ وُساته او ما دَ ظالمانو نه هم بچ وُساته ـ او بل دَ مریم مثال ورکوی چه دَ

الَّتِي أَحْصَنَتْ فَرْجَهَا فَنَفَخْنَا فِيهِ مِن رُّوحِنَا وَصَدَّقَتْ

چا چه | بچ ساتلے وو | خپل نوم ناموس | نو مونږ پوک وهلو | په دے کښے | خپل رُوح | او دے تصدیق وکړو

عمران لور وه چه خپل نوم ناموس ئے بچ ساتلے وو نو مونږ (دَ هغے) په (ګریوان) کښے خپل روح پوک وهلو او هغے دَ

بِكَلِمَاتِ رَبِّهَا وَكُتُبِهِ وَكَانَتْ مِنَ الْقَانِتِينَ ۞

دَ خبرو | دَ رب خپل | او دَ دهٔ دَ کتابونو | او دا وه | له فرمانبردارو نه

خپل رب خبرے او کتابونه وُمنل او هغه له فرمانبردارو نه وه

وقف لازم

سُوْرَةُ الْمُلْكِ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | ثَلٰثُوْنَ اٰيَةً وَّفِيْهَا رُكُوْعَانِ

سورۂ ملک په مکه کښے نازل شوا و په | (شروع) دَ الله په نامه چه لوئے مهربان ډیر زیات رحم کوونکے دے | دے کښے ۳۰ آیتونه او ۲ رکوع دی

دَ الله په نامه شروع چه لوئے مهربان دَ ډیر زیات رحم خاوند دے

تَبٰرَكَ الَّذِيْ بِيَدِهِ الْمُلْكُ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرُ ۝١

برکت والا دے | هغه ذات | چه په لاس دَ هغهٔ کښے | حکومت دے | او دے | په هر څیز بانډ | قادر دے۔

دَ لوئے برکت خاوند دے هغه (خدائے) چه په لاس کښے ئے ټول حکومت دے او هغه په هر څهٔ قدرت لری۔

الَّذِيْ خَلَقَ الْمَوْتَ وَالْحَيٰوةَ لِيَبْلُوَكُمْ اَيُّكُمْ اَحْسَنُ عَمَلًا

چا چه | پیدا کړو | مرګ | او ژوندد | چه وُ آزمائی تاسو | چه څوک په تاسو کښے | زیات ښهٔ دے | په عمل کښے

(خدائے) هغه ذات دے چه مرګ او ژوندئے پیدا کړل چه تاسو وُ آزمائی چه په عمل کښے څوک غوره دے

وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْغَفُوْرُ ۝٢ الَّذِيْ خَلَقَ سَبْعَ سَمٰوٰتٍ طِبَاقًا مَا تَرٰى

او دے دے | غالب | او بخښونکے | هغه چا چه | پیدا کړل | اووهٔ | آسمانونه | دَ یو بل دَ پاسه | نهٔ به وُنهٔ وینے

او هغه ډیر زبردست ډیر بخښونکے دے چه اووهٔ آسمانونه ئے لاندې باندې پیدا کړل، ته به دَ

فِيْ خَلْقِ الرَّحْمٰنِ مِنْ تَفٰوُتٍ فَارْجِعِ الْبَصَرَ هَلْ تَرٰى

دَ خدائے په پیدا وښت کښے | څهٔ فرق | نو تهٔ بیا نظر واچوه | آیا | تهٔ وینے

رحمٰن (خدائے) په پیدا وښت کښے هیڅ فرق وُنهٔ وینے، نو تهٔ بیا نظر واچوه چه څهٔ خلل درته

مِنْ فُطُوْرٍ ۝٣ ثُمَّ ارْجِعِ الْبَصَرَ كَرَّتَيْنِ يَنْقَلِبْ اِلَيْكَ الْبَصَرُ خَاسِئًا

څهٔ خلل | بیا | نظر واچوه | دوباره | پسته به شی | ستا طرف ته | سترګے | ذلیلے

ښکاری؟ بیا په بار بار نظر واچوه، سترګے به دِ ذلیلے او ستومانه

وَّهُوَ حَسِيْرٌ ۝٤ وَلَقَدْ زَيَّنَّا السَّمَآءَ الدُّنْيَا بِمَصَابِيْحَ وَجَعَلْنٰهَا

او هغه به ستړی شوی وی | او بیشکه | ښائسته کړو مونږ | آسمان | دَ دُنیا | په ډیوو سره | او مونږ جوړے کړے دا

پسته شی۔ او بیشکه مونږ دَ دُنیا آسمان (دَ ستورو) په ډیوو سره ښائسته کړو، او هغه مو دَ

رُجُوْمًا لِّلشَّيٰطِيْنِ وَاَعْتَدْنَا لَهُمْ عَذَابَ السَّعِيْرِ ۝٥ وَلِلَّذِيْنَ

دَ ویشتلو آلے | دَ شیطانانو دَ پاره | او مونږ تیار کړے دے | دوئی دَ پاره | عذاب | دَ دوزخ | او دَ پاره دَ هغه کسانو

شیطانانو دَ ویشتلو ذریعه کړے، او هغوئی له مو دَ دوزخ عذاب تیار کړے دے۔ او څوک چه دَ

كَفَرُوْا بِرَبِّهِمْ عَذَابُ جَهَنَّمَ وَبِئْسَ الْمَصِيْرُ ۝٦ اِذَآ اُلْقُوْا

چه منکر دی | دَ رب خپل | عذاب | دَ دوزخ دے | او بد دے | ځائے دَ واپس تللو | هرکله چه به | دوی واچولے شی

خپل رب نه انکار کوی هغوئی له دَ دوزخ عذاب مقرر دے او هغه ډیر خرابه ټیکاڼه ده څهٔ وخت چه دوئی دوزخ

فِيْهَا سَمِعُوْا لَهَا شَهِيْقًا وَّهِيَ تَفُوْرُ ۝٧ تَكَادُ تَمَيَّزُ مِنَ الْغَيْظِ

په هغے کښے | نو دوئی به آوری | دَ هغے | چغے | او هغه به | جوش وهی | نژدے ده | چه وُ به شلیږی | له ډیره قهره

ته ارتاؤ کړے شی نو کړزار به ئے آوری او هغه (دوزخ) داسے به ټشیږی لکه چه دَ ډیره قهره به وشلیږی

كُلَّمَآ اُلْقِیَ فِیْهَا فَوْجٌ سَاَلَهُمْ خَزَنَتُهَآ اَلَمْ یَاْتِكُمْ نَذِیْرٌ ﴿۸﴾

هر وارے چه | وا چولے شی | په هغے کښے | یوه ډله | نو تپوس به کوی دوئ | ځوکیداران د هغے | آیا نه وو راغلے تاسو ته | ویروونکے

څهٔ وخت چه به تولے ورته ورغورزولے شی نو محافظ فرښتے به ترے نه تپوس کوی چه آیا تاسو ته څوک ویروونکے درغلے نهٔ وو

قَالُوْا بَلٰى قَدْ جَآءَنَا نَذِیْرٌ ۙ۬ فَكَذَّبْنَا وَ قُلْنَا مَا نَزَّلَ اللّٰهُ

دوئ به ووائی | ولے نه | بیشکه راغلے وو مونږ ته | یو ویروونکے | نو مونږ دروغژن وګنړلو | او مونږ ووئیل | نهٔ دے نازل کړے | الله

هغوئ به ووائی چه ولے نه! ویروونکے خو راته راغلے وو خو مونږ دروغژن وګنړلو او ورته مو ووئیل چه الله خو هیڅ څیز

مِنْ شَیْءٍ ۚۖ اِنْ اَنْتُمْ اِلَّا فِیْ ضَلٰلٍ كَبِیْرٍ ﴿۹﴾ وَ قَالُوْا لَوْ كُنَّا نَسْمَعُ

هیڅ څیز | نهٔ یئ تاسو | مګر | په لویه ګمراهئ کښے | او دوئ به وائی | که چرے | مونږ اوریدلے وے

نازل کړے نهٔ دے او تاسو پخپله په غټه غلطئ کښے پراته یئ۔ او دا به (هم) ورته ووائی چه که مونږ اوریدلے

اَوْ نَعْقِلُ مَا كُنَّا فِیْۤ اَصْحٰبِ السَّعِیْرِ ﴿۱۰﴾ فَاعْتَرَفُوْا بِذَنْۢبِهِمْ ۚ

یا پوهیدلے مونږ | نو نهٔ به وُو مونږ | په دوزخیانو کښے | پس اقرار به وکړی | په ګناه خپله

وے یا مو د عقل نه کار اخستے وے نو نن به دوزخیان نهٔ وے، غرض دا چه د جرم اقرار به وکړی۔

فَسُحْقًا لِّاَصْحٰبِ السَّعِیْرِ ﴿۱۱﴾ اِنَّ الَّذِیْنَ یَخْشَوْنَ رَبَّهُمْ بِالْغَیْبِ لَهُمْ

نو لعنت دِ وی | دوزخیانو د پاره | بیشکه | کوم خلق چه | ویریږی | د خپل رب نه | بے لیدلو | هغوئ د پاره

نو په دوزخیانو باندِ لعنت شه۔ څوک چه د خپل رب نه بے لیدو ویریږی، نو هغوئ

مَّغْفِرَةٌ وَّ اَجْرٌ كَبِیْرٌ ﴿۱۲﴾ وَ اَسِرُّوْا قَوْلَكُمْ اَوِ اجْهَرُوْا بِهٖ ؕ اِنَّهٗ عَلِیْمٌۢ

بخښنه ده | او اجر | ډیر لوئے | او تاسو پټه کړئ | خپله خبره | یا تاسو ښکاره کړئ هغه | بیشکه دے | پوهه دے

له بخښنه ده او لوئے اجر دے۔ او که تاسو پټه خبره وکړئ یا ښکاره ئے وکړئ، هغه د زړونو د

بِذَاتِ الصُّدُوْرِ ﴿۱۳﴾ اَلَا یَعْلَمُ مَنْ خَلَقَ ؕ وَ هُوَ اللَّطِیْفُ الْخَبِیْرُ ﴿۱۴﴾

په راز | د سینو | آیا نهٔ پوهیږی | هغه ذات چه پیدا کړل (تول) | او دے باریک بین | خبردار

حال نه ښهٔ واقف دے۔ آیا هغه به ترے نه خبر نهٔ وی چا چه پیدا کړی دی؟ او هغه ډیر باریک بین په هر څهٔ خبر دے۔

هُوَ الَّذِیْ جَعَلَ لَكُمُ الْاَرْضَ ذَلُوْلًا فَامْشُوْا فِیْ مَنَاكِبِهَا وَ كُلُوْا

هم دے دے چا چه | جوړه کړه | تاسو د پاره | زمکه | د استعمال قابله | پس روان شئ تاسو | د دے په لارو کښے | او خورئ

الله هغه ذات دے چا چه تاسو د پاره زمکه د استعمال قابله جوړه کړه د پاره د دے چه تاسو د دِ په لارو کښے تګ راتګ کوئ، او د الله

مِنْ رِّزْقِهٖ ؕ وَ اِلَیْهِ النُّشُوْرُ ﴿۱۵﴾ ءَاَمِنْتُمْ مَّنْ فِی السَّمَآءِ

د دهٔ له رزق نه | او د دهٔ طرف ته دی | دوباره ورپاڅیدل | آیا تاسو بے ویرے یئ؟ | د هغه الله نه | چه په آسمان کښے دے

د رزق نه خورئ او هغهٔ ته به بیا راژوندی کیږئ آیا تاسو د دے نه بے غمه یئ چه څوک بره په آسمان کښے دے

اَنْ یَّخْسِفَ بِكُمُ الْاَرْضَ فَاِذَا هِیَ تَمُوْرُ ﴿۱۶﴾ اَمْ اَمِنْتُمْ مَّنْ

چه دے ښکته ننباسی | تاسو | په زمکه کښے | بیا ناګهانه | دا په لړزیدو شی | آیا تاسو بے ویرے یئ | د هغه الله نه

چه هغه مو په زمکه کښے ورننباسی، نو هغه به ناګهانه ولړزیږی؟ آیا تاسو د دے نه بے غمه شوئ چه څوک

فِي السَّمَآءِ اَنْ يُّرْسِلَ عَلَيْكُمْ حَاصِبًا ؕ فَسَتَعْلَمُوْنَ كَيْفَ نَذِيْرِ ⑰

چه په آسمان کښې دے | چه دے راولیږی | په تاسو باندې | دَ کاڼو باران | پس زر به تاسو پوهه شئ | چه څنګه دی | ویرول زما ؟

چه په آسمان کښې دے هغه در باندې دَ کاڼو باران راؤوروی نو تاسو ته به زر معلومه شی چه زما ویرول څنګه دی؟

وَلَقَدْ كَذَّبَ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ فَكَيْفَ كَانَ نَكِيْرِ ⑱ اَوَلَمْ يَرَوْا

او بیشکه دروغ ګڼړلی وو | هغه کسانو | چه وړاندې له دوئ نه وو | پس څنګه شو | عذاب زما | او آیا نه دی کتلی دوئ

او دَ دوئ نه مخوا خلقو هم دروغژن ګڼړلی وو، بیا (وګوره چه په دوئ) زما عذاب څنګه شو ؟ آیا دوئ بره

اِلَى الطَّيْرِ فَوْقَهُمْ صٰٓفّٰتٍ وَّيَقْبِضْنَ ؕۘ مَا يُمْسِكُهُنَّ اِلَّا الرَّحْمٰنُ ؕ

مارغانو ته | دَ پاسه دَ خپل ځان | خورونکی دَ وزرو | او راټولوی | نه راټینګوی دوی لره | مګر | خدائے

مارغانو ته نه ګوری چه وزرے ئے خورے کړی وی او راغونډے کړے ئے وی ، دوئ دَ رحمٰن نه بغیر بل چا راټینګ کړی نه

اِنَّهٗ بِكُلِّ شَيْءٍۢ بَصِيْرٌ ⑲ اَمَّنْ هٰذَا الَّذِيْ هُوَ جُنْدٌ لَّكُمْ يَنْصُرُكُمْ

بیشکه دے | هر څیز ته | ګوری | آیا څوک دے | هغه ذات چه | هغه لښکر دے ستاسو | چه هغه مدد وکړی ستاسو

دی هغه هر څیز وینی ګوری آیا دَ رحمٰن نه سوا بل څوک دے چه ستاسو لښکر جوړ شی

مِّنْ دُوْنِ الرَّحْمٰنِ ؕ اِنِ الْكٰفِرُوْنَ اِلَّا فِيْ غُرُوْرٍ ۚ ⑳ اَمَّنْ هٰذَا الَّذِيْ

سوا | دَ رحمٰن نه | نه دی کافران | مګر | په دوکه کښې | آیا څوک دے | هغه ذات

او ستاسو امداد وکړی ۔ دا کافران خو په غټه دوکه کښې پراته دی ۔ آیا هغه څوک دے چه تاسو له

يَرْزُقُكُمْ اِنْ اَمْسَكَ رِزْقَهٗ ۚ بَلْ لَّجُّوْا فِيْ عُتُوٍّ وَّنُفُوْرٍ ㉑

روزی درکړی تاسو ته | که چرے | دے بنده کړی | روزی خپله | بلکه | دوئ کلک انښتی دی | په سرکشئ کښې | او نفرت (کښې)

روزی درکړی که الله در باندې خپله روزی بنده کړی ؟ سمه خبره داده چه دوئ په سرکشئ او په نفرت کښې کلک انښتی دی

اَفَمَنْ يَّمْشِيْ مُكِبًّا عَلٰى وَجْهِهٖٓ اَهْدٰٓى اَمَّنْ يَّمْشِيْ سَوِيًّا

پس آیا هغه کس | چه روان وی | اړوے | په مخ خپل | ښه لار موندونکے دے | یا هغه کس چه روان وی | نیغ

آیا هغه کس چه پړمخے تګ کوی هغه په سمه لار دے ؟ یا هغه چه په هواره لار سم

عَلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ㉒ قُلْ هُوَ الَّذِيْٓ اَنْشَاَكُمْ وَجَعَلَ لَكُمُ

په لاره سمه باندې | دوایه | هم دے هغه ذات چه | پیدا ئے کړئ تاسو | او جوړے کړل | تاسو دَپاره

روان وی ؟ ته ورته ووایه چه الله هغه ذات دے چه تاسو ئے پیدا کړئ او غوږونه

السَّمْعَ وَالْاَبْصَارَ وَالْاَفْئِدَةَ ؕ قَلِيْلًا مَّا تَشْكُرُوْنَ ㉓ قُلْ هُوَ الَّذِيْ

غوږونه | اوسترګے | او زړونه | ډیر لږ | تاسو شکر کوئ | دوایه | هم دے | چا چه

اوسترګے او زړونه ئے درکړل (خو) تاسو ډیر کم شکر اوباسئ ۔ ورته اووایه چه الله هغه

ذَرَاَكُمْ فِي الْاَرْضِ وَاِلَيْهِ تُحْشَرُوْنَ ㉔ وَيَقُوْلُوْنَ مَتٰى هٰذَا

خواره کړئ تاسو | په زمکه کښې | او هم دَ ده طرف ته به | تاسو جمع کولے شئ | او دوئ وائی | چه کله به وی | دا

ذات دے چه تاسوئے په زمکه خواره کړئ او بیا به هغه ته جمع کیږئ ۔ او دوئ وائی چه دا وعده به کله

الْوَعْدُ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ﴿۲۵﴾ قُلْ اِنَّمَا الْعِلْمُ عِنْدَ اللّٰهِ ۪ وَ

وعده | که چرې تاسو | رښتيني يئ | ووايه | بيشکه (دَدې) علم | الله سره دې | او

پوره کيږي که تاسو رښتيني يئ ؟ ورته ووايه چه (دَدې) علم خو الله سره دې ، او

اِنَّمَآ اَنَا نَذِيْرٌ مُّبِيْنٌ ﴿۲۶﴾ فَلَمَّا رَاَوْهُ زُلْفَةً سِيْٓـَٔتْ

بېشکه | زهٔ | ويروونکے يم | ښکاره | بيا هر کله چه | دوئ ووينى دا | بالکل نزدې | نو وران به شى

زهٔ خو بس يو ښکاره ويروونکے يم بيا چه دوئ قيامت نزدې ووينى ، نو دَ کافرانو

وُجُوْهُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَقِيْلَ هٰذَا الَّذِيْ كُنْتُمْ بِهٖ تَدَّعُوْنَ ﴿۲۷﴾

مخونه | دَ هغه خلقو | چه کافران دى | او وُبه ويلے شى | هم دا دى | هغه | چه تاسو به (په دُنيا کښې) | غوښتل

مخونه به وران شى او ورته به وُ ويلے شى چه دا هغه څيز دې چه تاسو به غوښتلو

قُلْ اَرَءَيْتُمْ اِنْ اَهْلَكَنِيَ اللّٰهُ وَمَنْ مَّعِيَ اَوْ رَحِمَنَا ۙ فَمَنْ

ووايه | آيا کتلى دى تاسو | که چرې | هلاک کړى ما | الله | او هغه کسان | چه ما سره دى | يا په مونږ رحم وکړى | نو څوک دى

تهٔ ورته ووايه چه ښه دا ووښايئ که الله تعالىٰ ما او زما ملګرى هلاک کړى يا را باندِ رحم وکړى نو کافران

يُّجِيْرُ الْكٰفِرِيْنَ مِنْ عَذَابٍ اَلِيْمٍ ﴿۲۸﴾ قُلْ هُوَ الرَّحْمٰنُ اٰمَنَّا بِهٖ وَعَلَيْهِ

چه پناه ورکړى | کافرانو ته | له عذاب | دردناک نه | ووايه | هم دې دې | ډير مهربان | ايمان راوړے دے مونږ په دهٔ | او په دهٔ

به دَ دردناک عذاب نه څوک بچ کوى. تهٔ ورته ووايه چه هغه خدائے رحمٰن دې، مونږ پرې ايمان راوړے دے او په

تَوَكَّلْنَا ۚ فَسَتَعْلَمُوْنَ مَنْ هُوَ فِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ ﴿۲۹﴾ قُلْ اَرَءَيْتُمْ

مونږ توکل کړے دے | پس زر به تاسو پوهه شئ | چه څوک دے | په ښکاره ګمراهئ کښې | ووايه | آيا کتلى دى تاسو

هغهٔ مو توکل کړے، تاسو ته به زر معلومه شى چه څوک په ښکاره ګمراهئ کښې دے؟ ورته ووايه چه ښه دا ووښايئ

اِنْ اَصْبَحَ مَآؤُكُمْ غَوْرًا فَمَنْ يَّاْتِيْكُمْ بِمَآءٍ مَّعِيْنٍ ﴿۳۰﴾ ع

که چرې | شى | اوبهٔ ستاسو | اُوچه | نو څوک به | راولى تاسو ته | اوبهٔ | روانے

که ستاسو اوبهٔ ښکته غائبے شى ، نو څوک به درله دَ چينے اوبهٔ راولى ؟

سُوْرَةُ الْقَلَمِ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ اثْنَتَانِ وَخَمْسُوْنَ اٰيَةً وَّفِيْهَا رُكُوْعَانِ

سوره قلم په مکه کښې نازل شوې او په دې کښې ۵۲ آيتونه او ۲ رکوع دى

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

(شروع) دَ الله په نامه چه لوئے مهربان ډير زيات رحم کوونکے دے

دَ الله په نامه شروع کوم چه لوئے مهربان دَ ډير زيات رحم خاوند دے

نٓ وَالْقَلَمِ وَمَا يَسْطُرُوْنَ ﴿۱﴾ مَآ اَنْتَ بِنِعْمَةِ رَبِّكَ بِمَجْنُوْنٍ ﴿۲﴾ وَاِنَّ

نٓ | قسم دے په قلم | او په هغه څهٔ | چه ليکى ئے فرښتے | نهٔ يئے تهٔ | په فضل دَ رب خپل | ليونے | او بېشکه

نٓ په قلم باندِ قسم دے او په هغے چه (فرښتے) څهٔ ليکى ، تهٔ دَ خپل رب په فضل ليونے نهٔ يئے . او تا له

لَكَ لَاَجْرًا غَيْرَ مَمْنُوْنٍ ﴿۳﴾ وَاِنَّكَ لَعَلٰى خُلُقٍ عَظِيْمٍ ﴿۴﴾

تا دَ پاره | اجر دے | نهٔ ختميدونکے | او بېشکه تهٔ | په خوئے | اُوچت يئے

دا سے اجر مقرر دے چه خلاصيدونکے نهٔ دے او تهٔ دَ اخلاقو په اوچته مرتبه يئے.

فَسَتُبْصِرُ وَيُبْصِرُوْنَ ۝٥ بِاَيِّىكُمُ الْمَفْتُوْنُ ۝٦ اِنَّ رَبَّكَ هُوَ اَعْلَمُ

پس تهٔ به زر وُوینے | اودوئ به هم وُوینی | چه څوک له تاسو نه | لیونے دے | بیشکه ستا ربّ | ښهٔ پوهه دے

نو ته به هم زر وُوینے او دوئ به هم وُوینی چه په تاسو کښے څوک لیونے دے. بیشکه ستا رب ښهٔ پوهه دے چه

بِمَنْ ضَلَّ عَنْ سَبِيْلِهٖ ۖ وَهُوَ اَعْلَمُ بِالْمُهْتَدِيْنَ ۝٧ فَلَا تُطِعِ

په هغه چا | چه گمراه شو | د دهٔ د لارے نه | او هم دے | ښهٔ پوهه دے | په لاره موندونکو | پس تهٔ خبره مهٔ منه

څوک د لارے نه بے لارے شوے دے او هغه ته په سمه لاره روان خلق هم ډیر ښهٔ معلوم دی، نو ته د دروغ

الْمُكَذِّبِيْنَ ۝٨ وَدُّوْا لَوْ تُدْهِنُ فَيُدْهِنُوْنَ ۝٩ وَلَا تُطِعْ كُلَّ

د دروغ گڼړونکو | دوئ غواړی | چه کاش ته نرمی وُکړے | نو دوئ به هم نرمی وکړی | او ته خبره مهٔ منه | د هر

گڼړونکو خبره مهٔ منه. دوئ خو دا غواړی چه ته نرم شے نو دوئ به هم نرم شی. او د داسے کس خبره هم مهٔ

حَلَّافٍ مَّهِيْنٍ ۝١٠ هَمَّازٍ مَّشَّآءٍۭ بِنَمِيْمٍ ۝١١ مَّنَّاعٍ لِّلْخَيْرِ مُعْتَدٍ

ډیر قسم خوړونکی | ذلیله | د هر عیب کوونکی | هر گرزنده | چغل خور | منع کوونکی | د نیک کار | له حد نه تیریدونکی

منه چه غټ قسم خور دے (او) ذلیله دے عیب لګوونکے، گرزنده چغل خور دے، د نیکئ د کار و نو نه منع کوونکے دے له حد نه

اَثِيْمٍ ۝١٢ عُتُلٍّۭ بَعْدَ ذٰلِكَ زَنِيْمٍ ۝١٣ اَنْ كَانَ ذَا مَالٍ وَّبَنِيْنَ ۝١٤ اِذَا تُتْلٰى

گناهگار | بد مزاج | پس له دے نه | بد اصله | ځکه چه دے دے | خاوند د مال | او د ځامنو | هر کله چه لوستلے شی

تیریدونکے دے غټ گناهگار دے، بد خویه دے د دے نه علاوه بد ذاته دے دا ځکه چه د مال او د اولاد خاوند دے. څهٔ وخت چه زمونږ

عَلَيْهِ اٰيٰتُنَا قَالَ اَسَاطِيْرُ الْاَوَّلِيْنَ ۝١٥ سَنَسِمُهٗ عَلَى الْخُرْطُوْمِ ۝١٦

په دهٔ باندے | زمونږ آیتونه | نو وائی | چه افسانے دی | د پخوانو خلقو | مونږ به زر داغ ورکړو دهٔ ته | په پوزه

آیتونه ورته ولوستلے شی نو وائی چه دا خو د پخوانو خلقو افسانے دی، مونږ به ورله زر په پوزه داغ ولګوو.

اِنَّا بَلَوْنٰهُمْ كَمَا بَلَوْنَآ اَصْحٰبَ الْجَنَّةِ ۚ اِذْ اَقْسَمُوْا

بیشکه مونږ آزمائیلی دی دوئ | لکه چه | مونږ آزمائیلی وُو | خاوندان د باغ | هر کله چه دوئ قسم وخوړو

مونږ د دوئ داسے آزمیښت کړے دے لکه د باغ د خاوندانو آزمیښت چه مو کړے وو. چه هغوئ قسم خوړلے

لَيَصْرِمُنَّهَا مُصْبِحِيْنَ ۝١٧ وَلَا يَسْتَثْنُوْنَ ۝١٨ فَطَافَ عَلَيْهَا

چه دوئ به ضرور پریکوی (د دے میوه) | سحر وختی | او دوئ "انشاء الله" وُنهٔ وئیل | پس وُچورلیدو | په دے (باغ) باندے

وو چه میوه به ترے ته سحر وختی پریکوو. او انشاء الله ئے هم ونهٔ وئیلو، نو په دغه باغ ستا د رب د

طَآئِفٌ مِّنْ رَّبِّكَ وَهُمْ نَآئِمُوْنَ ۝١٩ فَاَصْبَحَتْ كَالصَّرِيْمِ ۝٢٠

بو چورلیدونکے (آفت) | ستا د رب له طرفه | او دوئ | اُوده | وُو | پس شو دغه (باغ) | په شان د ریبلی شوی فصل

طرف نه یو چورلیدونکے عذاب وُچورلیدو چه هغوئ لا اوده پراته وو، نو هغه باغ داسے پاتے شو لکه ریبلے شوے پټے.

فَتَنَادَوْا مُصْبِحِيْنَ ۝٢١ اَنِ اغْدُوْا عَلٰى حَرْثِكُمْ اِنْ كُنْتُمْ

نو دوئ یو بل ته آواز وکړو | د سحر کیدو سره | چه تاسو سحر وختی لاړ شئ | خپل پټی ته | که چرے | یئ تاسو

نو هغوئ صبا یو بل ته نعرے کړے - چه خپل پټی ته وختی ورسیږئ | که میوه ټولول

صٰرِمِيْنَ ﴿۲۲﴾ فَانْطَلَقُوْا وَهُمْ يَتَخَافَتُوْنَ ﴿۲۳﴾ اَنْ لَّا يَدْخُلَنَّهَا

میوه راټولونکی | پس دوی روان شول | او دوی | یو بل سره پټه پټه خبرې کولې | چه هیڅ کله داخل نهٔ شی

غواړئ - غرض دا چه ټول روان شول او پټه پټه خبرې ئې کولې چه (کوری) نن تاسو ته څوک مسکین

الْيَوْمَ عَلَيْكُمْ مِّسْكِيْنٌ ﴿۲۴﴾ وَّغَدَوْا عَلٰى حَرْدٍ قٰدِرِيْنَ ﴿۲۵﴾ فَلَمَّا

نن ورځ | په تاسو | څوک مسکین | او دوی سحر وختی راورسیدل | د بر په اهتمام | چه برلاسی ؤو | بیا هر کله چه

را نهٔ شی ، او په خپل قدرت (او تدبیر) غاوره په تیزئی سره سحر وختی ورسیدل ، نو چه دا

رَاَوْهَا قَالُوْٓا اِنَّا لَضَآلُّوْنَ ﴿۲۶﴾ بَلْ نَحْنُ مَحْرُوْمُوْنَ ﴿۲۷﴾ قَالَ

دوی ولید وهغه | نو وئے وئیل | بیشکه مونږ لاره هیره کړے ده | بلکه مونږ خو | بد نصیبه یُو | ووئیل

(تباه شوے باغ) ئے ولید لو نو ئے وئیل چه (غالبًا) مونږ لار هیره کړے ده - بلکه رښتیا داده چه قسمت موبند شوے دے. په هغوئ

اَوْسَطُهُمْ اَلَمْ اَقُلْ لَّكُمْ لَوْلَا تُسَبِّحُوْنَ ﴿۲۸﴾ قَالُوْا سُبْحٰنَ رَبِّنَآ

منځنی په دوئ کښے | آیا ما نهٔ ؤو وئیلی تاسو ته | چه ولے تاسو تسبیح نهٔ کوئ | دوئ ووئیل | پاک دے | زمونږ رب

کښے څهٔ قدر دے بنهٔ سړی داووئیل چه ما درته دا نهٔ ؤو وئیلی چه د الله پاکی ولے نهٔ بیانوئ؟ بیا ئے ووئیل پاک دے زمونږ رب

اِنَّا كُنَّا ظٰلِمِيْنَ ﴿۲۹﴾ فَاَقْبَلَ بَعْضُهُمْ عَلٰى بَعْضٍ يَّتَلَاوَمُوْنَ ﴿۳۰﴾

بیشکه هم مونږ ؤو | ظالمان | پس را مخامخ شول | ځنے د دوئ | په ځنو باندے | چه ملامت کول دوئ یو بل

بیشکه هم مونږ خطا کار ؤو - بیا ئے یو بل ته ؤکتل او الزامونه لګول ئے شروع کړل -

قَالُوْا يٰوَيْلَنَآ اِنَّا كُنَّا طٰغِيْنَ ﴿۳۱﴾ عَسٰى رَبُّنَآ اَنْ يُّبْدِلَنَا خَيْرًا

دوئ ووئیل | اے هلاکته زمونږ | بیشکه ؤو مونږ | له حده تیریدونکی | اُمید دے | چه رب زمونږ | بدل له راکړی مونږ ته | غوره

بیا ئے ووئیل اے زمونږ بده نصیبه! هم مونږ له حده تیریدونکی ؤو. اُمید دے چه مونږ له خپل رب د دے نه غوره (باغ) په

مِّنْهَآ اِنَّآ اِلٰى رَبِّنَا رٰغِبُوْنَ ﴿۳۲﴾ كَذٰلِكَ الْعَذَابُ ۗ وَلَعَذَابُ

له دے (باغ) نه | بیشکه مونږ | خپل رب طرف ته | رجوع کوونکی یُو | دغه شان (دی) | عذاب | او خامخا عذاب

بدل کښے راکړی بیشکه مونږ خپل رب ته رجوع کوو - عذاب (چه راځی نو) داسے راځی - او د آخرت عذاب

الْاٰخِرَةِ اَكْبَرُ ۘ لَوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ ﴿۳۳﴾ اِنَّ لِلْمُتَّقِيْنَ عِنْدَ رَبِّهِمْ

د آخرت | ډیر لوئے دے | کاش | چه دوئ پوهیدلے | بیشکه | پرهیزګارانو د پاره | د دوئ د رب سره

خو ډیر لوئے دے، کاش! که دوئ پرے پوهیدلے - د پرهیزګارانو د پاره خپل رب سره د آرام

جَنّٰتِ النَّعِيْمِ ﴿۳۴﴾ اَفَنَجْعَلُ الْمُسْلِمِيْنَ كَالْمُجْرِمِيْنَ ﴿۳۵﴾ مَا لَكُمْ

باغونه | د نعمت دی | نو آیا مونږ به کړو | مسلمانان | په شان د مجرمانو | په تاسو څهٔ وشول؟

باغونه دی ، نو آیا مونږ به منونکی د مجرمانو سره سمو ؤ؟ دا په تاسو څهٔ شوی دی؟

كَيْفَ تَحْكُمُوْنَ ﴿۳۶﴾ اَمْ لَكُمْ كِتٰبٌ فِيْهِ تَدْرُسُوْنَ ﴿۳۷﴾ اِنَّ

تاسو څنګه فیصله کوئ؟ | آیا تاسو سره | (څهٔ) کتاب دے | چه په هغے کښے | تاسو تلاوت کوئ | (چه) بیشکه

دا تاسو څنګه فیصلے کوئ؟ آیا تاسو سره (آسمانی) کتاب شته چه تاسو پکښے (حکمونه) لولئ؟ چه په هغے کښے

لَكُمْ فِيهِ لَمَا تَخَيَّرُونَ ﴿٣٨﴾ أَمْ لَكُمْ أَيْمَانٌ عَلَيْنَا بَالِغَةٌ

تاسو دَ پاره | په دے کښے دی | هغه څه چه | تاسو ئے خوښوئ | آيا تاسو دَ پاره | څه پخه وعده دَه | زمونږ په ذمه | چه رسيد ونکے ده

ستاسو دَ خوښے څيزونه ليکلی (پرانه) دی۔ يا زمونږ په ذمه ستاسو په حقله قسمونه (خوړلی) پرانه دی

إِلَىٰ يَوْمِ الْقِيَامَةِ ۙ إِنَّ لَكُمْ لَمَا تَحْكُمُونَ ﴿٣٩﴾ سَلْهُمْ أَيُّهُم

تر ورځے دَ قيامت | بيشکه | تاسو دَ پاره (به وی) | هغه څه | چه تاسو ئے کوئ | تپوس وکړه له دوئ نه | چه څوک له دوئ نه

چه تر قيامته به باقی پاتے وی (او) تاسو ته به دَ خپلو فيصلو مطابق (نعمتونه) درکړے شی؟ تپوس ترے نه وکړه چه

ع ۱۵

بِذَٰلِكَ زَعِيمٌ ﴿٤٠﴾ أَمْ لَهُمْ شُرَكَاءُ فَلْيَأْتُوا بِشُرَكَائِهِمْ إِن

دَ دے خبرے | دعويدار دے | آيا دوئ دَ پاره | شريکان دی | پس را دِ ولی | شريکان خپل | که چرے

په دوئ کښے څوک دَ دے ذمه وار دے؟ يا دوئ (دَ الله) څوک شريکان مقرر کړی دی که دا سے وی نو پکار دی چه دوئ خپل شريکان راولی

كَانُوا صَادِقِينَ ﴿٤١﴾ يَوْمَ يُكْشَفُ عَن سَاقٍ وَيُدْعَوْنَ إِلَى السُّجُودِ

وی دوئ رښتيا ويونکی | په هغه ورځ | چه ښکاره کړے شی | پنډئ | او دوئ به راوبللے شی | سجدے دَ پاره

که چرے دوئ رښتينی وی۔ هغه ورځ (دَ هيرے نه ده) چه پنډئ به بربنډه کړے شی او دوئ به سجدے ته راغوښتے شی

فَلَا يَسْتَطِيعُونَ ﴿٤٢﴾ خَاشِعَةً أَبْصَارُهُمْ تَرْهَقُهُمْ ذِلَّةٌ

نو دوئ به نه شی کولے | ټيټے به وی | سترگے دَ دوئ | خور به وی په دوئ باندِ | ذلت

خو سجده به کولے نه شی۔ سترگے به ئے ټيټے وی، ذلت به پرے راغوړيدلے وی

وَقَدْ كَانُوا يُدْعَوْنَ إِلَى السُّجُودِ وَهُمْ سَالِمُونَ ﴿٤٣﴾ فَذَرْنِي وَمَن

او دوئ به رابللے شول (په دنيا کښے) | دَ سجدو طرف ته | او دوئ | ښه روغ رمټ وو | پس پريږدئ ما | او هغه څوک

حال دا دے چه (په دنيا کښے) دوئ به دَ سجدے طرف ته رابللے شول او ښه روغ رمټ وو۔ نو ته پريږده ما او دا

يُكَذِّبُ بِهَٰذَا الْحَدِيثِ ۖ سَنَسْتَدْرِجُهُم مِّنْ حَيْثُ لَا يَعْلَمُونَ ﴿٤٤﴾

چه دروغ گڼړی | دا | خبره | مونږ به رو رو راکاږو دوئ | دا سے چه دوئ | پرے نه پوهيږی۔

کلام دروغ گڼړونکی، مونږ دوئ رو رو دا سے ګامئے ته وړاندِ کوو چه دوئ ته خبر هم نشته

وَأُمْلِي لَهُمْ ۚ إِنَّ كَيْدِي مَتِينٌ ﴿٤٥﴾ أَمْ تَسْأَلُهُمْ أَجْرًا فَهُم

او زهٔ مهلت ورکوم | دوئ ته | بيشکه | زما تدبير | ډير زبردست دے | آيا | ته غواړے له دوئ نه | څهٔ اجر | پس دوئ

او زهٔ دوئ ته مهلت ورکوم بيشکه زما تدبير ډير پوخ دے۔ آيا ته له دوئ نه څهٔ اجر غواړے چه دوئ دَ هغے

مِّن مَّغْرَمٍ مُّثْقَلُونَ ﴿٤٦﴾ أَمْ عِندَهُمُ الْغَيْبُ فَهُمْ يَكْتُبُونَ ﴿٤٧﴾

له تاوان نه | درانه دی | يا | دوئ سره | دَ غيبو (خبر) دے | چه دوئ | دا ليکی

دَ تاوان (اداکولو) نه عاجزه دی؟ يا دوئ سره دَ غيبو څهٔ خبر دے چه دوئ هغه ليکی۔ نو

وقف لازم

فَاصْبِرْ لِحُكْمِ رَبِّكَ وَلَا تَكُن كَصَاحِبِ الْحُوتِ إِذْ نَادَىٰ

پس ته صبر کوه | دَ پاره دَ حکم | دَ رب خپل | او مهٔ کيږه | په شان دَ خاوند دَ مهی | کله چه دهٔ اواز وکړو

ته دَ خپل رب حکم ته صابره کښينه۔ او دَ مهی دَ خاوند (يونس) په شان مهٔ کيږه چه خپل رب ته ئے اواز وکړو

وَهُوَ مَكْظُوْمٌ ﴿٤٨﴾ لَوْلَآ اَنْ تَدٰرَكَهٗ نِعْمَةٌ مِّنْ رَّبِّهٖ لَنُبِذَ بِالْعَرَآءِ

او دے له غم نه ډک وو | که چرې رانه رسیدلې وې | فضل | د رب خپل | نو غورځولے شوے به وو | په ډاګه میدان

او په غم کښې ډوب وو - که د خپل رب نعمت را نه رسیدلې وې نو په ډاګه میدان به غورځولے شوے وو

وَهُوَ مَذْمُوْمٌ ﴿٤٩﴾ فَاجْتَبٰهُ رَبُّهٗ فَجَعَلَهٗ مِنَ الصّٰلِحِيْنَ ﴿٥٠﴾ وَاِنْ

او دے | به بد حاله وو | پس دے غوره کړو | رب د ده | پس دے ئے کړو | له نیکانو نه | او بیشکه

وو او په بد حال به اخته وو، نو بیا خپل رب هغه (نور) غوره کړو او په صالحانو کښې ئے شمیر کړو- او دا سے ښکاری

يَّكَادُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَيُزْلِقُوْنَكَ بِاَبْصَارِهِمْ لَمَّا سَمِعُوا الذِّكْرَ

نزدے ده | چه کافران | ښوئوی تا | په (تیزو) سترګو خپلو | هر کله چه | دوی آوری | قرآن

چه دا کافران به تا د سترګو په نظر ښوئوی ، څهٔ وخت چه دوئ قرآن اوری

وَيَقُوْلُوْنَ اِنَّهٗ لَمَجْنُوْنٌ ﴿٥١﴾ وَمَا هُوَ اِلَّا ذِكْرٌ لِّلْعٰلَمِيْنَ ﴿٥٢﴾

او دوئ وائی | بیشکه دے خو | لیونے دے | او نهٔ دے دا (قرآن) | مګر نصیحت | د ټولو جهانونو د پاره

او دوئ وائی چه دا خو لیونے دے، حال دا دے چه دا قرآن خو د ټولو جهانونو د پاره نصیحت دے

سُوْرَةُ الْحَآقَّةِ مَكِّيَّةٌ وَّهِىَ اثْنَتَانِ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | وَخَمْسُوْنَ اٰيَةً وَّفِيْهَا رُكُوْعَانِ

سوره حاقه په مکه کښې نازل شو | (شروع) د الله په نامه چه لوئے مهربان ډیر زیات رحم کوونکے دے | او په دے کښې ۵۲ آیتونه او ۲ رکوع دی

د الله په نامه شروع چه لوئے مهربان د ډیر زیات رحم خاوند دے

اَلْحَآقَّةُ ﴿١﴾ مَا الْحَآقَّةُ ﴿٢﴾ وَمَآ اَدْرٰىكَ مَا الْحَآقَّةُ ﴿٣﴾ كَذَّبَتْ

ضرور واقع کیدونکے دے | څهٔ دے هغه واقع کیدونکے | او تا ته څهٔ معلومه ده | چه څهٔ دے واقع کیدونکے | دروغ ګڼلے وو

هغه ضرور واقع کیدونکے دے هغه واقع کیدونکے څیز څهٔ دے؟ او تا ته څهٔ معلومه ده چه هغه واقع کیدونکے څیز څهٔ دے؟ ثمود او عاد

ثَمُوْدُ وَعَادٌۢ بِالْقَارِعَةِ ﴿٤﴾ فَاَمَّا ثَمُوْدُ فَاُهْلِكُوْا بِالطَّاغِيَةِ ﴿٥﴾

(قوم د) ثمود | او عاد | ټکوونکی (قیامت) لره | پس ثمود چه وو | پس هلاک کړے شول | په یوه چغه

(دواړو) هغه ټکوونکے واقعه دروغ ګڼړله- نو ثمود چه وو هغوئ خو په یوه چغه تباه کړے شول۔

وَاَمَّا عَادٌ فَاُهْلِكُوْا بِرِيْحٍ صَرْصَرٍ عَاتِيَةٍ ﴿٦﴾ سَخَّرَهَا

او (قوم د) عاد چه وو | پس دوئ هلاک کړے شول | په باد | سخت | له حد نه تیر شوی | مقرر کړے وو الله دا

پاتے شو عاد نو هغوئ مو په یو داسے تیز باد هلاک کړل چه ډیر تند وو - الله تعالیٰ په دوئ باندې

عَلَيْهِمْ سَبْعَ لَيَالٍ وَّثَمٰنِيَةَ اَيَّامٍ حُسُوْمًا فَتَرَى الْقَوْمَ فِيْهَا

په دوی باندې | اووهٔ | شپې | او اتهٔ | ورځې | پرله پسے | پس کتل به تا | د غه خلق | په دے کښې

دغه تیز باد اووهٔ شپې او اتهٔ ورځې پرله پسے والوزولو ، نو تهٔ په کښې هغه خلق داسے

صَرْعٰى كَاَنَّهُمْ اَعْجَازُ نَخْلٍ خَاوِيَةٍ ﴿٧﴾ فَهَلْ تَرٰى لَهُمْ مِّنْۢ بَاقِيَةٍ ﴿٨﴾

په زمکه پرېوتلی | لکه چه دوئ | تنے دی | د قجورو | ډډے | نو آیا | تهٔ وینے | د دوئ | څهٔ باقی پاتے شوی

راغورزیدلی وینے لکه د غورزیدلو قجورو ډډے تنے، بیا آیا تهٔ په دوئ کښې څوک باقی پاتے وینے؟

وَجَآءَ فِرْعَوْنُ وَمَنْ قَبْلَهٗ وَالْمُؤْتَفِكٰتُ بِالْخَاطِئَةِ ﴿۹﴾ فَعَصَوْا

اوراغے | فرعون | او له دهٔ نه وړاندې خلق | او د اُلټه شوو کلو خلق | په ګناه سره | پس دوئ نافرماني وکړه

او فرعون او د هغهٔ نه وړاندې نور و خلقو او د اوړېدلو کلو خاوندانو (غټ غټ) جرمونه وکړل ۔ نو دوئ د خپل رب د

رَسُوْلَ رَبِّهِمْ فَاَخَذَهُمْ اَخْذَةً رَّابِيَةً ﴿۱۰﴾ اِنَّا لَمَّا طَغَا الْمَآءُ

د خپل رب د رسول | نو الله ونيول دوئ | په نيولو | سختو سره | بيشکه مونږ | هر کله چه | له حده تير شوے | اوبهٔ

پيغمبر نافرماني وُکړه ، نو الله تعالىٰ ډير کلک راونيول ، هر کله چه اوبهٔ زياتې شوې نو تاسو

حَمَلْنٰكُمْ فِى الْجَارِيَةِ ﴿۱۱﴾ لِنَجْعَلَهَا لَكُمْ تَذْكِرَةً وَّتَعِيَهَآ اُذُنٌ

نو مونږ سواره کړئ تاسو | په روانه کشتۍ کښې | چه مونږ کړو دا | تاسو د پاره | يو نصيحت | او ياد و ساتي دا | غوږونه

مو په کشتۍ کښې سواره کړئ ، چه دا واقعه تاسو له يادګار کړو ، او ياد ساتونکي غوږونه

وَّاعِيَةٌ ﴿۱۲﴾ فَاِذَا نُفِخَ فِى الصُّوْرِ نَفْخَةٌ وَّاحِدَةٌ ﴿۱۳﴾ وَّحُمِلَتِ الْاَرْضُ

ياد لرونکي | پس هر کله چه | پوکے ووهلے شي | په شپيلۍ کښې | پوکے | يو ځل | او راوچته کړے شي | زمکه

ئې ياد وساتي ، عرض دا چه يو ځل شپيلۍ پوک وهلے شي ۔ او زمکه او غرونه

وَالْجِبَالُ فَدُكَّتَا دَكَّةً وَّاحِدَةً ﴿۱۴﴾ فَيَوْمَئِذٍ وَّقَعَتِ الْوَاقِعَةُ ﴿۱۵﴾

او غرونه | پس ريزه ريزه به کړے شي | په يو ځل ريزه کولو سره | پس په دغه ورځ به | واقع شي | واقع کيدونکے

اوچت کړے شي نو دواړه به يو وارے ذره ذره کړے شي ، نو په هغې ورځ کيدونکے څيز به او شي

وَانْشَقَّتِ السَّمَآءُ فَهِىَ يَوْمَئِذٍ وَّاهِيَةٌ ﴿۱۶﴾ وَّالْمَلَكُ عَلٰٓى اَرْجَآئِهَا

او وبه چوي | آسمان | پس هغه به | په دغه ورځ | سست شوے وي | او فرښتے (به وي) | د هغې په غاړو باندې

او آسمان به وشليږي او هغه به په دغه ورځ ډير کمزورے وي ۔ او فرښتے به د دې په غاړه ولاړے وي

وَيَحْمِلُ عَرْشَ رَبِّكَ فَوْقَهُمْ يَوْمَئِذٍ ثَمٰنِيَةٌ ﴿۱۷﴾ يَوْمَئِذٍ تُعْرَضُوْنَ

او اوچت کړے به وي | عرش | ستا د رب | د پاسه د دوئ | په دغه ورځ | اته (فرښتو) | په دغه ورځ به | تاسو راوړاندې کړے شئ

او ستا د رب عرش به په دغه ورځ اته تنو (فرښتو) د ځان د پاسه اوچت کړے وي ۔ په کومه ورځ چه تاسو پيش کړے

لَا تَخْفٰى مِنْكُمْ خَافِيَةٌ ﴿۱۸﴾ فَاَمَّا مَنْ اُوْتِىَ كِتٰبَهٗ بِيَمِيْنِهٖ

پټ به پاتے نهٔ شي | ستاسو | څهٔ راز | نو چا ته چه | ورکړے شي | عمل نامه د دهٔ | د دهٔ په ښي لاس کښې

شئ نو ستاسو هيڅ خبره به پټه پاتے نهٔ شي ، نو چا ته چه عملنامه په ښي لاس کښې ورکړے شي

فَيَقُوْلُ هَآؤُمُ اقْرَءُوْا كِتٰبِيَهْ ﴿۱۹﴾ اِنِّىْ ظَنَنْتُ اَنِّىْ مُلٰقٍ حِسَابِيَهْ ﴿۲۰﴾

نو دے به وائي | دا خلئ | ولولئ | زما عمل نامه | بيشکه ما | ګنړل | چه زهٔ ملاويدونکے يم | خپل حساب سره

نو هغه به وائي چه راشئ زما عملنامه ولولئ ۔ زهٔ په دے پوهه وم چه زهٔ به خپل حساب بيا مومم

فَهُوَ فِىْ عِيْشَةٍ رَّاضِيَةٍ ﴿۲۱﴾ فِىْ جَنَّةٍ عَالِيَةٍ ﴿۲۲﴾ قُطُوْفُهَا دَانِيَةٌ ﴿۲۳﴾ كُلُوْا

نو هغه به وي | په عيش کښې | د خوښے | په باغ | اوچت کښې | چه ميوے د هغې به | راټيټے وي | خورئ

نو هغه به ښهٔ د مزے په عيش کښې اوسيږي ، په اوچت جنت کښې به وي چه ميوے به ئې راټيټے وي خورئ

وَاشْرَبُوْا هَنِيْٓـًٔا بِمَآ اَسْلَفْتُمْ فِي الْاَيَّامِ الْخَالِيَةِ ﴿٢٤﴾ وَاَمَّا مَنْ

او څښئ | خوند ناک | په بدل د هغې | چه وړاندې لیږلي دي تاسو | په ورځو | تیرو شوو کښې | او هر هغه کس چه

څښئ په مزه د هغې اعمالو په بدل کښې چه په تیرو ورځو کښې مو کړي دي، او چا ته چه عملنامه

اُوْتِيَ كِتٰبَهٗ بِشِمَالِهٖ ۙ فَيَقُوْلُ يٰلَيْتَنِيْ لَمْ اُوْتَ كِتٰبِيَهْ ﴿٢٥﴾

ورکړې شي | عملنامه د هغه | په کس لاس کښې د هغه | نو هغه به وائي | اے کاش! | چه نه وے راکړے شوے ماته | عملنامه زما

په کس لاس کښې ورکړے شي، نو هغه به وائي چه ښه به وه که دا عملنامه ماته راکړے شوې نه وے

وَلَمْ اَدْرِ مَا حِسَابِيَهْ ﴿٢٦﴾ يٰلَيْتَهَا كَانَتِ الْقَاضِيَةَ ﴿٢٧﴾ مَآ اَغْنٰى عَنِّيْ

او زه نه پوهیدلے | چه زما حساب څه دے؟ | کاش! (مرګ) | وے | فیصله کوونکے زما | په کار را نغے | زما

او زه هډو خبر نه وے چه زما حساب څه دے؟ اے کاش! چه مرګ را له خلاصے کړے وے. مال خو مې هډو هیڅ

مَالِيَهْ ﴿٢٨﴾ هَلَكَ عَنِّيْ سُلْطٰنِيَهْ ﴿٢٩﴾ خُذُوْهُ فَغُلُّوْهُ ﴿٣٠﴾ ثُمَّ الْجَحِيْمَ

مال زما | برباد شو | له مانه | حکومت زما | ونیسئ دے | پس څنځیر واچوئ ده ته | بیا | په دوزخ کښې

په کار را نغے. زما مرتبه هم لاړه راڅخه. (حکم به وشي) دے ونیسئ او طوق ورته واچوئ. بیا ئے دوزخ ته

صَلُّوْهُ ﴿٣١﴾ ثُمَّ فِيْ سِلْسِلَةٍ ذَرْعُهَا سَبْعُوْنَ ذِرَاعًا فَاسْلُكُوْهُ ﴿٣٢﴾ اِنَّهٗ

داخل کړئ دے | بیا | په یو زنځیر کښې | چه اوږدوالے د هغې | اویا | ګزه دے | دے وتړئ | بیشکه دۀ

ننباسئ. بیا ئے په داسے زنځیر کښې وتړئ چه د هغې اوږدوالے اویا ګزه دے. دۀ به په

كَانَ لَا يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ الْعَظِيْمِ ﴿٣٣﴾ وَلَا يَحُضُّ عَلٰى طَعَامِ الْمِسْكِيْنِ ﴿٣٤﴾

ایمان نه لرلو | په الله | لوئے | او نه به دۀ ترغیب ورکولو | د طعام ورکولو | مسکین ته

لوئے الله ایمان نه راوړو او مسکین ته به ئے د خوراک ورکولو ترغیب نه ورکولو

فَلَيْسَ لَهُ الْيَوْمَ هٰهُنَا حَمِيْمٌ ﴿٣٥﴾ وَّلَا طَعَامٌ اِلَّا مِنْ غِسْلِيْنٍ ﴿٣٦﴾

پس نشته | د دۀ | نن ورځ | دلته | خوږ دوست | او نه طعام | سوا | د وینو زوو نه

پس نن ئے دلته خوږ دوست نشته، او نه د وینو زوو نه علاوه دۀ د پاره څۀ خوراک شته.

لَّا يَاْكُلُهٗٓ اِلَّا الْخٰطِـُٔوْنَ ﴿٣٧﴾ فَلَآ اُقْسِمُ بِمَا تُبْصِرُوْنَ ﴿٣٨﴾ وَمَا

نه به خوری هغه | مګر ګناهګاران | پس زۀ قسم خورم | په هغه څۀ | چه تاسو ئے وینئ | او په هغه څۀ

چه د ګناهګارو نه سوا به ئے بل څوک نه خوری، نو زۀ قسم خورم په هغه څیزونو چه تاسو ئے وینئ او کوم چه

لَا تُبْصِرُوْنَ ﴿٣٩﴾ اِنَّهٗ لَقَوْلُ رَسُوْلٍ كَرِيْمٍ ﴿٤٠﴾ وَّمَا هُوَ بِقَوْلِ شَاعِرٍ ؕ

چه تاسو ئے نه وینئ | بیشکه دا (قرآن) | خبره ده | د فرښتے | عزتمندے | او نه ده دا | وینا | د شاعر

تاسو نه وینئ. چه دا قرآن د یوے عزتمندے فرښتے راوړے کلام دے، او د (چا) شاعر کلام نه دے.

قَلِيْلًا مَّا تُؤْمِنُوْنَ ﴿٤١﴾ وَلَا بِقَوْلِ كَاهِنٍ ؕ قَلِيْلًا مَّا تَذَكَّرُوْنَ ﴿٤٢﴾ تَنْزِيْلٌ

ډیر لږ | تاسو یقین کوئ | او نه وینا | د جادوګر ده | ډیر کم | تاسو غور کوئ | را نازل شوے دے

تاسو ډیر کم ایمان راوړئ. او نه د (چا) کاهن کلام دے، تاسو ډیر کم پوهیږئ. دا د ټول عالم د

مِّنْ رَّبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿۴۳﴾ وَلَوْ تَقَوَّلَ عَلَيْنَا بَعْضَ الْاَقَاوِيْلِ ﴿۴۴﴾ لَاَخَذْنَا

له طرفه دَ رب | دَ عالمونو | او که چرے تړلے دهٔ | په مونږ باندې | څه | خبرے | نو خامخا به نیولے وو مونږ

رب له طرف نه نازل شوے دے ۔ او که دِے پیغمبر زمونږ په ذمه څهٔ خبره لګولے وے ، نو مونږ به ترے

مِنْهُ بِالْيَمِيْنِ ﴿۴۵﴾ ثُمَّ لَقَطَعْنَا مِنْهُ الْوَتِيْنَ ﴿۴۶﴾ فَمَا مِنْكُمْ مِّنْ اَحَدٍ

دَ دهٔ | ښے لاس | بیا به | پریکړے وو مونږ | دَ دهٔ | رګ دَ زړهٔ | پس نهٔ به وو له تاسو نه | هیڅوک

نه ښے لاس نیولے وو ، بیا به موترے نه دَ زړهٔ رګ پریکړے وو ۔ نو بیا به په تاسو کښې هیڅوک دَ دے

عَنْهُ حٰجِزِيْنَ ﴿۴۷﴾ وَاِنَّهٗ لَتَذْكِرَةٌ لِّلْمُتَّقِيْنَ ﴿۴۸﴾ وَاِنَّا لَنَعْلَمُ

له دهٔ نه | بچ کوونکے | او بیشکه دا | یو نصیحت دے | پرهیزګارانو دَ پاره | او بیشکه مونږ | پوهیږو

سزا نه بچ کوونکے نه وو ۔ او دا قرآن پرهیزګارانو دَ پاره نصیحت دے او مونږ ښهٔ پوهه یو چه په

اَنَّ مِنْكُمْ مُّكَذِّبِيْنَ ﴿۴۹﴾ وَاِنَّهٗ لَحَسْرَةٌ عَلَى الْكٰفِرِيْنَ ﴿۵۰﴾ وَاِنَّهٗ

چه څے له تاسو نه | دروغ ګڼړونکی دی | او بیشکه دا | ارمان دے | په کافرانو باندې | او بیشکه دا

تاسو کښې دروغژن ګڼړونکی هم دی ۔ او دا قرآن دَ کافرانو په حقله سبب دَ پښیمانئ دے او دا قرآن

لَحَقُّ الْيَقِيْنِ ﴿۵۱﴾ فَسَبِّحْ بِاسْمِ رَبِّكَ الْعَظِيْمِ ﴿۵۲﴾

برحق دے | په یقیني طور | پس پاکی یاده کړه | دَ خپل رب دَ نوم | چه لوئے دے

بالکل یقیني خبره دے نو (اے پیغمبره! تهٔ) دَ خپل رب دَ نامے تسبیح وایه چه لوئے دے

سُوْرَةُ الْمَعَارِجِ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ اَرْبَعٌ وَّاَرْبَعُوْنَ اٰيَةً وَّفِيْهَا رُكُوْعَانِ

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

سورهٔ معارج په مکه کښې نازل شوا | (شروع) دَ الله په نامه چه لوئے مهربان ډیر زیات رحم کوونکے دے | په دے کښې ۴۴ آیتونه او ۲ رکوع دی

دَ الله په نامه شروع چه لوئے مهربان دَ ډیر زیات رحم خاوند دے

سَاَلَ سَآئِلٌۢ بِعَذَابٍ وَّاقِعٍ ﴿۱﴾ لِّلْكٰفِرِيْنَ لَيْسَ لَهٗ

وُغوښتلو | یو غوښتونکی | هغه عذاب | چه واقع کیدونکے دے | په کافرانو | نشته دے | دَ دے

یو سوال کوونکی دَ هغه عذاب دَ واقع کیدو په حقله تپوس وُکړو چه په کافرو به واقع کیږی ۔ او دَ هغے څوک دفع

دَافِعٌ ﴿۲﴾ مِّنَ اللّٰهِ ذِى الْمَعَارِجِ ﴿۳﴾ تَعْرُجُ الْمَلٰٓئِكَةُ وَالرُّوْحُ اِلَيْهِ

څوک دفع کوونکے | دَ الله له طرف نه | چه خاوند دَ مرتبو دے | چه پورته خیژی | فرښتے | او روح | دَ دهٔ طرف ته

کوونکے نشته ۔ دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه به وی چه دَ اوچتو درجو مالک دے۔ فرښتے او روح به ورته ورخیژی په داسے ورځ

فِيْ يَوْمٍ كَانَ مِقْدَارُهٗ خَمْسِيْنَ اَلْفَ سَنَةٍ ﴿۴﴾ فَاصْبِرْ صَبْرًا جَمِيْلًا ﴿۵﴾

په هغه ورځ کښې | چه دے مقدار دَ هغے | پنځوس | زره | کاله | پس صبر کوه | صبر | ښهٔ

کښې چه دَ هغے اندازه به پنځوس زره کاله وی ، نو تهٔ صبر کوه او ښهٔ صبر کوه۔

اِنَّهُمْ يَرَوْنَهٗ بَعِيْدًا ﴿۶﴾ وَّنَرٰىهُ قَرِيْبًا ﴿۷﴾ يَوْمَ تَكُوْنُ السَّمَآءُ

بیشکه دوئ | ویني هغه | لرے | او مونږ وینو هغه | نزدے | په هغه ورځ | چه شی به | آسمان

دوئ ته دغه ورځ لرے ښکاری ، او مونږ ته نزدے ښکاری په دغه ورځ به آسمان دَ ویلی شوے

كَالْمُهْلِ ﴿۸﴾ وَتَكُوْنُ الْجِبَالُ كَالْعِهْنِ ﴿۹﴾ وَلَا يَسْـَٔلُ حَمِيْمٌ

پهشان دویلې شوې تانبې | او شي به | غرونه | پهشان د رنګ کړې وړۍ | او تپوس به نه کوي | (څوک) دوست

تانبې په شان وي۔ او غرونه به د رنګینې وړۍ په شان وي۔ او دوست به د دوست پوښتنه

حَمِيْمًا ﴿۱۰﴾ يُّبَصَّرُوْنَهُمْ ۚ يَوَدُّ الْمُجْرِمُ لَوْ يَفْتَدِيْ مِنْ عَذَابِ

د بل دوست | دوئ به کوري هغوئ ته | غواړي به | مجرم | چه کاش! | دې په بدله کښې ورکړي | له عذاب نه

نه کوي، سره د دې چه مخامخ به ورته ښودې شي مجرم به په دغه ورځ ارزو کوي چه په څه طریقه د دغې ورځې د

يَوْمِئِذٍۭ بِبَنِيْهِ ﴿۱۱﴾ وَصَاحِبَتِهٖ وَاَخِيْهِ ﴿۱۲﴾ وَفَصِيْلَتِهِ الَّتِيْ تُـْٔوِيْهِ ﴿۱۳﴾

د دغې ورځې | خپل ځامن | او خپله ښځه | او خپل ورور | او خپله قبیله | هغه چه | پناه به یې ورکوله ده ته

عذاب نه د بچ کیدو د پاره (په بدله کښې) خپل ځامن ورکړي او خپله ښځه او خپل ورونړه هم او خپل خاندان په کوم کښې چه به دې

وَمَنْ فِي الْاَرْضِ جَمِيْعًا ۙ ثُمَّ يُنْجِيْهِ ﴿۱۴﴾ كَلَّا ۭ اِنَّهَا لَظٰى ﴿۱۵﴾ نَزَّاعَةً

او هغه څوک | چه په زمکه کښې دي | ټول | بیا | خلاصې ورکړي ده ته | هیڅکله نه | بیشکه هغه خو یوه اور دې | راویستونکې دې

اوسیدو او د ټولې زمکې استوګن خلق، بیا خپل ځان بچ کړي (خو) هیڅکله نه، هغه دا سې شعله ده چه (روغ

لِّلشَّوٰى ﴿۱۶﴾ تَدْعُوْا مَنْ اَدْبَرَ وَتَوَلّٰى ﴿۱۷﴾ وَجَمَعَ فَاَوْعٰى ﴿۱۸﴾

د څرمنو | رابلې به | هغه څوک | چه شا ئې کړې وي | او مخ ئې اړولې وي | او جمع ئې کړو (مال) | پس محفوظ ئې کړو

څرمن غورزوي۔ او هغه کس به ځان ته راغواړي چه شا کړې به ئې وه او مخ به ئې اړولو او مال ئې جمع کړو او هغه ئې سنبال کړو

اِنَّ الْاِنْسَانَ خُلِقَ هَلُوْعًا ﴿۱۹﴾ اِذَا مَسَّهُ الشَّرُّ جَزُوْعًا ﴿۲۰﴾ وَّاِذَا

بیشکه انسان | پیدا شوې دې | بې صبره | هر کله چه | ورسیږي ده ته | تکلیف | نو فریاد کوونکې وي | او هر کله چه

یقیناً انسان بې صبره پیدا شوې دې، هر کله چه ورته تکلیف ورسیږي نو فریاد وونه کوي، او چه دولت

مَسَّهُ الْخَيْرُ مَنُوْعًا ﴿۲۱﴾ اِلَّا الْمُصَلِّيْنَ ﴿۲۲﴾ الَّذِيْنَ هُمْ عَلٰى صَلَاتِهِمْ

ورسیږي ده ته | خیر | نو شومتیا کوي | مګر | مونځ ګزار (خلق) | هغه کوم چه | په خپلو مونځونو باندې

ورته ملاؤ شي نو شومتیا کوي سوا د هغه مونځ ګزارو نه چه خپل مونځونه همیشه ادا

دَآئِمُوْنَ ﴿۲۳﴾ وَالَّذِيْنَ فِيْٓ اَمْوَالِهِمْ حَقٌّ مَّعْلُوْمٌ ﴿۲۴﴾ لِّلسَّآئِلِ

همیشه قائم وي | او هغه خلق چه | په مالونو د هغوئ کښې | حق | مقرر دې | د پاره د سوال کوونکي

کوي او د کومو په مالونو کښې چه حق مقرر دې د سوال کوونکو

وَالْمَحْرُوْمِ ﴿۲۵﴾ وَالَّذِيْنَ يُصَدِّقُوْنَ بِيَوْمِ الدِّيْنِ ﴿۲۶﴾ وَالَّذِيْنَ هُمْ

او د بې نوا | او هغه خلق چه | تصدیق کوي | د ورځې د جزا | او هغه خلق چه هغوئ

او د محتاجانو۔ او هغه خلق چه د بدلې په ورځ یقین ساتي او کوم چه د

مِّنْ عَذَابِ رَبِّهِمْ مُّشْفِقُوْنَ ﴿۲۷﴾ اِنَّ عَذَابَ رَبِّهِمْ غَيْرُ مَاْمُوْنٍ ﴿۲۸﴾

له عذاب نه | د رب خپل | ویریږي | بیشکه | عذاب د رب د دوئ | بې خطرې نه دې

خپل رب د عذاب نه ویریږي، حقیقت دا دې چه د دوئ د رب عذاب ډیر خطرناک دې

وَالَّذِينَ هُمْ لِفُرُوجِهِمْ حٰفِظُونَ ﴿۲۹﴾ إِلَّا عَلٰى أَزْوَاجِهِمْ أَوْ مَا مَلَكَتْ

او هغه خلق چه | دوی | دَ شرمګاهونو خپلو | حفاظت کوونکی دی | مګر | دَ خپلو ښځو سره | یا هغو سره چه مالکان دی

او څوک چه دَ خپل شرمګاه خیال ساتی۔ خو هغه! که دَ ښځو او وینځو نه ئے حفاظت

أَيْمَانُهُمْ فَإِنَّهُمْ غَيْرُ مَلُومِينَ ﴿۳۰﴾ فَمَنِ ابْتَغٰى وَرَآءَ ذٰلِكَ

دَ دوی ښی لاسونه (وینځے) | نو بیشکه دوی بانډ | هیڅ ملامته نشته | پس څوک چه | غواړی | دَ دے نه سوا

نهٔ کوی نو په دے ملامته نهٔ دی۔ نو څوک چه دَ دے نه سوا خواهش وُکړی

فَأُولٰٓئِكَ هُمُ الْعٰدُونَ ﴿۳۱﴾ وَالَّذِينَ هُمْ لِأَمٰنٰتِهِمْ وَعَهْدِهِمْ رٰعُونَ ﴿۳۲﴾

پس دغه خلق | هم دوی دی | له حد نه تیریدونکی | او هغه کسان | چه دوی دَ امانتونو خپلو | او دَ وعدو خپلو | لحاظ ساتونکی دی

نو هم دا سے خلق له حد نه تیریدونکی دی۔ او څوک چه دَ خپلو امانتونو او وعدو خیال ساتی۔

وَالَّذِينَ هُمْ بِشَهٰدٰتِهِمْ قَآئِمُونَ ﴿۳۳﴾ وَالَّذِينَ هُمْ عَلٰى صَلَاتِهِمْ

او هغه خلق چه دوی | په ګواهو خپلو | قائم وی۔ | او هغه خلق چه دوی | دَ مونځونو خپلو

او په خپلو ګواهو باند ټینګ ولاړ وی۔ او هغه چه دَ خپلو مونځونو حفاظت

يُحَافِظُونَ ﴿۳۴﴾ أُولٰٓئِكَ فِي جَنّٰتٍ مُّكْرَمُونَ ﴿۳۵﴾ فَمَالِ الَّذِينَ كَفَرُوا

حفاظت کوی | هم دا خلق | په باغونو کښے به وی | عزتمند به وی | پس څهٔ وشول | په کافرانو

کوی۔ هغوئی به په جنتونو کښے په عزت ورننوزی۔ په دے کافرانو څهٔ چل شوے دے

قِبَلَكَ مُهْطِعِينَ ﴿۳۶﴾ عَنِ الْيَمِينِ وَعَنِ الشِّمَالِ عِزِينَ ﴿۳۷﴾ أَيَطْمَعُ

چه ستا طرف ته | رامنډے کوی | له ښی طرف نه | او دَ ګس طرف نه | ډلے ډلے شوے | آیا طمع کوی

چه ستا طرف ته رامنډے کوی۔ دَ ښی اړخ او دَ ګسے غاړے نه ټولی ټولی جوړیږی۔ آیا په دوئی کښے

كُلُّ امْرِئٍ مِّنْهُمْ أَنْ يُدْخَلَ جَنَّةَ نَعِيمٍ ﴿۳۸﴾ كَلَّا ۖ إِنَّا خَلَقْنٰهُمْ

هر کس | له دوئی نه | چه داخل به کړے شی | په باغ دَ نعمت کښے | هیڅ کله نه | بیشکه مونږ | پیدا کړل دوئی

هر کس دا اُمید لری چه دے به دَ نعمت په باغ کښے ورداخل کړی؟ نه هیچرے نه۔ مونږ دوئی دَ هغے څیز

مِّمَّا يَعْلَمُونَ ﴿۳۹﴾ فَلَآ أُقْسِمُ بِرَبِّ الْمَشٰرِقِ وَالْمَغٰرِبِ إِنَّا

له هغه څهٔ نه | چه دوئی پرے پوهیږی | پس زهٔ قسم خورم | په ربّ | دَ مشرقونو | او مغربونو | بیشکه مونږ

نه پیدا کړی دی چه هغول ترے نه واقف دی۔ نو زما دِ قسم وی دَ مشرقونو او دَ مغربونو په رب چه مونږ دا

لَقٰدِرُونَ ﴿۴۰﴾ عَلٰٓى أَنْ نُّبَدِّلَ خَيْرًا مِّنْهُمْ وَمَا نَحْنُ بِمَسْبُوقِينَ ﴿۴۱﴾

خامخا قادر یُو | په دَ ځنبره چه مونږ بدل کړو (مخلوق) | غوره | له دوئی نه | او نهٔ | یُو مونږ | عاجزه

قدرت لرو، چه دَ دوئی په ځائے به دَ دوئی نه ښهٔ خلق راولو او مونږ څهٔ بے وسه خو نهٔ یُو۔

فَذَرْهُمْ يَخُوضُوا وَيَلْعَبُوا حَتّٰى يُلٰقُوا يَوْمَهُمُ الَّذِي

پس پریږده دوئی، | چه مشغول وی | او لوبے وکړی | تردے چه | ملاقات وکړی | دَ ورځے خپلے هغے سره | دَ کومے چه

پس نهٔ دوئی دَ غسے پریږده چه په خپلو لوبو کښے مشغول پراته وی ترڅو چه هغه ورځ ورته رامخکښے شی دَ کومے چه ورسره

يُوْعَدُوْنَ ﴿٤٢﴾ يَوْمَ يَخْرُجُوْنَ مِنَ الْاَجْدَاثِ سِرَاعًا كَاَنَّهُمْ

دوئ سره وعدہ کولے شی | په هغه ورځ | چه راوُبه ځی دوئ | له قبرونو نه | په منډه | لکه چه دوئ

وعده شوے ده ، په کومه ورځ چه به دَ خپلو قبرونو نه په منډه منډه راوځی داسے چه لکه دوئ

اِلٰى نُصُبٍ يُّوْفِضُوْنَ ﴿٤٣﴾ خَاشِعَةً اَبْصَارُهُمْ تَرْهَقُهُمْ ذِلَّةٌ

دَ یوے نخښے طرف ته | منډے وهی | ټیټے به وی | سترگے دَ دوئ | خور به وی په دوئ | ذلت

دَ یوے نخښے طرف ته منډے وهی (په دغه ورځ به) دَ دوئ سترگے ټیټے وی او ذلت به په دوئ راخوروی

ذٰلِكَ الْيَوْمُ الَّذِىْ كَانُوْا يُوْعَدُوْنَ ﴿٤٤﴾

دا ده | هغه ورځ | دَ کومے چه | دَ دوئ سره وعده کولے شی

هم دغه خو هغه ورځ ده دَ کومے چه به دوئ سره وعده کولے شوه۔

سُوْرَةُ نُوْحٍ مَّكِّيَّةٌ وَّهِىَ ثَمَانٌ وَّعِشْرُوْنَ اٰيَةً وَّفِيْهَا رُكُوْعَانِ

سوره نوح په مکه کښے نازل شوا او په دے کښے ۲۸ آیتونه او ۲ رکوع دی

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

(شروع) دَ الله په نامه چه لوئے مهربان ډیر زیات رحم کوونکے دے

دَ الله په نامه شروع چه لوئے مهربان دَ ډیر زیات رحم خاوند دے

اِنَّآ اَرْسَلْنَا نُوْحًا اِلٰى قَوْمِهٖٓ اَنْ اَنْذِرْ قَوْمَكَ مِنْ قَبْلِ اَنْ يَّاْتِيَهُمْ

بیشکه مونږ لیږلے وو | نوح | دَ دهٔ دَ قوم طرف ته | چه اُوبیروه | خپل قوم | وړاندِ له دے نه | چه راشی په دوئ باندِ

مونږ (حضرت) نوح خپل قوم ته وُلیږلو ، چه ته خپل قوم اُوبیروه وړاندِ له دے نه چه عذاب

عَذَابٌ اَلِيْمٌ ﴿١﴾ قَالَ يٰقَوْمِ اِنِّىْ لَكُمْ نَذِيْرٌ مُّبِيْنٌ ﴿٢﴾

عذاب | دردناک | دهٔ وُوئیل | اے زما قومه! | بیشکه زهٔ | تاسو دَ پاره | ویروُنکے یم | ښکاره۔

پرے راشی ۔ هغهٔ ورته ووئیل چه اے زما قومه! زهٔ تاسو دَ پاره صفاصفا ویروُنکے یم۔

اَنِ اعْبُدُوا اللّٰهَ وَاتَّقُوْهُ وَاَطِيْعُوْنِ ﴿٣﴾ يَغْفِرْ لَكُمْ مِّنْ ذُنُوْبِكُمْ

چه عبادت وکړئ | دَ الله | او او یریږئ له دهٔ نه | او حکم منئ زما | دے به وُبخښی | تاسو دَ پاره | گناهونه ستاسو

چه دَ الله تعالٰی بندگی کوئ او دَ هغه نه او یریږئ او زما خبره منئ۔ هغه به ستاسو گناهونه معاف کړی

وَيُؤَخِّرْكُمْ اِلٰٓى اَجَلٍ مُّسَمًّى ؕ اِنَّ اَجَلَ اللّٰهِ اِذَا جَآءَ لَا يُؤَخَّرُ

او وروستو به کړی تاسو | تر وخت | مقرر پورے | بیشکه مقرر وخت | دَ الله | هر کله چه | راشی | نو دا به نهٔ شی وروستو کیدے

او تر ټاکلی وخت پورے به مهلت درکړی۔ یقیناً دَ الله ټاکلے وخت چه یو ځل راشی نو (په هیڅ) نهٔ اړاولیږی

لَوْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ﴿٤﴾ قَالَ رَبِّ اِنِّىْ دَعَوْتُ قَوْمِىْ لَيْلًا

کاش! | تاسو پوهیدے | دهٔ ووئیل | اے زماربه! | بیشکه ما راوُبللو | قوم خپل | شپه

اے کاش! چه تاسو پوهیدے ۔ (نوح) وُوئیل اے زماربه! ما خپل قوم ته شپه او ورځ بلنه

وَّنَهَارًا ﴿٥﴾ فَلَمْ يَزِدْهُمْ دُعَآءِىْٓ اِلَّا فِرَارًا ﴿٦﴾ وَاِنِّىْ كُلَّمَا دَعَوْتُهُمْ

او ورځ | پس زیاته نهٔ کړه دوئ ته | بلنے زما | مگر | تیښته | او بیشکه ما هر وارے چه | راوُبلل دوی

ورکړه ۔ خو زما بلنے (دین ته) دَ هغوئ تیښته نوره هم زیاته کړه۔ او ما چه هر ځل هغوئ راوُبلل

ع ۹ / ۸

وقف لازم

لِتَغْفِرَ لَهُمْ جَعَلُوٓا أَصَابِعَهُمْ فِىٓ ءَاذَانِهِمْ وَٱسْتَغْشَوْا

چه ته ئې وبخښې دوی | نو کېښودے دوی | ګوتې خپلې | په غوږونو خپلو کښې | او راتاو لے کړے دوی

چه ته ورته بخښنه وکړے، نو هغوئ خپلې ګوتې په غوږونو کښې ورکړے، او د خپلو ځانونو او مخونو نه

ثِيَابَهُمْ وَأَصَرُّوا۟ وَٱسْتَكْبَرُوا۟ ٱسْتِكْبَارًا ⑦ ثُمَّ إِنِّى دَعَوْتُهُمْ

جامې خپلې | او ضد ئې وکړو | او غرور ئې وکړو | ډیر لوئے | بیا بیشکه ما | راوبلل دوئ

جامې راتاو کړے او (په خپله خبره) ټینګ شول او ځان ئې ډیر غټ وګڼلو ، بیا ما هغوئ په اوچت آواز

جِهَارًا ⑧ ثُمَّ إِنِّىٓ أَعْلَنتُ لَهُمْ وَأَسْرَرْتُ لَهُمْ إِسْرَارًا ⑨ فَقُلْتُ

په اوچت آواز | بیا بیشکه ما | په ښکاره ووئیل | دوئ ته | او په پټه م ووئیل | دوئ ته | په پټه | پس ما ووئیل

راوبلل، بیا م په ښکاره هم پوهه کړل ، او ډیر په پټه م هم پوهه کړل - نو ورته م ووئیل

ٱسْتَغْفِرُوا۟ رَبَّكُمْ إِنَّهُۥ كَانَ غَفَّارًا ⑩ يُرْسِلِ ٱلسَّمَآءَ عَلَيْكُم

بخښنه غواړئ | د خپل رب نه | بیشکه دے | دے | بخښونکے | دے به راولیږی | له آسمان نه | په تاسو باندې

چه د الله نه معافی غواړئ، هغه ډیر زیات بخښونکے دے - هغه به درباندې له آسمانه ډیر

مِّدْرَارًا ⑪ وَيُمْدِدْكُم بِأَمْوَٰلٍ وَبَنِينَ وَيَجْعَل لَّكُمْ جَنَّٰتٍ

پرله پسې باران | او مدد به وکړی ستاسو | په مالونو | او ځامنو سره | او جوړ به کړی | تاسو د پاره | باغونه

بارانونه ورُوی، او د مالونو او د ځامنو په شکل کښې به ستاسو مدد وکړی او تاسو د پاره به باغونه جوړ کړی

وَيَجْعَل لَّكُمْ أَنْهَٰرًا ⑫ مَّا لَكُمْ لَا تَرْجُونَ لِلَّهِ وَقَارًا ⑬ وَقَدْ

او جوړ به کړی | تاسو د پاره | نهرونه | په تاسو څه شوی | چه تاسو یقین نه کوئ | د الله | په لوئے والی | او حال دا دے

او نهرونه به درله وبهیوی - دا په تاسو څه شوی دی چه د الله په لوئے والی یقین نه کوئ او حال دا چه

خَلَقَكُمْ أَطْوَارًا ⑭ أَلَمْ تَرَوْا۟ كَيْفَ خَلَقَ ٱللَّهُ سَبْعَ سَمَٰوَٰتٍ

چه پیدا ئې کړی تاسو | په څو څو شانه | آیا نه دی کتلی تاسو | چه څنګه | پیدا کړل | الله | اووه | آسمانونه

هغه په څو څو شانه پیدا کړی یئ - آیا تاسو نه وینئ چه الله تعالیٰ څنګه اووه آسمانونه لاندې باندې

طِبَاقًا ⑮ وَجَعَلَ ٱلْقَمَرَ فِيهِنَّ نُورًا وَجَعَلَ ٱلشَّمْسَ سِرَاجًا ⑯

د یو بل د پاسه | او دئ جوړه کړله | سپوږمئ | په دے کښې | روښنانه | او جوړ ئې کړو | نمر | ډیوه

جوړ کړی دی، او سپوږمئ ئې پکښې روښنانه او نمر ئې پکښې ډیوه کړے ده -

وَٱللَّهُ أَنۢبَتَكُم مِّنَ ٱلْأَرْضِ نَبَاتًا ⑰ ثُمَّ يُعِيدُكُمْ فِيهَا وَيُخْرِجُكُمْ

او الله | راوټوکولئ تاسو | له زمکے نه | په راټوکولو سره | بیا به واپس کړی تاسو | په دے کښې | او بیا به راوباسی تاسو

او الله تاسو د زمکے نه په خاص طریقه راټوکولی یئ، بیا به مو دے ته پسته بوځی ، او بیا به مو د دے

إِخْرَاجًا ⑱ وَٱللَّهُ جَعَلَ لَكُمُ ٱلْأَرْضَ بِسَاطًا ⑲ لِّتَسْلُكُوا۟ مِنْهَا

په دوباره راوبستلو سره | او الله | جوړه کړله | تاسو د پاره | زمکه | یو فرش | چه تاسو روان یئ | د دے

نه بهر راوباسی - او الله تعالیٰ درله زمکه فرش کړے ده - چه تاسو د هغے په ارتو لارو

سُبُلًا فِجَاجًا ﴿٢٠﴾ قَالَ نُوحٌ رَّبِّ إِنَّهُمْ عَصَوْنِي وَاتَّبَعُوا

په لارو کښې | چه کشاده دی | وویل | نوح ؑ | اے زما ربه! | بیشکه دوی | نافرمانی وکړه زما | او پیروی وکړه دوی

کښې روان یئ۔ حضرت نوح ؑ وویل چه اے زما ربه! دوی زما نافرمانی وُکړه او دَهغه چا په

مَن لَّمْ يَزِدْهُ مَالُهُ وَوَلَدُهُ إِلَّا خَسَارًا ﴿٢١﴾ وَمَكَرُوا مَكْرًا

دَ هغه چا | چه نهٔ دے زیاتِ کړے دهٔ ته | مال دَ دهٔ | او اولاد دَ دهٔ | مګر | نقصان | او دوی چال وُچلولو | چال

لاره روان شول چه مال او اولاد ورته نش تاوان ورکړے دے۔ او دوی غټ غټ

كُبَّارًا ﴿٢٢﴾ وَقَالُوا لَا تَذَرُنَّ آلِهَتَكُمْ وَلَا تَذَرُنَّ وَدًّا وَلَا سُوَاعًا

ډیر زبردست | او دوی وویل | هیڅ کله پرے نږدئ | معبودان خپل | او هیڅ کله پرے نږدئ | ود | او نه | سواع

مکرونه وکړل او دوی (یو بل ته) وُوئیل چه خپل معبودان بالکل مهٔ پریږدئ او مهٔ پریږدئ ود او سواع

وَلَا يَغُوثَ وَيَعُوقَ وَنَسْرًا ﴿٢٣﴾ وَقَدْ أَضَلُّوا كَثِيرًا ۖ وَلَا تَزِدِ

او نه یغوث | او یعوق | او نسر | او بیشکه | دوی بے لارے کړل | ډیر خلق | او ته مهٔ ډیروه

او نهٔ یغوث او یعوق او نسر۔ او دوی (ځان سره) ډیر خلق ګمراه کړل او تهٔ دَ دے

الظَّالِمِينَ إِلَّا ضَلَالًا ﴿٢٤﴾ مِّمَّا خَطِيئَاتِهِمْ أُغْرِقُوا فَأُدْخِلُوا نَارًا

ظالمانو خلقو ته | مګر ګمراهي | په وجه دَ جرمونو خپلو | غرق کړے شول دوی | بیا داخل کړے شول دوی | په اور کښې

ظالمانو ګمراهي نوره هم سوا کړه۔ نو دَ خپلو ګناهونو په سبب هغوی ډوب کړے شول نو اور ته ورسیدل

فَلَمْ يَجِدُوا لَهُم مِّن دُونِ اللَّهِ أَنصَارًا ﴿٢٥﴾ وَقَالَ نُوحٌ رَّبِّ

پس دوی بیا نهٔ موندو | ځان دَ پاره | سوا دَ الله نه | څوک مددګار | او وُوئیل | نوح ؑ | اے زما ربه!

نو دَ الله په مقابله کښې هیڅوک ئے مددګار وُنهٔ موندل۔ او نوح ؑ دا هم وویل چه اے زما ربه!

لَا تَذَرْ عَلَى الْأَرْضِ مِنَ الْكَافِرِينَ دَيَّارًا ﴿٢٦﴾ إِنَّكَ إِن تَذَرْهُمْ

مهٔ پریږده | په زمکه باندِ | له کافرانو نه | څوک اوسیدونکے | بیشکه تهٔ | که چرے پریږدے دوی

تهٔ دَ زمکے په مخ دَ کافرانو یو استوګن هم باقی پرے نهٔ ږدے۔ که دوی پریږدے نو ګیا به

يُضِلُّوا عِبَادَكَ وَلَا يَلِدُوا إِلَّا فَاجِرًا كَفَّارًا ﴿٢٧﴾ رَّبِّ

نو بے لارے به کړی | بندګان ستا | او وُبه نهٔ زیږوی | مګر | بدکاره | کافران | اے زما ربه!

وی ستا بندګان به ګمراه کوی او چه کوم زیږون کوی نو هغه به هم بد عمله کافر (اولاد) وی۔ اے زما ربه!

اغْفِرْ لِي وَلِوَالِدَيَّ وَلِمَن دَخَلَ بَيْتِيَ مُؤْمِنًا

وُبخښه | ما | او پلار او مور زما | او هغه څوک | چه داخل شی | زما په کور کښې | مؤمن

ما وُبخښه او زما پلار او مور وُبخښه، او څوک چه زما کور ته دَ مؤمن په حیث راننوتو

وَلِلْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَاتِ وَلَا تَزِدِ الظَّالِمِينَ إِلَّا تَبَارًا ﴿٢٨﴾

او مؤمنان سړی | او مؤمنانے ښځے | او مهٔ زیاتوه | ظالمانو دَ پاره | مګر | بربادی

او ټول مؤمنان او ټولے مؤمنانے وُبخښه! او دَ دے کافرانو خو تباهي نوره زیاته کړه۔

| سُوْرَةُ الْجِنِّ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ ثَمَانٌ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | وَّعِشْرُوْنَ اٰيَةً وَّفِيْهَا رُكُوْعَانِ |
|---|---|---|
| سوره جن په مکه کښې نازل شوې ده | (شروع) د الله په نامه چه ډېر مهربان ډېر زيات رحم کوونکے دے | په دې کښې ۲۸ آيتونه او ۲ رکوع دي |

د الله تعالیٰ په نامه شروع کوم چه ډېر مهربان د ډېر زيات رحم خاوند دے

قُلْ اُوْحِيَ اِلَيَّ اَنَّهُ اسْتَمَعَ نَفَرٌ مِّنَ الْجِنِّ فَقَالُوْٓا اِنَّا سَمِعْنَا

اُووايه | وحی راولېږلے شوه | زما طرف ته | چه دا واورېده | يو ډلے | له پېريانو نه | پس دوئی ووئيل | بېشکه مونږ واورېدو

(اے رسوله) ووايه! چه ما ته وحی راغلے ده چه د پېريانو يو ټولی قرآن واورېدو ، نو دوئ ووئيل چه مونږ عجيبه

قُرْاٰنًا عَجَبًا ۝١ يَّهْدِيْٓ اِلَى الرُّشْدِ فَاٰمَنَّا بِهٖ ۭ وَلَنْ نُّشْرِكَ

قرآن | عجيبه | چه هدايت کوی | سمے لارے طرف ته | پس ايمان راوړو مونږ | په دے | او هيڅکله به مونږ شريک مقرر نه کړو

قرآن واورېدو چه سمے لارے ته بلنه کوی ، نو ايمان مو پرے راوړو ۔ او مونږ به خپل رب سره

بِرَبِّنَآ اَحَدًا ۝٢ وَّاَنَّهٗ تَعٰلٰى جَدُّ رَبِّنَا مَا اتَّخَذَ صَاحِبَةً

د خپل رب سره | هيڅوک | او دا چه اوچت دے | شان | زمونږ د رب | نه دے نيولے ده | ښځه

(اوس) هيڅوک نه شريکوو ۔ او دا چه زمونږ د رب شان ډېر لوئے دے، هغه نه څوک ښځه کړے ده ۔

وَّلَا وَلَدًا ۝٣ وَّاَنَّهٗ كَانَ يَقُوْلُ سَفِيْهُنَا عَلَى اللّٰهِ شَطَطًا ۝٤

او نه اولاد | او دا چه | وئيل به | له مونږ نه بے وقوف | په الله باندے | دروغ

او نه (ئے) اولاد (شته)۔ او دا چه زمونږ کم عقلو به د الله تعالیٰ په حقله د حد نه زياتے خبرے کولے ۔

وَّاَنَّا ظَنَنَّآ اَنْ لَّنْ تَقُوْلَ الْاِنْسُ وَالْجِنُّ عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا ۝٥ وَّاَنَّهٗ

او مونږ گمان کړے وو | چه هيڅ کله به نه وائی | انسانان | او پېريان | په الله باندے | دروغ | او دا چه

او زمونږ خو دا خيال وو چه انسانان او پېريان به د الله تعالیٰ په حقله هيڅ دروغ نه جوړوی ،

كَانَ رِجَالٌ مِّنَ الْاِنْسِ يَعُوْذُوْنَ بِرِجَالٍ مِّنَ الْجِنِّ فَزَادُوْهُمْ

وو څه خلق | له بنيادمو نه | چه پناه به ئے غوښتله | په سړو | د پېريانو | نو هغوئ زيات کړے وه د دوئ

او دا چه به بنيادمو کښې ډېر کسان داسے هم تېر شوی دی چه هغوئ به د څنے سړو نه د پېريانو په ذريعه پناه غوښتله نو د هغوئ

رَهَقًا ۝٦ وَّاَنَّهُمْ ظَنُّوْا كَمَا ظَنَنْتُمْ اَنْ لَّنْ يَّبْعَثَ

سرکشی | او دا چه هغوئ هم | (داسے) خيال کولو | لکه چه | تاسو خيال کوئ | چه | هيڅ کله به دوباره نه راپاڅوی

غرور رئے نور هم زيات کړو، او د هغوئ هم دا گمان وو لکه چه تاسو گمان نه کوئ چه الله تعالیٰ به هيڅوک بيا نه راژوندے

اللّٰهُ اَحَدًا ۝٧ وَّاَنَّا لَمَسْنَا السَّمَآءَ فَوَجَدْنٰهَا مُلِئَتْ حَرَسًا شَدِيْدًا

الله | هيڅوک | او دا چه مونږ | لاس يوړو | آسمان ته | پس مونږ بيا موندلو دا | ډک شوے | په سختو څوکيدارانو

کوی ۔ او دا چه مونږ د آسمان تلاشی واخسته نو هغه مو ډېر ډک شوکئ او د شعلو نه ډک

وَّشُهُبًا ۝٨ وَّاَنَّا كُنَّا نَقْعُدُ مِنْهَا مَقَاعِدَ لِلسَّمْعِ ۭ فَمَنْ يَّسْتَمِعِ

او شعلو سره | او دا چه مونږ به | کښېناستلو | د دے | په ځايونو باندے | د پاره د آورېدلو | پس څوک چه | آوری

بيا موندلو ۔ او دا چه مونږ به د آسمان په څنے ځايونو د خبرو نو آورېدو د پاره کښېناستلو نو اوس چه څوک څه

الْآنَ يَجِدْ لَهُ شِهَابًا رَّصَدًا ﴿٩﴾ وَأَنَّا لَا نَدْرِي أَشَرٌّ أُرِيدَ

اوس | نو دے بیا مومی خپل ځان دپاره | یو شعله | تیاره کړے شوے | او دا چه | مونږ نه پوهیږو | آیا دخه بدئ | اراده شوے ده

آوریدل غواړی نو یوه شعله تیاره بیا مومی . او مونږ په دے نه پوهیږو چه د دے نه د زمکے استوګنو

بِمَن فِي الْأَرْضِ أَمْ أَرَادَ بِهِمْ رَبُّهُمْ رَشَدًا ﴿١٠﴾ وَأَنَّا مِنَّا

دهغه چا سره | چه په زمکه کښے دی | یا اراده کړے ده | دوئ سره | د دوئ رب | د هدایت | او دا چه له مونږ نه

ضرر رسول مراد دی که ئے د خپل رب ورته هدایت کول غواړی - او دا چه په مونږ کښے

الصَّالِحُونَ وَمِنَّا دُونَ ذَٰلِكَ ۖ كُنَّا طَرَائِقَ قِدَدًا ﴿١١﴾ وَأَنَّا

(څه) نیک خلق دی | او له مونږ نه | (څه) د دے نه علاوه دی | ؤو مونږ | په مختلفو طریقو باندے | او دا چه مونږ

نیکان هم تیر شوی دی او بل قسم خلق هم . (غرض دا چه) مونږ په مختلفو لارو چارو روان وو او مونږ په دے

ظَنَنَّا أَن لَّن نُّعْجِزَ اللَّهَ فِي الْأَرْضِ وَلَن نُّعْجِزَهُ هَرَبًا ﴿١٢﴾

ګمان کړے دے | چه مونږ به هیڅ کله عاجزه نه کړو | الله | په زمکه کښے | او مونږ به هیڅ کله عاجزه نه کړو دے | په تیښته

پوهه شوی یو چه مونږ د زمکے په مخ (هیڅ ځائے کښے) الله عاجزه کولے نه شو او نه تړے نه په تیښته خلاصیدے شو

وَأَنَّا لَمَّا سَمِعْنَا الْهُدَىٰ آمَنَّا بِهِ ۖ فَمَن يُؤْمِن بِرَبِّهِ

او بیشکه | هر کله چه | مونږ واؤریده و | هدایت | نو مونږ ایمان راوړو | په هغے | پس څوک چه | ایمان راوړی | په رب خپل

او دا چه مونږ د هدایت خبره واؤریده نو ایمان پرے راوړو - نو څوک چه په خپل رب ایمان راوړی

فَلَا يَخَافُ بَخْسًا وَلَا رَهَقًا ﴿١٣﴾ وَأَنَّا مِنَّا الْمُسْلِمُونَ وَمِنَّا

نو دے به نه ویریږی | له نقصان نه | او نه له ظلم نه | او بیشکه ځنے له مونږ نه | فرمانبردار دی | او ځنے له مونږ نه

نو هغه سره نه خو د نقصان ویره وی او نه د زیاتی . او په مونږ کښے ځنے مسلمانان دی ، او ځنے

الْقَاسِطُونَ ۖ فَمَنْ أَسْلَمَ فَأُولَٰئِكَ تَحَرَّوْا رَشَدًا ﴿١٤﴾ وَأَمَّا

ظالمان دی | نو څوک چه | فرمانبردار شول | نو دا سے خلق | بیا موندلے | نیغه لاره | او هغه چه

بے لارے دی ، نو چا چه اسلام قبول کړو نو هغوئ د نیکئ سمه لار راوو یسته . او څوک چه (د اسلام نه)

الْقَاسِطُونَ فَكَانُوا لِجَهَنَّمَ حَطَبًا ﴿١٥﴾ وَأَن لَّوِ اسْتَقَامُوا عَلَى الطَّرِيقَةِ

ظالمان دی | پس وی به دوئ | د پاره د دوزخ | خشاک | او دا چه | که چرے | دوئ قائم وسیږی | په نیغه لاره

بے لارے شو نو هغوئ د دوزخ خشاک شو ، او که داخلق په سمه لاره ولاړ پاتے وے

لَّأَسْقَيْنَاهُم مَّاءً غَدَقًا ﴿١٦﴾ لِّنَفْتِنَهُمْ فِيهِ ۚ وَمَن يُعْرِضْ عَن ذِكْرِ

(نو) خامخا به څښولے مونږ په دوئ | اوبه ډیرے | چه مونږ دوئ وآزمایو | په دے کښے | او څوک چه مخ واړوی | له ذکر نه

نو مونږ به په پریوانه اوبو خړوب کړی وو چه د دوئ آزمینت پرے وکړو او څوک چه د خپل رب د ذکر نه مخ

رَبِّهِ يَسْلُكْهُ عَذَابًا صَعَدًا ﴿١٧﴾ وَأَنَّ الْمَسَاجِدَ لِلَّهِ فَلَا تَدْعُوا

د رب خپل | هغه به دے داخل کړی | په عذاب | سخت کښے | او دا چه | جماتونه | الله د پاره دی | نو نا سومه بلئ

واړوی نو الله به ئے سخت عذاب ته ورننباسی او دا چه جماتونه خو هم د الله (د عبادت) د پاره دی نو الله سره د

مَعَ اللّٰهِ اَحَدًا ﴿۱۸﴾ وَّاَنَّهٗ لَمَّا قَامَ عَبْدُ اللّٰهِ يَدْعُوْهُ كَادُوْا

دَالله سره | بل څوک | اوداچه | هر کله ودریدو | بنده دَ الله | چه دے راوبلی | نو نزدے وه

بل هیڅوک بلنه مهٔ کوئ ۔ او دا چه دَالله تعالیٰ (خاص) بنده دَ هغهٔ عبادت ته ودریږی ، نو دا

يَكُوْنُوْنَ عَلَيْهِ لِبَدًا ﴿۱۹﴾ قُلْ اِنَّمَآ اَدْعُوْا رَبِّيْ وَلَآ اُشْرِكُ بِهٖٓ

چه دا (پیریان) شی | په دهٔ باندِ | راچمبر | ووایه | بیشکه | زهٔ رابلم | دِ رب خپل | او زهٔ شریک نهٔ مقرروم دَ دهٔ سره

(پیریان) پرے راچمبر شی ۔ تهٔ ووایه چه زهٔ خو بس دَ خپل رب عبادت کوم او هغهٔ سره زهٔ هیڅوک نهٔ

اَحَدًا ﴿۲۰﴾ قُلْ اِنِّيْ لَآ اَمْلِكُ لَكُمْ ضَرًّا وَّلَا رَشَدًا ﴿۲۱﴾

هیڅوک | ووایه | بیشکه زهٔ | اختیار نهٔ لرم | تاسو دَ پاره | دَ څهٔ نقصان | او نهٔ | دَ څهٔ بښیګړے ۔

شریکوم ۔ تهٔ ووایه چه زهٔ ستاسو په حقله نهٔ دَ ضرر اختیار لرم او نه دَ هدایت ۔

قُلْ اِنِّيْ لَنْ يُّجِيْرَنِيْ مِنَ اللّٰهِ اَحَدٌ ۙ وَّلَنْ اَجِدَ مِنْ دُوْنِهٖ

ووایه | بیشکه ما به | هیڅ کله بچ نهٔ کړے شی | دَ الله نه | هیڅوک | او هیڅ کله به زهٔ بیا نهٔ موم | بے له دهٔ نه

تهٔ ووایه چه ماله دَ الله تعالیٰ نه هیڅوک پناه راکولے نهٔ شی او نهٔ دَ هغهٔ نه سِوا بل څوک

مُلْتَحَدًا ﴿۲۲﴾ اِلَّا بَلٰغًا مِّنَ اللّٰهِ وَرِسٰلٰتِهٖ ؕ وَمَنْ يَّعْصِ اللّٰهَ

څهٔ دَ پناه ځائے | سوا دَ رسَولو (دَ حکم) | له طرفه دَ الله نه | او دَ دهٔ دَ پیغامونو | او څوک چه | نافرمانی وکړی | دَ الله

پشت پناه مونده شم ۔ البته زما کار دَ الله حکمونه او دَ دهٔ پیغامونه رسول دی او څوک چه دَ الله او دَ دهٔ دَ رسول

وَرَسُوْلَهٗ فَاِنَّ لَهٗ نَارَ جَهَنَّمَ خٰلِدِيْنَ فِيْهَآ اَبَدًا ﴿۲۳﴾ حَتّٰٓى

او دَ دهٔ دَ رسول | نو بیشکه دهٔ دَ پاره | اور دے | دَ دوزخ | همیشه به وی | په هغے کښے | تل ترتله | تر دے چه

نافرمانه شی ، نو هغهٔ له دَ دوزخ اور مقرر دے چه تل ترتله به پکښے اوسیږی ۔ تر دے چه

اِذَا رَاَوْا مَا يُوْعَدُوْنَ فَسَيَعْلَمُوْنَ مَنْ اَضْعَفُ

هر کله | هغه ووینی | هغه څهٔ | چه دَ دوئ سره ئے وعده کولے شی | نو دوئ به ډیر زر پوهه شی | چه دَ چا | کمزوری دی

هر کله هغوئ هغه (عذاب) ووینی دَ کوم چه ورسره وعده ده نو هغه وخت به هغوئ پوهه شی چه دَ چا مددګاران

نَاصِرًا وَّاَقَلُّ عَدَدًا ﴿۲۴﴾ قُلْ اِنْ اَدْرِيْٓ اَقَرِيْبٌ مَّا تُوْعَدُوْنَ

مددګاران | او کم دی | په شمېر کښے ؟ | ووایه | زهٔ نهٔ پوهیږم | چه آیا نزدے دے | هغه څیز | چه تاسو سره ئے وعده کوے شی

کمزوری دی او دَ چا شمیره کمه ده ؟ تهٔ ووایه چه ماته معلومه نهٔ ده چه تاسو سره دَ کوم څیز لوظ کیږی

اَمْ يَجْعَلُ لَهٗ رَبِّيْٓ اَمَدًا ﴿۲۵﴾ عٰلِمُ الْغَيْبِ فَلَا يُظْهِرُ

یا | مقرر به کړی | دے دَ پاره | زما رب | یوه زمانه لرے | هغه پوهه دے | په غیبو | پس هغه نهٔ خبروی

هغه نزدے راغلے دے یا زما رب هغے له اوږد میعاد ایښے دے ، هغه په غیبو خبر دے پس هغه په غیبو

عَلٰى غَيْبِهٖٓ اَحَدًا ﴿۲۶﴾ اِلَّا مَنِ ارْتَضٰى مِنْ رَّسُوْلٍ فَاِنَّهٗ يَسْلُكُ

په غیبو باندِ | هیڅوک | مګر | هغه څوک | چه غوره ئے کړی (الله) | له رسولانو نه | نو بیشکه هغه | روانوی

هیڅوک نهٔ خبروی ۔ هو! چه یو غوره پیغمبر ته (دَ غیبو خبر ورکول غواړی) نو دَ هغهٔ وړاندِ

مِنۡۢ بَيۡنِ يَدَيۡهِ وَمِنۡ خَلۡفِهٖ رَصَدًا ﴿٢٧﴾ لِّيَعۡلَمَ اَنۡ قَدۡ اَبۡلَغُوۡا رِسٰلٰتِ

وړاندې له هغهٔ نه | او وروستو له هغهٔ نه | محافظ (فرښتې) | چه دې معلوم کړي | چه دوئ رسولي دي | پيغامونه

وروستو محافظان راولېږي ، چه هغهٔ ته ښکاره شي چه هغوئ دَ خپل رب پيغامونه

رَبِّهِمۡ وَاَحَاطَ بِمَا لَدَيۡهِمۡ وَاَحۡصٰى كُلَّ شَىۡءٍ عَدَدًا ﴿٢٨﴾

دَ رب خپل | او دهٔ احاطه کړې ده | دَ هغه څهٔ | چه دوئ سره دي | او دهٔ شمېرلې دې | هر څيز | په شمېر

وُ رَسول او الله تعالىٰ دَ هغوئ دَ ټولو معاملو په علم سره احاطه کړې ده او هغهٔ هر څيز شمېرلې دې .

ع ٢ / ٩ / ١٢

سُوۡرَةُ الۡمُزَّمِّلِ مَكِّيَّةٌ وَّهِىَ ٧٣ | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | عِشۡرُوۡنَ اٰيَةً وَّفِيۡهَا رُكُوۡعَانِ

سورهٔ مزمل په مکه کښې نازل شو | (شروع) دَ الله په نامه چه لوئے مهربان ډېر زيات رحم کوونکے دے | او په دے کښې ٢٠ آيتونه او ٢ رکوع دي

دَ الله په نامه شروع چه لوئے مهربان دَ ډېر زيات رحم خاوند دے ،

يٰۤاَيُّهَا الۡمُزَّمِّلُ ﴿١﴾ قُمِ الَّيۡلَ اِلَّا قَلِيۡلًا ﴿٢﴾ نِّصۡفَهٗۤ اَوِ انۡقُصۡ مِنۡهُ

اے په جامو کښې ځان رانغښتونکيه ! | قيام کوه | دَ شپې | مګر | لږ | دَ دے نيمه | يا کمه کړه | له دے نه

اے چه ځان دِ په جامه کښې نغښتے دے ، دَ شپې (په مانځهٔ کښې) ودرېږه سوا دَ لږ شپې نه . يعنې نيمه شپه يا دَ دے نه (هم) څهٔ کمه

قَلِيۡلًا ﴿٣﴾ اَوۡ زِدۡ عَلَيۡهِ وَرَتِّلِ الۡقُرۡاٰنَ تَرۡتِيۡلًا ﴿٤﴾ اِنَّا سَنُلۡقِىۡ عَلَيۡكَ

لږه (حصه) | يا زيات کړه | په دے باندِ | او لوله | قرآن | ښهٔ صفا صفا | بېشکه مونږ به | را اچوو | په تا باندِ

(ودرېږه) يا څهٔ لږ پرے سوا کړه ، او قرآن ښهٔ صفا صفا لوله ، مونږ په تا باندِ يو درون کلام

قَوۡلًا ثَقِيۡلًا ﴿٥﴾ اِنَّ نَاشِئَةَ الَّيۡلِ هِىَ اَشَدُّ وَطۡاً وَّاَقۡوَمُ

کلام | ډېر درون | بېشکه | راويښېدل | دَ شپې | دا | ډېر زيات | پامال کوونکے دَ (نفس) لره | او زيات درسته دي

را اچوو . بېشکه دَ شپې راپاڅېدل (نفس) په سختئ سره پامال کوي او کومه خبره چه دَ خلې نه وُځي

قِيۡلًا ﴿٦﴾ اِنَّ لَكَ فِى النَّهَارِ سَبۡحًا طَوِيۡلًا ﴿٧﴾ وَاذۡكُرِ اسۡمَ رَبِّكَ

(په دې کښې) خبره | بېشکه | ستا خو | په ورځ کښې | مشغولتيا ده | ډېره | او ياده کړه | نامه | دَ خپل رب

دُرسته وُځي ، بېشکه چه ستا خو دَ ورځے هم ډېره مشغولتيا ده . او ته دَ خپل رب دَ نامے ذکر کوه .

وَتَبَتَّلۡ اِلَيۡهِ تَبۡتِيۡلًا ﴿٨﴾ رَبُّ الۡمَشۡرِقِ وَالۡمَغۡرِبِ لَاۤ اِلٰهَ

او راجدا شه | دَ دهٔ طرف ته | په راجدا کېدلو سره | دَ رب دے | دَ مشرق | او دَ مغرب | بل معبود نشته

او ټول پرېږده (ټولو نه جدا شه) هم دهٔ ته توجه وکړه . دے دَ مشرق او دَ مغرب رب دے ، بے له دهٔ نه بل معبود

اِلَّا هُوَ فَاتَّخِذۡهُ وَكِيۡلًا ﴿٩﴾ وَاصۡبِرۡ عَلٰى مَا يَقُوۡلُوۡنَ وَاهۡجُرۡهُمۡ هَجۡرًا

مګر هم دے دے | پس ونيسه دے | کارساز | او صبر کوه | په هغه څهٔ | چه دوی ئے وائي | او پرېږده دوئ | په پرېښودو

نشته نو هم دے خپل کارساز کړه . او دَ دوئ په وينا باندِ صبر کوه او په ښکلے (مناسبه) طريقه ترے

جَمِيۡلًا ﴿١٠﴾ وَذَرۡنِىۡ وَالۡمُكَذِّبِيۡنَ اُولِى النَّعۡمَةِ وَمَهِّلۡهُمۡ قَلِيۡلًا ﴿١١﴾ اِنَّ

ښهٔ سره | او پرېږده ما | او دروغ ګڼړونکي | خاوندان دَ نعمت | او مهلت ورکړه دوئ ته | لږ | بېشکه

ته جدا شه ، او ما پرېږده او دا دروغ ګڼړونکي دَ نعمتونو خاوندان پرېږده او دوئ ته لږ مهلت ورکړه . بېشکه

لَدَيْنَآ اَنْكَالًا وَّجَحِيْمًا ﴿١٢﴾ وَّطَعَامًا ذَا غُصَّةٍ وَّعَذَابًا اَلِيْمًا ﴿١٣﴾

موږ سره دی | بیړئ | او بلیږ ونکے اور | او طعام | په مرئ کښے انښتونکے | او عذاب | دردناک

موږ سره خو بس زولنے او دوزخ دے. او په مرئ کښے انښتونکے خوراک دے او دردناک عذاب دے.

يَوْمَ تَرْجُفُ الْاَرْضُ وَالْجِبَالُ وَكَانَتِ الْجِبَالُ كَثِيْبًا مَّهِيْلًا ﴿١٤﴾

په هغه ورځ | چه وُجړقیږی | زمکه | او غرونه | او شی | غرونه | ډیری د ریګ | روان

دا په هغه ورځ چه زمکه او غرونه به وُجړقیږی او غرونه به د ریګ په شان الوزی.

اِنَّآ اَرْسَلْنَآ اِلَيْكُمْ رَسُوْلًا ۙ شَاهِدًا عَلَيْكُمْ كَمَآ اَرْسَلْنَآ

بیشکه موږ رالیږلے دے | ستاسو طرف ته | یو رسول | ګواهي ورکوونکے | په تاسو باندې | لکه چه | موږ لیږلے وو

موږ تاسو ته یو رسول راوُلیږلو، په تاسو مو ګواه کړو، لکه چه فرعون ته مو یو

اِلٰى فِرْعَوْنَ رَسُوْلًا ﴿١٥﴾ فَعَصٰى فِرْعَوْنُ الرَّسُوْلَ فَاَخَذْنٰهُ اَخْذًا

د فرعون طرف ته | یو رسول | پس نافرماني وکړه | فرعون | د هغه پیغمبر | نو موږ ونیولو دے | په نیولو

رسول لیږلے وو، نو فرعون د هغے رسول نافرماني وُکړه، نو موږ ډیر کلک

وَّبِيْلًا ﴿١٦﴾ فَكَيْفَ تَتَّقُوْنَ اِنْ كَفَرْتُمْ يَوْمًا يَّجْعَلُ الْوِلْدَانَ

سخت سره | پس څنګه به | تاسو بچ کیږئ | که چرے | تاسو هم انکار وکړو | د هغے ورځے | چه کړی به | هلکان

راوُنیولو، نو تاسو به د هغے ورځے (د مصیبت) نه څنګه ځان بچ کوئ چه بچی به (د ویرے نه) بوډا کات

شِيْبًا ﴿١٧﴾ السَّمَآءُ مُنْفَطِرٌ بِهٖ ؕ كَانَ وَعْدُهٗ مَفْعُوْلًا ﴿١٨﴾ اِنَّ هٰذِهٖ

زاړه | آسمان به | وُچوی په دے سره | ده | وعده د ده | پوره کیدونکے | بیشکه | دا

کړی، او آسمان به پرے راوُشلیږی، د الله وعده به ضرور پوره کیږی، دا (قرآن) یو

تَذْكِرَةٌ ۚ فَمَنْ شَآءَ اتَّخَذَ اِلٰى رَبِّهٖ سَبِيْلًا ﴿١٩﴾ اِنَّ رَبَّكَ يَعْلَمُ

نصیحت دے | پس څوک چه | غواړی | جوړه د کړی | خپل رب طرف ته | لاره | بیشکه ستا رب | پوهیږی

نصیحت دے. نو چه د چا زړه غواړی د خپل رب لاره د اختیار کړی، ستا رب ته ښه معلومه

اَنَّكَ تَقُوْمُ اَدْنٰى مِنْ ثُلُثَيِ الَّيْلِ وَنِصْفَهٗ وَثُلُثَهٗ وَطَآئِفَةٌ

په دے چه ته پاڅے | نزدے | دوو نه د دریو حصو | د شپے | او نیمه شپه | او دریمه حصه | او یوه ډله

ده چه ته او ستا ځنے ملګری د شپے په دریو کښے نږدے دوه برخو او کله ترنیمے شپے او کله تر

مِّنَ الَّذِيْنَ مَعَكَ ؕ وَاللّٰهُ يُقَدِّرُ الَّيْلَ وَالنَّهَارَ ؕ عَلِمَ اَنْ

له هغے کسانو نه | چه تاسره دی | او الله | اندازه کوی | د شپے | او د ورځے | پوهیږی الله چه

دریمے برخے ولاړ یئ. او د شپے ورځے سمه اندازه یوازے الله کوی، هغه ته معلومه ده چه

لَّنْ تُحْصُوْهُ فَتَابَ عَلَيْكُمْ فَاقْرَءُوْا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْاٰنِ ؕ عَلِمَ

هرګز د اکار تاسو ترسره کولے نه شئ | نو د ده رحم وکړو | په تاسو | پس لولئ | هغه څه | چه آسان وی | له قرآن نه | پوهه دے

تاسو دا کار ترسره کولے نه شئ نو توجه ئے درته وکړه نو چه څومره قرآن په آسانه لوستے شئ هومره لولئ، هغه ته دا م

أَنْ سَيَكُونُ مِنْكُمْ مَرْضَىٰ ۙ وَآخَرُونَ يَضْرِبُونَ فِي الْأَرْضِ

په دے چه وی به | ځنې له تاسو نه | بیماران | او څۀ نور خلق هم | چه سفر به کوی | په زمکه کښے

معلومه ده چه څوک به درکښے ناجوړه وی او څوک به په زمکه کښے په سفر وتلی وی چه دَ الله تعالیٰ

يَبْتَغُونَ مِنْ فَضْلِ اللَّهِ ۙ وَآخَرُونَ يُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِ

لټوی به | فضل | دَ الله | او څۀ نور خلق | چه جنګ به کوی | په لاره کښے

فضل (روزی) به لټوی ـ او ځنے خلق به دَ الله تعالیٰ په لاره کښے جهاد

اللَّهِ ۖ فَاقْرَءُوا مَا تَيَسَّرَ مِنْهُ ۚ وَأَقِيمُوا الصَّلَاةَ وَآتُوا الزَّكَاةَ

دَ الله | پس لولئ | هغه څۀ | چه آسان وی | له دے نه | او قائم لرئ | مونځ | او اداکوئ | زکوٰة

کوی، نو تاسو چه څومره قرآن په آسانئ لوستلے شئ هومره لولئ ، او دَ مونځ پابندی کوئ ، او زکوٰة ورکوئ

وَأَقْرِضُوا اللَّهَ قَرْضًا حَسَنًا ۚ وَمَا تُقَدِّمُوا لِأَنْفُسِكُمْ مِنْ خَيْرٍ

او قرض ورکوئ | الله ته | قرض | ښـه | او څۀ چه | تاسو وړاندِ لیږئ | دَ خپلو ځانونو دَ پاره | له نیکئ نه

او دَ الله تعالیٰ په لاره کښے په خوشحالئ خرڅ کوئ او هر څۀ نیکی چه مو دَ ځان نه وړاندِ وَلیږله

تَجِدُوهُ عِنْدَ اللَّهِ هُوَ خَيْرًا وَأَعْظَمَ أَجْرًا ۚ وَاسْتَغْفِرُوا اللَّهَ ۖ

نو بیا به مومئ هغه | دَ الله سره | هم هغه | غوره | او ډیر لوئے دے | په اجر کښے | او بخښنه غواړئ | دَ الله نه

نو الله تعالیٰ ته دَ رسیدو سره به ئے دَ هغے نه ښه او په اجر کښے زیاته بیا مومئ، او دَ الله تعالیٰ نه بخښنه غواړئ

إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَحِيمٌ ﴿٢٠﴾

بیشکه | الله | بخښونکے | مهربان دے

یقینًا الله تعالیٰ ډیر بخښونکے رحم کوونکے دے

سُورَةُ الْمُدَّثِّرِ مَكِّيَّةٌ وَهِيَ سِتٌّ | بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ | وَخَمْسُونَ آيَةً وَفِيهَا رُكُوعَانِ

سورة مدثر په مکه کښے نازل شوه | (شروع) دَ الله په نامه چه لوئے مهربان ډیر زیات رحم کوونکے دے | په دے کښے ۵۶ آیتونه او دوه رکوع دی

دَ الله په نامه شروع چه لوئے مهربان دَ ډیر زیات رحم خاوند دے

يَا أَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ ﴿١﴾ قُمْ فَأَنْذِرْ ﴿٢﴾ وَرَبَّكَ فَكَبِّرْ ﴿٣﴾ وَثِيَابَكَ فَطَهِّرْ ﴿٤﴾

اے په جامه کښے ځان رانغښتونکیه! | پاڅه | پس اویروه | او دَ رب خپل | لوئی بیان کړه | او جامے خپلے | پاکے کړه ـ

اے چه ځان دِ په جامه کښے رانغښتے دے پاڅه او خلق اویروه او دَ خپل رب لوئی بیان کړه او خپلے جامے پاکے ساته ـ

وَالرُّجْزَ فَاهْجُرْ ﴿٥﴾ وَلَا تَمْنُنْ تَسْتَكْثِرُ ﴿٦﴾ وَلِرَبِّكَ فَاصْبِرْ ﴿٧﴾

او پلیتئ نه | جدا وُسیږه | او احسان مۀ کوه | چه زیات پرے غواړے | او دَ خپل رب دَ پاره | صبر کوه ـ

او دَ کند کئ نه لرے وُسیږه او دا سے احسان مۀ کوه چه زیات عوض پرے غواړے او دَ خپل رب (په رضا) صابره وُسیږه

فَإِذَا نُقِرَ فِي النَّاقُورِ ﴿٨﴾ فَذَٰلِكَ يَوْمَئِذٍ يَوْمٌ عَسِيرٌ ﴿٩﴾ عَلَى الْكَافِرِينَ

بیا هر کله چه | پوک وُوهلے شی | په شپیلئ کښے | نو هغه به | په دغه ورځ | ورځ وی | ډیره سخته | په کافرانو باندِ

نو څۀ وخت چه شپیلئ پوک وهلے شی ، نو دغه ورځ به په کافرانو باندِ سخته ورځ وی

غَیْرُ یَسِیْرٍ ﴿۱۰﴾ ذَرْنِیْ وَمَنْ خَلَقْتُ وَحِیْدًا ﴿۱۱﴾ وَّجَعَلْتُ لَهٗ مَالًا

به هغه آسانه نهٔ وی | ما پرېږده | او هغه څوک چې پیدا کړو ما | یوازې | او جوړ کړو ما | هغهٔ د پاره | مال

آسانه به نهٔ وی ، ما پرېږده او هغه څوک چې یوازې مې پیدا کړو ، او هغهٔ له مې ډېر مال

مَّمْدُوْدًا ﴿۱۲﴾ وَّبَنِیْنَ شُهُوْدًا ﴿۱۳﴾ وَّمَهَّدْتُّ لَهٗ تَمْهِیْدًا ﴿۱۴﴾ ثُمَّ یَطْمَعُ

ډېر | او ځامن | حاضر | او تیار کړو ما | هغهٔ د پاره | هر رنګه سامان | بیا هغه طمع کوی

ورکړو او ورسره په خوا کښې ناست ځامن مې ورکړل او د دُنیا ټول سامانونه مې ورته ورکړل ، بیا هغه طمع کوی

اَنْ اَزِیْدَ ﴿۱۵﴾ كَلَّا ؕ اِنَّهٗ كَانَ لِاٰیٰتِنَا عَنِیْدًا ﴿۱۶﴾ ؕ سَاُرْهِقُهٗ

چې زیات ورکړم | هرګز نه | بیشکه هغه دے | زمونږ د آیتونو | سخت مخالف | ډېر زر به زهٔ وُ خېژوم دے

چې دهٔ ته نور زیات ورکړم ، هیڅکله نه ، دے خو زمونږ د آیتونو مخالف دے ، اوس به ئې زهٔ د دوزخ (د اور) غرته

صَعُوْدًا ﴿۱۷﴾ ؕ اِنَّهٗ فَكَّرَ وَقَدَّرَ ﴿۱۸﴾ فَقُتِلَ كَیْفَ قَدَّرَ ﴿۱۹﴾ ثُمَّ قُتِلَ

د دوزخ په غرهٔ باندې | بیشکه دهٔ فکر وکړو | او اندازه ئې ولګوله | نو برباد دِ شی | چې څنګه اندازه ئې ولګوله | بیا دِ تباه شی

په زور وُ خېژوم . هغهٔ فکر وکړو نو بیا ئې تجویز وکړو ، نو برباد دِ شی چې څنګه (خراب) تجویز ئې وکړو ، بیا دِ تباه شی

كَیْفَ قَدَّرَ ﴿۲۰﴾ ثُمَّ نَظَرَ ﴿۲۱﴾ ثُمَّ عَبَسَ وَبَسَرَ ﴿۲۲﴾ ثُمَّ اَدْبَرَ وَاسْتَكْبَرَ ﴿۲۳﴾

چې څنګه اندازه ئې ولګوله | بیا ئې وکتل | بیا ئې تندے تریو کړو | او خُلهٔ ئې ورانه کړه | بیا دهٔ شا کړه | او لوئی ئې وکړه

چې څنګه (ناکاره) تجویز ئې وکړو ، بیا ئې غور وکړو ، بیا ئې تندے تریو کړو او خُلهٔ ئې ورانه کړه . بیا ئې مخ واړولو او ځان ئې غټ وګڼلو

فَقَالَ اِنْ هٰذَاۤ اِلَّا سِحْرٌ یُّؤْثَرُ ﴿۲۴﴾ اِنْ هٰذَاۤ اِلَّا قَوْلُ الْبَشَرِ ﴿۲۵﴾ ؕ

بیا دهٔ و وئیل | نهٔ دے دا (قرآن) | مګر جادو | چې روایت کړے شوے دے | نهٔ دے دا (قرآن) | مګر کلام دے | د انسان

نو دا ئې و وئیل چې دا (قرآن) خو (د پخوانه) راغلے جادو دے . دا خو تش د بنیادم کلام دے .

سَاُصْلِیْهِ سَقَرَ ﴿۲۶﴾ وَمَاۤ اَدْرٰىكَ مَا سَقَرُ ﴿۲۷﴾ ؕ لَا تُبْقِیْ وَلَا تَذَرُ ﴿۲۸﴾ ج

ډېر زر به زهٔ داخل کړم دے | دوزخ ته | او ته څهٔ خبر یې | چې دوزخ څهٔ دے ؟ | باقی به نهٔ پرېږدی | او نه به ئې پرېږدی

زهٔ به ئې زر دوزخ ته ورننباسم او ته څهٔ خبر یې چې دوزخ څهٔ شیز دے ؟ نهٔ به ئې روغ پرېږدی او نهٔ به ئې خلاصوی

لَوَّاحَةٌ لِّلْبَشَرِ ﴿۲۹﴾ صلے ج عَلَیْهَا تِسْعَةَ عَشَرَ ﴿۳۰﴾ ؕ وَمَا جَعَلْنَاۤ اَصْحٰبَ النَّارِ

سوزونکے دے | د انسان | په دے (دوزخ مقرر دی) | نولس[19] (فرښتے) | او نهٔ دی جوړ کړی مونږ | د دوزخ محافظان

بشر به (ورله) ورانے کړی په هغے به نولس[19] فرښتے مقرر وی او مونږ خو بل څوک نه ، بلکه فرښتے په

اِلَّا مَلٰٓىِٕكَةً ۙ وَّمَا جَعَلْنَا عِدَّتَهُمْ اِلَّا فِتْنَةً لِّلَّذِیْنَ كَفَرُوْا ۙ لِیَسْتَیْقِنَ

مګر | فرښتے | او نهٔ دے ګرځولے مونږ | شمیر د دوئ | مګر ازمېښت | هغه کسانو د پاره | چې کافر دی | چې یقین وکړی

دوزخ وُدرولے دی ، او د هغوئ دا شمېره مو د کافرانو په حقله تش د ازمېښت په غرض ایښے ده چې نتیجه به ئې دا

الَّذِیْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ وَیَزْدَادَ الَّذِیْنَ اٰمَنُوْۤا اِیْمَانًا وَّلَا یَرْتَابَ

هغه کسان | چې ورکړے شوے دے | کتاب | او چې زیات شی | مؤمنان | په ایمان کښې | او چې شک ونهٔ کړی

شی چې کتابیان خو په پوره یقین وکړی ، او د ایماندارو په پوره ایمان زیات شی او کتابیان او

الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ وَالْمُؤْمِنُوْنَ ۙ وَلِيَقُوْلَ الَّذِيْنَ فِيْ قُلُوْبِهِمْ

هغه خلق چه | ورکړے شو | کتاب | او مؤمنان | او چه ووائی | هغه خلق چه | په زړونو دَ دوی کے

مؤمنان به پکښے (هیڅ) شک شبهه نهٔ کوی اونتیجه به ئے دا شی چه دَ چا په زړونو کښے چه مرض پروت

مَّرَضٌ وَّالْكٰفِرُوْنَ مَاذَآ اَرَادَ اللّٰهُ بِهٰذَا مَثَلًا ؕ كَذٰلِكَ يُضِلُّ اللّٰهُ

مرض دے | او کافران | چه دَ څهٔ څیز | اراده کړے ده | الله | په دے | مثال سره | دغه شان | گمراه کوی الله

دے هغه کسان او کافران به دا وائی چه اخر دَ دے بیان نه دَ الله غرض څهٔ کیدے شی ۔ دغسے الله چه دَ چا په حقله

مَنْ يَّشَآءُ وَيَهْدِيْ مَنْ يَّشَآءُ ؕ وَمَا يَعْلَمُ جُنُوْدَ رَبِّكَ اِلَّا هُوَ ؕ

هغه څوک چه غواړی | او لاره ښائی | هغه چانه چه غواړی | او هیڅوک نهٔ پیژنی | لښکرے | ستا دَ رب | بِسوا له ده نه

وُغواړی نو هغه گمراه کړی او دَ چا په حقله چه وغواړی نو هدایت ورته وکړی او ستا دَ رب لښکرے خو بس یوازے هغهٔ ته معلومے دی

وَمَا هِيَ اِلَّا ذِكْرٰى لِلْبَشَرِ ﴿٣١﴾ كَلَّا وَالْقَمَرِ ﴿٣٢﴾ وَالَّيْلِ اِذْ اَدْبَرَ ﴿٣٣﴾

او نهٔ دی دا (خبرے) | مگر | نصیحت | دَ انسان دَ پاره | هرگز نه | قسم دے په سپوږمئ | او په شپه | هر کله چه | واپس راوگرځی

او دا (دَ دوزخ) بیان خو دَ خلقو دَ پاره یو نصیحت قدر رالږدے ، هَن ! قسم دے په سپوږمئ او په شپه چه په تیریدو شی

وَالصُّبْحِ اِذَآ اَسْفَرَ ﴿٣٤﴾ اِنَّهَا لَاِحْدَى الْكُبَرِ ﴿٣٥﴾ نَذِيْرًا لِّلْبَشَرِ ﴿٣٦﴾

او په صبا | هر کله چه | روښانه شی | بیشکه دا (دوزخ) | په لویو مصیبتونو کښے یو دے | ویرونکے دے | دَ انسان

او په صبا چه روښانه شی ، چه دغه (دوزخ) یو د پیر لوئے مصیبت دے دَ خلقو دَ پاره ویرونکے دے .

لِمَنْ شَآءَ مِنْكُمْ اَنْ يَّتَقَدَّمَ اَوْ يَتَاَخَّرَ ﴿٣٧﴾ كُلُّ نَفْسٍ بِمَا كَسَبَتْ

دَ پاره دَ هغه چا چه غواړی | له تاسو نه | چه هغه راوړاندے شی | یا وروستو پاتے شی | هر یو کس | په بدل له دَ خپلو عملونو کښے

یعنی په تاسو کښے هغه چا له چه (په نیکئ کښے) وړاندے کیدل او وروستو پاتے کیدل غواړی ، هر بنده به په خپل عمل کښے کانړه

رَهِيْنَةٌ ﴿٣٨﴾ اِلَّآ اَصْحٰبَ الْيَمِيْنِ ﴿٣٩﴾ فِيْ جَنّٰتٍ ۛ يَتَسَآءَلُوْنَ ﴿٤٠﴾

گانړه دے | مگر | دَ ښی طرف والا (نیکان خلق) | په باغونو کښے (به وی) | دوئی به تپوس کوی

پروت وی خو دَ ښی اړخ خاوندان نهٔ هغوئی به په باغونو کښے وی تپوس به کوی

عَنِ الْمُجْرِمِيْنَ ﴿٤١﴾ مَا سَلَكَكُمْ فِيْ سَقَرَ ﴿٤٢﴾ قَالُوْا لَمْ نَكُ

له گناهگارانو نه | چه څهٔ څیز راننوے یستلی یئ تاسو | په دوزخ کښے | دوئی به وائی | چه مونږ نهٔ وو

له مجرمانو نه چه تاسو کومے خبرے دوزخ ته راورسولئ هغوئی به وائی چه مونږ مونځ گزار

مِنَ الْمُصَلِّيْنَ ﴿٤٣﴾ وَلَمْ نَكُ نُطْعِمُ الْمِسْكِيْنَ ﴿٤٤﴾ وَكُنَّا نَخُوْضُ

له مونځ گزارو نه | او نهٔ وو مونږ | چه طعام مو ورکولے | مسکینانو ته | او مونږ په فضول کارونو کښے مشغول وو

نهٔ وو ، او مسکینانو له به مونږ خوراک نهٔ ورکولو او دَ شغل خاوندانو سره به مونږ

مَعَ الْخَآئِضِيْنَ ﴿٤٥﴾ وَكُنَّا نُكَذِّبُ بِيَوْمِ الدِّيْنِ ﴿٤٦﴾ حَتّٰىٓ اَتٰىنَا

مشغولو کسانو سره | او مونږ به دروغ گڼړله | ورځ | دَ جزا | تر دے چه | راغے مونږ ته

هم په (قسم قسم) شغلونو کښے پرانه وُو ۔ او دَ قیامت ورځ مو دروغ گڼړله ۔ تر دے چه مرګ

الْيَقِينُ ﴿٤٧﴾ فَمَا تَنفَعُهُمْ شَفَاعَةُ الشَّافِعِينَ ﴿٤٨﴾ فَمَا لَهُمْ عَنِ التَّذْكِرَةِ
يقين | پس فائده به ورنه کړي دوئي ته | سفارش | دَ سفارش کوونکو | پس په دوئی څۀ شوی دی چه | له نصیحت نه
را بانډې راغے نو داسے خلقوته به دَ سفارشیانو سفارش هیڅ فائده ورنه کړی، نو په دوئی څۀ شوی دی چه له نصیحت

مُعْرِضِينَ ﴿٤٩﴾ كَأَنَّهُمْ حُمُرٌ مُّسْتَنفِرَةٌ ﴿٥٠﴾ فَرَّتْ مِن قَسْوَرَةٍ ﴿٥١﴾ بَلْ يُرِيدُ
دوئی مخ اړوی | لکه چه دوئی | خرۀ دی | تښتېدونکی | چه تښتېدلی وی | له زمری نه | بلکه غواړی
نه مخ اړوی؟ لکه چه دوئی (وحشی) خرۀ دی چه دَ زمری نه تښتی۔ خبره داده چه په دوئی

كُلُّ امْرِئٍ مِّنْهُمْ أَن يُؤْتَىٰ صُحُفًا مُّنَشَّرَةً ﴿٥٢﴾ كَلَّا ۖ بَلْ لَّا يَخَافُونَ
هر یو کس | له دوئی نه | چه ورکړے شی دۀ ته | صحیفے | پرانستلے شوے | هرګز نه! | بلکه | دوئی نۀ ویرېږی
کښے هر کس دا غواړی چه هغۀ له دِ پرانستلے صحیفے ورکړے شی، دا نۀ شی کیدے حقیقت دادے چه دوئی

الْآخِرَةَ ﴿٥٣﴾ كَلَّا إِنَّهُ تَذْكِرَةٌ ﴿٥٤﴾ فَمَن شَاءَ ذَكَرَهُ ﴿٥٥﴾ وَمَا يَذْكُرُونَ
له آخرت نه | هرګز نه | بیشکه دا | یو نصیحت دے | پس څوک چه | غواړی | نو یاد دِ کړی دا | او دوئی نۀ یادوی (قرآن)
دَ آخرت نه نۀ ویرېږی، البته دا (قرآن) خو یو نصیحت دے بیا څوک چه غواړی له دِ (کتاب) نه نصیحت واخلی او نصیحت خو به

إِلَّا أَن يَشَاءَ اللَّهُ ۚ هُوَ أَهْلُ التَّقْوَىٰ وَأَهْلُ الْمَغْفِرَةِ ﴿٥٦﴾
مګر | دا چه | وُغواړی | الله | هم دے | لائق دے (دَدے) | چه له دۀ نه دِ (خلق) او ویرېږی | او (دَدے) لائق دے چه له دۀ نه معافی غوښتی
دوئی په هغه حال کښے حاصلوی چه الله غواړی، هم هغه دے چه ترے نه ویره پکار ده او هم هغه دَ بخښنے خاوند دے۔

سُورَةُ الْقِيٰمَةِ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ | بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ | أَرْبَعُونَ آيَةً وَّفِيهَا رُكُوعَانِ
سورۃ قیامت په مکه کښے نازل شوی او | (شروع) دَ الله په نامه چه لوئے مهربان ډیر زیات رحم کوونکے دے | په دے کښے ۴۰ آیتونه دی او ۲ رکوع دی
دَ الله په نامه شروع چه لوئے مهربان دَ ډیر زیات رحم خاوند دے

لَا أُقْسِمُ بِيَوْمِ الْقِيَامَةِ ﴿١﴾ وَلَا أُقْسِمُ بِالنَّفْسِ اللَّوَّامَةِ ﴿٢﴾ أَيَحْسَبُ
زۀ قسم خورم | په ورځ | دَ قیامت | او زۀ قسم خورم | په نفس | ملامت کوونکی | آیا ګمان کوی
زۀ دَ قیامت په ورځ قسم خورم، او زۀ قسم خورم په هغه نفس چه په بدئ ملامته کوی، آیا انسان دا خیال کوی

الْإِنسَانُ أَلَّن نَّجْمَعَ عِظَامَهُ ﴿٣﴾ بَلَىٰ قَادِرِينَ عَلَىٰ أَن نُّسَوِّيَ
انسان | چه مونږ به هیڅ کله نه جمع کوُو | هډوکی دَ دۀ | ولے نه | مونږ (خو) قادر یُو | په دے چه | برابر به کړو مونږ
چه مونږ به دَ هغۀ هډوکی نۀ را جمع کوُو، ضرور به ئے را غونډ وُو مونږ خو په دے قادر یُو چه دَ هغۀ دَ ګوتو سرونه

بَنَانَهُ ﴿٤﴾ بَلْ يُرِيدُ الْإِنسَانُ لِيَفْجُرَ أَمَامَهُ ﴿٥﴾ يَسْأَلُ أَيَّانَ يَوْمُ
دَ ګوتو سرونه دَ دۀ | بلکه | غواړی | انسان | چه بد عملی وکړی | آئنده هم | دے پوښتنه کوی | چه کله به وی | ورځ
هم برابر کړو خبره داده چه انسان خو دا غواړی چه آئنده دِ هم بد عملی کوی، دے دا پوښتنه کوی چه دَ قیامت ورځ

الْقِيَامَةِ ﴿٦﴾ فَإِذَا بَرِقَ الْبَصَرُ ﴿٧﴾ وَخَسَفَ الْقَمَرُ ﴿٨﴾ وَجُمِعَ
دَ قیامت | پس هر کله چه | وُبرېښی | سترګے | او تندرۀ نیسی | سپوږمئ لره | او یو ځائے کړے شی
به کله راځی؟ نو په کومه ورځ چه سترګے سپینے وُتښتی او سپوږمئ بے نوره شی، او نور او سپوږمئ

الشَّمْسُ وَالْقَمَرُ ۙ﴿۹﴾ يَقُوْلُ الْاِنْسَانُ يَوْمَئِذٍ اَيْنَ الْمَفَرُّ ﴿۱۰﴾ كَلَّا

نُور | او سپوږمۍ | وُبه وائي | په دغه ورځ | انسان | چرته دے | د تیښتے ځائے ؟ | هرګزنه

به په یوحال کړے شي ، نو انسان به په دغه ورځ وائي چه (اوس) کوم خوا وُتښتم ؟ نه ـ اوس هیڅ

لَا وَزَرَ ﴿۱۱﴾ اِلٰى رَبِّكَ يَوْمَئِذِ ۨالْمُسْتَقَرُّ ﴿۱۲﴾ يُنَبَّؤُا الْاِنْسَانُ يَوْمَئِذٍۭ

نشته هیڅ پناه | ستا د رب طرف ته دے | نن ورځ | ځائے د قراری | وُبه ښودلے شي | انسان ته | په دغه ورځ

ځائے کښے پناه نشته ، په دغه ورځ د خلقو ټیکاو ځړه یوازے ستا د رب اړخ ته دے ـ په دغه ورځ به بندیانو ته خپل وړاندِ وروستو

بِمَا قَدَّمَ وَاَخَّرَ ﴿۱۳﴾ بَلِ الْاِنْسَانُ عَلٰى نَفْسِهٖ بَصِيْرَةٌ ۙ﴿۱۴﴾ وَّلَوْ

هغه څه چه دهٔ وړاندِ لیږلی دي | او وروستو پریښی دي | بلکه انسان | په خپل ځان باندِ | (پخپله) ګواه دے | اګرچه

عملونه وروړاندِ کړے شي ، بلکه انسان به پخپله هم په خپل حالت باندِ ګواه وی ـ اګر که

اَلْقٰى مَعَاذِيْرَهٗ ﴿۱۵﴾ لَا تُحَرِّكْ بِهٖ لِسَانَكَ لِتَعْجَلَ بِهٖ ﴿۱۶﴾

پیش کړی | بهانے خپلے | ته حرکت مهٔ ورکوه | په دے قرآن سره | خپلے ژبے له | چه ته زر وا خلے | دا

بهانے لتهوی ـ (اے رسول ﷺ!) ته قرآن ډیر زر یادولو د پاره خپلے ژبے له حرکت مهٔ ورکوه ـ

اِنَّ عَلَيْنَا جَمْعَهٗ وَقُرْاٰنَهٗ ﴿۱۷﴾ فَاِذَا قَرَاْنٰهُ فَاتَّبِعْ قُرْاٰنَهٗ ﴿۱۸﴾

بیشکه زمونږ په ذمه دی | جمع کول د دے | او لوستل د دے | بیا هرکله چه مونږ وُلولو دا | نو ته پیروی وکړه | د دے لوستلو

د دے راټولول او تا ته لوستل زمونږ کار دے نو چه مونږ ئے (تا ته) وُلولو نو ته د هغے پیروی کوه ـ

ثُمَّ اِنَّ عَلَيْنَا بَيَانَهٗ ﴿۱۹﴾ كَلَّا بَلْ تُحِبُّوْنَ الْعَاجِلَةَ ۙ﴿۲۰﴾ وَتَذَرُوْنَ

بیا | بیشکه زمونږ په ذمه دی | د دے بیانول | هرګزنه | بلکه | تاسو خوښوئی | دُنیا | او پریږدئ

بیا د هغے بیانول هم زمونږ په ذمه دی ـ مګر تاسو خلق دنیا سره محبت ساتئ ، او اخرت موپریښے

الْاٰخِرَةَ ﴿۲۱﴾ وُجُوْهٌ يَّوْمَئِذٍ نَّاضِرَةٌ ۙ﴿۲۲﴾ اِلٰى رَبِّهَا نَاظِرَةٌ ﴿۲۳﴾ وَوُجُوْهٌ

اخرت | څهٔ مخونه به | په دغه ورځ | تازه وی | د خپل رب طرف ته | به ګوری | او څهٔ مخونه به

دے ـ ډیر مخونه به په دغه ورځ تازه وی ، خپل رب ته به ګوری او ډیر مخونه به

يَّوْمَئِذٍۭ بَاسِرَةٌ ۙ﴿۲۴﴾ تَظُنُّ اَنْ يُّفْعَلَ بِهَا فَاقِرَةٌ ﴿۲۵﴾

په دغه ورځ | خړ پړ وی | خیال به کوی | چه دوئ سره به (سختی) کولے شي | د ملا د ماتولو

په دغه ورځ بے رونقه وی ، دوئ به خیال کوی چه په دوئ به داسے سختی کیږی چه د دوئ ملا به ماته کړی

كَلَّآ اِذَا بَلَغَتِ التَّرَاقِيَ ۙ﴿۲۶﴾ وَقِيْلَ مَنْ ۜ رَاقٍ ۙ﴿۲۷﴾ وَّظَنَّ

هرګزنه | هرکله چه (روح) وُرسیږی | ګریوی ته | او وُبه وئیلے شي | څوک دے | دم اچوونکے | او دوئ به خیال کوی

البته څهٔ وخت چه روح ګریوی ته وُرسیږی او دا وُوئیلے شي چه څوک دم اچوونکے شته ؟ او (مړ کیدونکی ته)

اَنَّهُ الْفِرَاقُ ۙ﴿۲۸﴾ وَالْتَفَّتِ السَّاقُ بِالسَّاقِ ۙ﴿۲۹﴾ اِلٰى رَبِّكَ

چه دا (وخت) دے | (د) جدائی | او را تاؤ به شي | یوه پنډۍ | د بلے پنډۍ نه | ستا د رب طرف ته (به وی)

یقین راشي چه د جدائی وخت رارسیلے دے ، او یوه پنډۍ د بلے پنډۍ نه راتاؤ شي ، په دغه ورځ ستا

يَوْمَئِذِنِ الْمَسَاقُ ﴿۳۰﴾ فَلَا صَدَّقَ وَلَا صَلّٰى ﴿۳۱﴾ وَلٰكِنْ كَذَّبَ

په دغه ورځ | دوانیدل | پس نهٔ دهٔ تصدیق وکړو | او نهٔ ئے مونځ وکړو | او لیکن | دهٔ دروغ وګڼل

دَ رب طرف ته روانیدل دی ، بیا نهٔ خو دغه (کافر) تصدیق وکړو او نهٔ ئے مونځ وکړو، بلکه (دهٔ دَ الله حکمونه) دروغ وګڼل

وَتَوَلّٰى ﴿۳۲﴾ ثُمَّ ذَهَبَ اِلٰٓى اَهْلِهٖ يَتَمَطّٰى ﴿۳۳﴾ اَوْلٰى لَكَ فَاَوْلٰى ﴿۳۴﴾

او مخ ئے واړولو | بیا | لاړو | دَ خپل کورو الو طرف ته | په فخر سره | پس افسوس دے په تا | پس افسوس

او (له دے نه ئے) مخ واړولو، او بیا خپل کورته په فخر سره پسته روان شو، ستا تباهی په تباهی ده ۔

ثُمَّ اَوْلٰى لَكَ فَاَوْلٰى ﴿۳۵﴾ اَيَحْسَبُ الْاِنْسَانُ اَنْ يُّتْرَكَ سُدًى ﴿۳۶﴾

بیا | افسوس دے | په تا | بیا افسوس | آیا خیال کوی | انسان | چه | دَ به پریښودے شی | بے کاره

بیا ستا تباهی په تباهی ده ۔ آیا انسان په دے خیال کښے پروت دے چه هسے بے کاره به پریښودے شی؟

اَلَمْ يَكُ نُطْفَةً مِّنْ مَّنِيٍّ يُّمْنٰى ﴿۳۷﴾ ثُمَّ كَانَ عَلَقَةً فَخَلَقَ

آیا نهٔ وو دے | یو څاڅکے | دَ منیٔ | چه توئیدے شی (په رحم کښے) | بیا | دے شو | نو ټه دَ وینے | بیا دهٔ پیدا کړو

آیا دے دَ منیٔ یو څاڅکے نهٔ وو چه (په رحم کښے) توئے کړے شوے وو؟ بیا دَ وینے یو ټه شو نو الله ترے نه انسان جوړ کړو

فَسَوّٰى ﴿۳۸﴾ فَجَعَلَ مِنْهُ الزَّوْجَيْنِ الذَّكَرَ وَالْاُنْثٰى ﴿۳۹﴾ اَلَيْسَ ذٰلِكَ

بیائے درست کړو | بیائے جوړے کړے | له دے نه | دوه جوړے (قسمونه) | سړے | او ښځه | آیا نهٔ دے هغه (ذات)

او سم برابر ئے کړو، بیائے له دے نه دوه قسمه سړے او ښځه جوړ کړل ۔ آیا هغه (الله) په دے

بِقٰدِرٍ عَلٰٓى اَنْ يُّحْيِۦَ الْمَوْتٰى ﴿۴۰﴾

قادر | په دے چه | ژوندی کړی | مړی

خبره قدرت نهٔ لری چه مړی بیا راژوندی کړی ۔

| سُوْرَةُ الدَّهْرِ مَدَنِيَّةٌ وَّهِيَ اِحْدٰى | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | وَثَلٰثُوْنَ اٰيَةً وَّفِيْهَا رُكُوْعَانِ |
|---|---|---|
| سوره دهر په مدینه کښے نازل شوا و | (شروع) دَ الله په نامه چه لوئے مهربان دیر زیات رحم کوونکے دے ۔ | په دے کښے ۳۱ آیتونه او ۲ رکوع دی |

دَ الله په نامه شروع کوم چه لوئے مهربان ډیر زیات رحم خاوند دے

هَلْ اَتٰى عَلَى الْاِنْسَانِ حِيْنٌ مِّنَ الدَّهْرِ لَمْ يَكُنْ شَيْئًا مَّذْكُوْرًا ﴿۱﴾

بیشکه راغلے دے | په انسان | یوه موده | له زمانے نه | چه نهٔ وو دے | هیڅ څیز | دَ ذکر قابل

بیشکه په انسان باندے په زمانه کښے داسے وخت هم تیر شوے دے چه هغه هیڅ دَ ذکر قابل څیز نهٔ وو ۔

اِنَّا خَلَقْنَا الْاِنْسَانَ مِنْ نُّطْفَةٍ اَمْشَاجٍ ۖ نَّبْتَلِيْهِ فَجَعَلْنٰهُ

بیشکه مونږ پیدا کړو | انسان | له یوے نطفے نه | چه مخلوطه وه | چه مونږ ئے آزمایو دے | نو کړو مونږ دے

بیشکه چه مونږ انسان دَ مخلوطے نطفے نه راپیدا کړو چه آزمیښت پرے وکړو نو هغه مو آوریدونکے

سَمِيْعًا بَصِيْرًا ﴿۲﴾ اِنَّا هَدَيْنٰهُ السَّبِيْلَ اِمَّا شَاكِرًا وَّاِمَّا كَفُوْرًا ﴿۳﴾

آوریدونکے | لیدونکے | بیشکه | مونږ وښودله دهٔ ته | لاره | نو یا شکر ګزاره دے | او یا ناشکره دے

(او) لیدونکے انسان جوړ کړو بیشکه مونږ ورته نیغه لاره وښودله نو هغه یا شکر ګزار شو او یا کافر شو ۔

إِنَّآ أَعْتَدْنَا لِلْكٰفِرِينَ سَلٰسِلَا۟ وَأَغْلٰلًا وَسَعِيرًا ④ إِنَّ الْأَبْرَارَ

بیشکه | مونږ تیار کړی دی | کافرانو دپاره | زنځیرونه | او تبزندئ | او سُور اور | بیشکه نیکان خلق به

مونږ کافرانو دپاره زنځیرونه ، تبزندئ او سور اور تیار ساتلے دے۔ بیشکه نیکان خلق به د

يَشْرَبُونَ مِن كَأْسٍ كَانَ مِزَاجُهَا كَافُورًا ⑤ عَيْنًا يَشْرَبُ بِهَا عِبَادُ

څښی | له پیالئ نه (هغه شراب) | چه پکښے به ګډ وی | کافور | یوه چینه | چه څښی به | له هغے نه | بندګان

داسے شرابو جامونه څښی چه په هغے کښے به د کافورو ګډون وی هغه به یوه چینه وی چه د هغے اُوبه به د

اللّٰهِ يُفَجِّرُونَهَا تَفْجِيرًا ⑥ يُوفُونَ بِالنَّذْرِ وَيَخَافُونَ يَوْمًا

د الله | چه بَیَوی به دوئ هغه | په بَیَولو سره | دوئ پوره کوی | خپل نذر | او ویریږی دوئ | له هغه ورځے نه

الله بندګان څښی (او) کوم خوا چه به غواړی بَیَوی به ئے۔ هغوئ خپلے نذرانے پوره کوی او د هغے ورځے نه ویریږی

كَانَ شَرُّهُۥ مُسْتَطِيرًا ⑦ وَيُطْعِمُونَ الطَّعَامَ عَلٰى حُبِّهِۦ مِسْكِينًا وَيَتِيمًا

چه مصیبت د هغے به | هر ځائے خوروی | او دوئ خوروی | طعام | د دهٔ په محبت کښے | مسکین | او یتیم

چه مصیبت به ئے هر طرف نه خوروی ، او د الله تعالیٰ په مینه کښے به مسکینانو ، یتیمانو او قیدیانو ته

وَأَسِيرًا ⑧ إِنَّمَا نُطْعِمُكُمْ لِوَجْهِ اللّٰهِ لَا نُرِيدُ مِنكُمْ جَزَآءً

او قیدی ته | بیشکه | مونږ خوروُو په تاسو | د الله د رضا د پاره | مونږ نهٔ غواړو | له تاسو نه | څهٔ بدله

طعامونه ورکوی (او وائی چه) مونږ خو تاسو له تش د الله په خاطر خوراکونه درکوو نهٔ مونږ له تاسو نه څه معاوضه

وَلَا شُكُورًا ⑨ إِنَّا نَخَافُ مِن رَّبِّنَا يَوْمًا عَبُوسًا قَمْطَرِيرًا ⑩

او نهٔ څهٔ شکرګزاری | بیشکه مونږ خو ویریږو | له خپل رب نه | په هغه ورځ | چه سخته | (او) ترخه (به وی)

غواړو او نهٔ شکریه۔ مونږ خو له خپل رب نه د هغے ورځے (په باره کښے) ویریږو چه ډیره سخته او ترخه به وی

فَوَقٰىهُمُ اللّٰهُ شَرَّ ذٰلِكَ الْيَوْمِ وَلَقّٰىهُمْ نَضْرَةً وَسُرُورًا ⑪

پس بچ به کړی دوئ | الله | له سختئ نه | د دغے | ورځے | او ور به کړی دوئ ته | تازګی | او خوشحالی

نو الله به هغوئ له د دغے ورځے د سختونه په امان او ساتی او هغوئ له به تازګی او (زړونو ته ئے) خوشحالی ورکړی

وَجَزٰىهُم بِمَا صَبَرُوا۟ جَنَّةً وَحَرِيرًا ⑫ مُّتَّكِـِٔينَ فِيهَا

او بدله به ورکړی دوئ ته | د دوئ د صبر | جنّت | او د ریښمو لباس | ډډے به ئے وهلے وی | په هغے کښے

او د صبر په بدله کښے به ورته جنّت او د ریښمو جامے ورکړی ، هغه خلقو به په دے کښے په تختونو

عَلَى الْأَرَآئِكِ ۖ لَا يَرَوْنَ فِيهَا شَمْسًا وَلَا زَمْهَرِيرًا ⑬ وَدَانِيَةً

په تختونو باندِ | نهٔ به وینی | په هغے کښے | ګرمی | او نهٔ یخه یخنی | او راټیټ به وی

باندِ ډډے لګولے وی ، هلته نهٔ خو به هغوئ د ګرمئ تاؤ محسوسوی او نهٔ یخه یخنی ۔ او د هغے د ونو سورے

عَلَيْهِمْ ظِلٰلُهَا وَذُلِّلَتْ قُطُوفُهَا تَذْلِيلًا ⑭ وَيُطَافُ

په دوئ باندِ | سوری د هغے (د ونو) | او راټیټے به کړے شی | د هغے میوے | ښے راټیټے | او را به وړلے شی

به هغوئ ته نزدے وی او د هغے میوے به هم راټیټے وی او ورته به ایښودے

عَلَيْهِمْ بِاٰنِيَةٍ مِّنْ فِضَّةٍ وَّاَكْوَابٍ كَانَتْ قَوَارِيْرَاْ ﴿۱۵﴾ قَوَارِيْرَاْ مِنْ فِضَّةٍ

دوئی ته | لوښی | دَ سپینو زرو | او جامونه | چه وی به دَ ښیښې | ښیښې به وی | دَ چاندئ شی

، دَ سپینو زرو لوښی او دَ ښیښې ګلاسونه داسے ښیښې چه دَ سپینو زرو نه جوړ دی

قَدَّرُوْهَا تَقْدِيْرًا ﴿۱۶﴾ وَيُسْقَوْنَ فِيْهَا كَاْسًا كَانَ مِزَاجُهَا

چه اندازه کړی به وی دوی دا | پوره پوره | او څښنولے به شی دوئ ته | هلته | جامونه (دَ داسے شرابو) | چه ګډون به وی په هغے کښے

او په اندازه باندِ ئے پیمانه کړی دی او داسے (دَ شرابو) جامونه به پرے څښنولے شی چه سونډ به پکښے اچولے

زَنْجَبِيْلًا ﴿۱۷﴾ عَيْنًا فِيْهَا تُسَمّٰى سَلْسَبِيْلًا ﴿۱۸﴾ وَيَطُوْفُ عَلَيْهِمْ

دَ سونډو | هغه یوه چینه ده | هلته | چه نامه ئے ده | سلسبیل | او تلل راتلل به کوی | په دوئ باندِ

شوی وی (دا دَ جنت) یوه چینه ده چه نامه ئے سلسبیل ده او داسے خادمان به ترے نه تاؤ راتاؤ

وِلْدَانٌ مُّخَلَّدُوْنَ ۚ اِذَا رَاَيْتَهُمْ حَسِبْتَهُمْ لُؤْلُؤًا مَّنْثُوْرًا ﴿۱۹﴾ وَ

هلکان | همیشه ځوانان | هرکله چه | ته ووینے دوی | ته به خیال کوے چه دوی | ملغلرے دی | نو ستلے شوے | او

کیږی چه همیشه به هلکان وی که ته ئے ووینے نو دا خیال به دِ راشی چه خورے ورے ملغلرے دی۔ او

اِذَا رَاَيْتَ ثَمَّ رَاَيْتَ نَعِيْمًا وَّمُلْكًا كَبِيْرًا ﴿۲۰﴾ عٰلِيَهُمْ ثِيَابُ سُنْدُسٍ

هرکله چه | ته ووینے | هلته | نو وبه وینے ته | نعمت | او بادشاهی | ډیره لویه | دَ پاسه دَ دوئ به | جامے وی | دَ باریکو ریښمو

که هغه ځائے ووینے نو ډیر لوئے نعمت او غټه بادشاهی به ووینے. په هغوئ باندِ به نرئ ریښمینے شنے

خُضْرٌ وَّاِسْتَبْرَقٌ ۫ وَّحُلُّوْٓا اَسَاوِرَ مِنْ فِضَّةٍ ۚ وَسَقٰىهُمْ رَبُّهُمْ

شنے | او دَ پیړو ریښمو | او دوئ ته به اغوستولے شی | بازوګان | دَ سپینو زرو | او څښنوی به دوئ ته | دَ دوئ رب

جامے پرتے وی او غټے ریښمینے هم، او دَ سپینو زرو بازوګان به ورته اغوستولے شی، او خپل رب به ورته پاکیزه شراب

شَرَابًا طَهُوْرًا ﴿۲۱﴾ اِنَّ هٰذَا كَانَ لَكُمْ جَزَآءً وَّكَانَ سَعْيُكُمْ مَّشْكُوْرًا ﴿۲۲﴾

شراب | پاکیزه | بیشکه دا | تاسو دَ پاره ده | بدله | او شو | ستاسو کوشش | قبول۔

دَ څښلو دَ پاره ورکوی (او دوئ ته به ووئیلے شی) دا ستاسو بدله ده او ستاسو کوشش (نن) مقبول شوے دے۔

اِنَّا نَحْنُ نَزَّلْنَا عَلَيْكَ الْقُرْاٰنَ تَنْزِيْلًا ﴿۲۳﴾ فَاصْبِرْ لِحُكْمِ رَبِّكَ

بیشکه مونږ | نازل کړو | په تا باندِ | قرآن | په نازلولو سره | پس صبر کوه | په حکم | دَ رب خپل

مونږ په تا باندِ قرآن لږ لږ را نازل کړے دے۔ نو ته دَ خدائے په حکم ټینګ ولاړ وسیږه

وَلَا تُطِعْ مِنْهُمْ اٰثِمًا اَوْ كَفُوْرًا ﴿۲۴﴾ وَاذْكُرِ اسْمَ رَبِّكَ بُكْرَةً

او حکم مه منه | له دوئ نه | دَ چا ګناهګار | یا ناشکره | او یادوه | نامه | دَ رب خپل | سحر

او په دوئ کښے دَ چا فاسق یا کافر خبره مه اوره۔ او سحر ماښام دَ هغهٔ دَ نامے ذکر

وَّاَصِيْلًا ﴿۲۵﴾ وَمِنَ الَّيْلِ فَاسْجُدْ لَهٗ وَسَبِّحْهُ لَيْلًا طَوِيْلًا ﴿۲۶﴾

او ماښام | او په ځنے حصو دَ شپه کښے | پس ته سجده کوه | دهٔ ته | او ذدهٔ پاکی بیانوه | په شپه کښے | تر ډیره وخته

کوه ـ او دَ شپے په یوه برخه کښے هم هغهٔ ته سجده کوه او دَ هغهٔ تسبیح دَ شپے په لویه برخه کښے بوله

قرأ حفص بغیر الالف فی الوصل فیهما ووقف علی الاول بالالف وعلی الثانی بغیر الف ۱۲

إِنَّ هَٰؤُلَاءِ يُحِبُّونَ الْعَاجِلَةَ وَيَذَرُونَ وَرَاءَهُمْ يَوْمًا ثَقِيلًا ﴿۲۷﴾

بیشکه | داخلق | غواړی | زر (دنیا) | او دوی پریږدی | دځان نه وروستو | یوه ورځ | درنه

بیشکه دے خلقو خو دُنیا خوښه کړے ده او وړاندِ راتلونکے یوه درنه ورځ ئے بالکل پرېښودے ده

نَحْنُ خَلَقْنَاهُمْ وَشَدَدْنَا أَسْرَهُمْ ۖ وَإِذَا شِئْنَا بَدَّلْنَا أَمْثَالَهُمْ

مونږ پیدا کړل دوی | او مونږ مضبوط کړل | جوړونه د دوی | او هر کله چه وُغواړو مونږ | په بدل کښے به راولو | په شان د دوی بو نوم

هم مونږه دوی پیدا کړی دی او د دوی بندونه مو کلک کړی دی او چه کله وغواړو نو د دوی په ځائے به د دوی

تَبْدِيلًا ﴿۲۸﴾ إِنَّ هَٰذِهِ تَذْكِرَةٌ ۖ فَمَنْ شَاءَ اتَّخَذَ إِلَىٰ رَبِّهِ سَبِيلًا ﴿۲۹﴾

په بدلولو سره | بیشکه دا | یو نصیحت دے | نو څوک چه غواړی | وُ دِ نیسی | دَ خپل رب طرف ته | لاره

غونډِ نور خلق بدل کړو، دا (قرآن) خو یو نصیحت دے نو څوک چه وُغواړی نو دَ خپل رب طرف ته دِ لاره وُ نیسی

وَمَا تَشَاءُونَ إِلَّا أَنْ يَشَاءَ اللَّهُ ۚ إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلِيمًا حَكِيمًا ﴿۳۰﴾

او نهٔ غواړئ تاسو | مګر | داچه | غواړی | الله | بیشکه | الله | دے | پوهه | دَ حکمت خاوند

او تاسو خو بس هغهٔ څهٔ غوښتے شئ چه الله ئے وُغواړی بیشکه الله تعالیٰ دَ ډیر علم دَ غټ حکمت خاوند دے

يُدْخِلُ مَنْ يَشَاءُ فِي رَحْمَتِهِ ۚ وَالظَّالِمِينَ أَعَدَّ لَهُمْ عَذَابًا أَلِيمًا ﴿۳۱﴾ ع

داخلوی | څوک چه غواړی | په خپل رحمت کښے | او ظالمان چه دی | دهٔ تیار کړے دے دوی له | عذاب دردناک.

هغه چه څوک غواړی نو په خپل رحمت کښے ئے داخل کړی او ظالمانو دَ پاره الله دردناک عذاب تیار کړے دے

سُورَةُ الْمُرْسَلَاتِ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ | بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ | خَمْسُونَ آيَةً وَّفِيهَا رُكُوعَانِ

سورهٔ مرسلٰت په مکه کښے نازل شو | (شروع) دَ الله په نامه چه لوئے مهربان ډیر زیات رحم کوونکے دے | او په دے کښے ۵۰ آیتونه او ۲ رکوع دی

دَ الله په نامه شروع کوم چه لوئے مهربان دَ ډیر زیات رحم خاوند دے

وَالْمُرْسَلَاتِ عُرْفًا ﴿۱﴾ فَالْعَاصِفَاتِ عَصْفًا ﴿۲﴾ وَالنَّاشِرَاتِ نَشْرًا ﴿۳﴾

قسم دے په (هواګانو) رالیږلے شوو | نرمو | بیا په تیزو هواګانو | زوردارو | بیا خورو (وریځو لره) | په ښهٔ شان خورولو

په هغه بادونو قسم دے چه رالیږلے شی ، بیا په هغه بادونو چه تیز الوزی ، بیا په هغے چه (وریځے) خوروی

فَالْفَارِقَاتِ فَرْقًا ﴿۴﴾ فَالْمُلْقِيَاتِ ذِكْرًا ﴿۵﴾ عُذْرًا أَوْ نُذْرًا ﴿۶﴾

بیا جدا کوونکی هواګانے | په جدا کولو | بیا دَ هغے چه راکوزوی | ذکر (وحی) لره | چه عذر وی | یا ویرول وی

بیا په هغے چه (وریځے) کړے وړے بوځی ، بیا په هغه فرښتو قسم چه وحی راکوزوی راوړی ، په توبه یا په ویرولو .

إِنَّمَا تُوعَدُونَ لَوَاقِعٌ ﴿۷﴾ فَإِذَا النُّجُومُ طُمِسَتْ ﴿۸﴾ وَإِذَا السَّمَاءُ

بیشکه | دَ څهٔ چه تاسو سره وعده کولے شی | خامخا کیدونکے دے | بیا هر کله چه | ستوری | بے نوره کړے شی | او هر کله چه آسمان

بیشکه تاسو سره چه کومه وعده کولے شی هغه خامخا پوره کیدونکے ده ، نو څهٔ وخت چه ستوری بے نوره شی ، او هر کله چه آسمان

فُرِجَتْ ﴿۹﴾ وَإِذَا الْجِبَالُ نُسِفَتْ ﴿۱۰﴾ وَإِذَا الرُّسُلُ أُقِّتَتْ ﴿۱۱﴾

وُشلیږی | او هر کله چه | غرونه | والوزولے شی | او هر کله چه | پیغمبران | په مقرر وخت جمع کړے شی

وُشلیږی ، او څهٔ وخت چه غرونه والوزولے شی ، او څهٔ وخت چه ټول پیغمبران په مقرر وخت را جمع کړے شی

لِاَیِّ یَوۡمٍ اُجِّلَتۡ ﴿١٢﴾ لِیَوۡمِ الۡفَصۡلِ ﴿١٣﴾ وَمَاۤ اَدۡرٰىكَ مَا یَوۡمُ الۡفَصۡلِ ﴿١٤﴾

دَکومې ورځې دَپاره | تاخیرشوې وو | دَپاره دَورځې | دَفیصلې | او تاته څهٔ معلومه ده | چه څهٔ ده | ورځ دَفیصلې

دا کارکومې ورځې ته تالګلې شوې دي؟ دَ فیصلې ورځ ته۔ او تاته څهٔ معلومه ده چه دَ فیصلې ورځ څنګه ده؟

وَیۡلٌ یَّوۡمَىِٕذٍ لِّلۡمُكَذِّبِیۡنَ ﴿١٥﴾ اَلَمۡ نُهۡلِكِ الۡاَوَّلِیۡنَ ﴿١٦﴾ ثُمَّ نُتۡبِعُهُمُ

تباهي ده | په دغه ورځ | دروغ ګڼړونکو دَپاره | آیا نهٔ دي هلاک کړي مونږ | مخواني خلق | بیا به | مونږ راولو دوئ پسې

په دغه ورځ دروغ ګڼړونکو دَپاره بربادي ده آیا مونږ مخواني خلق تباه کړي نهٔ دي۔ بیا به دا وروستني هم

الۡاٰخِرِیۡنَ ﴿١٧﴾ كَذٰلِكَ نَفۡعَلُ بِالۡمُجۡرِمِیۡنَ ﴿١٨﴾ وَیۡلٌ یَّوۡمَىِٕذٍ

وروستني | دغه شان | مونږ کوُو | دَګناهګاراتو سره | تباهي ده | په دغه ورځ

ورپسې بوځو ۔ مونږ مجرمانو سره هم دغه شان معامله کوو۔ په دغه ورځ دروغ ګڼړونکو دَ

لِّلۡمُكَذِّبِیۡنَ ﴿١٩﴾ اَلَمۡ نَخۡلُقۡكُّمۡ مِّنۡ مَّآءٍ مَّهِیۡنٍ ﴿٢٠﴾ فَجَعَلۡنٰهُ

دروغ ګڼړونکو دَپاره | آیا مونږ نهٔ یئ پیدا کړي تاسو | له حقیرو اُوبو نه | پس کیښودې مونږ هغه

پاره غنهٔ بربادي ده۔ آیا مونږ تاسو دَ بې قدره اُوبو نه پیدا کړي نهٔ یئ؟ بیا موهغه اُوبهٔ په یو

فِیۡ قَرَارٍ مَّكِیۡنٍ ﴿٢١﴾ اِلٰى قَدَرٍ مَّعۡلُوۡمٍ ﴿٢٢﴾ فَقَدَرۡنَا فَنِعۡمَ

په ځائې محفوظ کښې | تر اندازې | مقرر ې پورې | پس مونږ اندازه ولګوله | نو څهٔ ښه

سنبال ځائې کښې کیښودې، یو مقرر وخت پورې۔ غرض دا چه مونږ یوه اندازه مقرر کړه نو څهٔ ښهٔ اندازه

الۡقٰدِرُوۡنَ ﴿٢٣﴾ وَیۡلٌ یَّوۡمَىِٕذٍ لِّلۡمُكَذِّبِیۡنَ ﴿٢٤﴾ اَلَمۡ نَجۡعَلِ الۡاَرۡضَ كِفَاتًا ﴿٢٥﴾

اندازه کوونکي یُو (مونږ) | تباهي ده | په دغه ورځ | دروغ ګڼړونکو دَپاره | آیا نهٔ ده جوړه کړې مونږ | زمکه | جمع کوونکې

مقرر کړه۔ په دغه ورځ دروغ ګڼړونکو دَپاره غنهٔ خرابي ده آیا مونږ زمکه رانغښتونکې جوړه کړې نهٔ ده؟

اَحۡیَآءً وَّ اَمۡوَاتًا ﴿٢٦﴾ وَّجَعَلۡنَا فِیۡهَا رَوَاسِیَ شٰمِخٰتٍ وَّاَسۡقَیۡنٰكُمۡ

دَ ژوندو | او | دَمړو | او پیدا کړي دي مونږ | په دې کښې | غرونه | اُوچت اُوچت | او مونږ څښولي دي په تاسو

هم دَ ژوندو او هم دَمړو۔ او مونږ په زمکه باندې اُوچت اُوچت غرونه اِیښي نهٔ دي؟ او مونږ په تاسو خوږې

مَّآءً فُرَاتًا ﴿٢٧﴾ وَیۡلٌ یَّوۡمَىِٕذٍ لِّلۡمُكَذِّبِیۡنَ ﴿٢٨﴾ اِنۡطَلِقُوۡۤا اِلٰى مَا كُنۡتُمۡ بِهٖ

اوبهٔ | خوږې | تباهي ده | په دغه ورځ | دروغ ګڼړونکو دَپاره | روان شئ | طرف دَهغه څهٔ ته | چه تاسو به هغه

اُوبهٔ څښولي دي، په دغه ورځ دروغ ګڼړونکو دَپاره غنهٔ خرابي ده (دَ به وېیلې شي ورته) ځئ ورشئ هغه (عذاب) ته چه

تُكَذِّبُوۡنَ ﴿٢٩﴾ اِنۡطَلِقُوۡۤا اِلٰى ظِلٍّ ذِیۡ ثَلٰثِ شُعَبٍ ﴿٣٠﴾ لَّا ظَلِیۡلٍ وَّلَا یُغۡنِیۡ

دروغ ګڼړلو | روان شئ | طرف دَسوري ته | چه دَ درې ښاخونو والا دې | نهٔ هغه سورې ورکوونکې | او نهٔ بچ کوي

تاسو به دروغ ګڼړلو، تاسو (دَدوزخ دَلوګي) هغه سوري ته لاړ شئ چه دَ هغې درې حصې دي چه پکښې نهٔ (یخ) سورې شته او نهٔ

مِنَ اللَّهَبِ ﴿٣١﴾ اِنَّهَا تَرۡمِیۡ بِشَرَرٍ كَالۡقَصۡرِ ﴿٣٢﴾ كَاَنَّهٗ جِمٰلَتٌ

دَګرمئ نه | بیشکه دا به | اُولي | انګارې | په شان دَمحلونو | دا سې لکه چه دا | اوښان دي

دَاور دَ تاؤ نه څوک بچ کوي، هغه اور به دومره غټې غټې انګارې وُلي لکه (لوړې دنګې) ماڼړئ۔ لکه چه هغه دَ زېړ رنګ

صُفْرٌ ۝۳۳ وَيْلٌ يَّوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِيْنَ ۝۳۴ هٰذَا يَوْمُ لَا يَنْطِقُوْنَ ۝۳۵ وَلَا

دَ زیړ رنګ | تباهي ده | په دغه ورځ | دروغ ګڼونکو دَپاره | دا | هغه ورځ ده | چه دوئ به خبرے نۀ کوی | او نۀ به

اُوښان دی، په دغه ورځ دروغ ګڼونکو دَپاره تباهي ده، دا خو هغه ورځ ده چه دوئ به خبرے قدرته نۀ شی کولے، او نۀ به

يُؤْذَنُ لَهُمْ فَيَعْتَذِرُوْنَ ۝۳۶ وَيْلٌ يَّوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِيْنَ ۝۳۷ هٰذَا

اجازت ورکولے شی | دوئ ته | چه دوئ عُذر وُکړی | بربادی ده | په دغه ورځ | دروغ ګڼونکو دَپاره | دا ده

دوئ ته اجازت وی چه عـذر پیش کړی، په دغه ورځ دروغ ګڼونکو دَپاره غټه تباهي ده ، هم دغه خو

يَوْمُ الْفَصْلِ ۚ جَمَعْنٰكُمْ وَالْاَوَّلِيْنَ ۝۳۸ فَاِنْ كَانَ لَكُمْ كَيْدٌ

ورځ | دَ فیصلے | مونږ به جمع کړو تاسو | او پخوانی خلق | پس که چرے وی | تاسو سره | څۀ تدبیر

دَ فیصلے ورځ ده، مونږ به تاسو هم راجمع کړو او پخوانی هم ـ نو که تاسو څۀ چل ول جوړول غواړئ نو زما

فَكِيْدُوْنِ ۝۳۹ وَيْلٌ يَّوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِيْنَ ۝۴۰ اِنَّ الْمُتَّقِيْنَ فِيْ ظِلٰلٍ

نو زما خلاف وُکړئ | تباهي ده | په دغه ورځ | دروغ ګڼونکو دَپاره | بیشکه | پرهیزګاران به | په سورو (کښے)

په مقابله کښے جوړ کړئ ـ په دغه ورځ دروغ ګڼونکو دَپاره غټه بربادی ده، بیشکه (دَ الله نه) ویریدونکی (دَ هغهٔ دَ رحمت)

وَّعُيُوْنٍ ۝۴۱ وَّفَوَاكِهَ مِمَّا يَشْتَهُوْنَ ۝۴۲ كُلُوْا وَاشْرَبُوْا

او په چینو (کښے) | او میوو (کښے وی) | څۀ چه به | دوئ غواړی | خورئ | او څښئ

سوری او چینو کښے وی او (هغوئ به) په هغه میوو کښے وی چه دَ هغوئ به خوښے وی (ورته به وئیلے شی چه) ښۀ فراخه

هَنِيْٓئًا بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ۝۴۳ اِنَّا كَذٰلِكَ نَجْزِى

په مزے سره | په بدله دَ هغه کارونو | چه تاسو به کول | بیشکه مونږ | هم دغه شان | جزا ورکوؤ

خورئ څښئ، دَ هغه عملونو په بدله کښے چه تاسو به کول ـ (او) مونږ نیکانو له هـم دغه شان

الْمُحْسِنِيْنَ ۝۴۴ وَيْلٌ يَّوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِيْنَ ۝۴۵ كُلُوْا وَتَمَتَّعُوْا

نیکانو ته | تباهي ده | په دغه ورځ | دروغ ګڼونکو دَپاره | خورئ | او فائده اُوچته کړئ

بدله ورکوؤ ـ دروغ ګڼونکو دَپاره په دغه ورځ لویه خرابي ده ـ (اے کافرانو!) یو څو ورځے وُخورئ او لږه

قَلِيْلًا اِنَّكُمْ مُّجْرِمُوْنَ ۝۴۶ وَيْلٌ يَّوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِيْنَ ۝۴۷

لږه | بیشکه تاسو | مجرمان یئ | تباهي ده | په دغه ورځ | دروغ ګڼونکو دَپاره

فائده واخلئ ، یقیناً تاسو مجرمان یئ ـ په دغه ورځ دَ دروغ ګڼونکو دَپاره لویه خـرابي ده ـ

وَاِذَا قِيْلَ لَهُمُ ارْكَعُوْا لَا يَرْكَعُوْنَ ۝۴۸ وَيْلٌ يَّوْمَئِذٍ

او هر کله چه | وویلے شی | دوئ ته | سر ټیټ کړئ | نو دوئ سر نۀ ټیټوئ | تباهي ده | په دغه ورځ

او څۀ وخت چه دوئ ته وُوئیلے شی (چه دَ الله په وړاندِ) ټیټ شئ نو دوئ نۀ ټیټیږی ـ په دغه ورځ دروغ ګڼونکو دَ

لِّلْمُكَذِّبِيْنَ ۝۴۹ فَبِاَيِّ حَدِيْثٍۢ بَعْدَهٗ يُؤْمِنُوْنَ ۝۵۰

دَ دروغ ګڼونکو دَپاره | نو په کومه | خبره باندِ به | پس له قرآن نه | دوئ ایمان راوړی ـ

پاره لویه بربادی ده ، آخر دَ دے (قرآن) نه پس به په کومه خبره دوئ ایمان راوړی ـ

سُوْرَةُ النَّبَإِ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | اَرْبَعُوْنَ اٰيَةً وَّفِيْهَا رُكُوْعَانِ

سوره نبا، په مکه کښے نازل شوا | (شروع) دَالله په نامه چه لوئے مهربان ډیر زیات رحم کوونکے دے | په دے کښے ۴۰ آیتونه او ۲ رکوع دی

دَالله په نامه شروع چه لوئے مهربان دَ ډیر زیات رحم خاوند دے

عَمَّ يَتَسَآءَلُوْنَ ۝١ عَنِ النَّبَاِ الْعَظِيْمِ ۝٢ الَّذِيْ هُمْ فِيْهِ

دَ څهٔ څیز په باره کښے | دوئی له یو بل نه تپوس کوی | دَ یو لوئے خبر په حقله | هغه چه دوئی په هغے کښے

داخلق دَ څهٔ څیز په حقله دَ یو بل نه تپوس کوی ، دَ هغه لوئے خبر (قیامت) په حقله چه دوئی پکښے

مُخْتَلِفُوْنَ ۝٣ كَلَّا سَيَعْلَمُوْنَ ۝٤ ثُمَّ كَلَّا سَيَعْلَمُوْنَ ۝٥

اختلاف کوی | هیڅکله نه | ډیر زر به دوئی پوهه شی | بیا | هیڅکله نه | زر به دوئی پوهه شی۔

اختلاف کوی ؟ داسے پکار نهٔ دی دوئی به زر پوهه شی او داسے پکار نهٔ دی دوئی به زر پوهه شی (چه قیامت حق

اَلَمْ نَجْعَلِ الْاَرْضَ مِهٰدًا ۝٦ وَّالْجِبَالَ اَوْتَادًا ۝٧ وَّخَلَقْنٰكُمْ اَزْوَاجًا ۝٨

آیا نهٔ دهٔ جوړه کړے مونږ | زمکه | یو فرش؟ | او غرونه | میخونه | او مونږ پیدا کړئ تاسو | جوړے جوړے

دے) آیا مونږ زمکه فرش کړے نهٔ دهٔ ؟ او غرونه مو پرے میخونه کړی نهٔ دی؟ او مونږ تاسو جوړے جوړے پیدا کړئ۔

وَّجَعَلْنَا نَوْمَكُمْ سُبَاتًا ۝٩ وَّجَعَلْنَا الَّيْلَ لِبَاسًا ۝١٠ وَّجَعَلْنَا النَّهَارَ

او جوړ کړے دے مونږ | خوب ستاسو | ارام | او جوړه کړه مونږ | شپه | لباس (پردهٔ) | او جوړه کړه مونږ | ورځ

او خوب مو درله آرام وګرځولو ، او مونږ شپه دَ پردے څیز جوړ کړو او ورځ مو دَ روزئ ګټلو

مَعَاشًا ۝١١ وَّبَنَيْنَا فَوْقَكُمْ سَبْعًا شِدَادًا ۝١٢ وَّجَعَلْنَا سِرَاجًا وَّهَّاجًا ۝١٣

(ذریعه دَ) معاش | او جوړ کړل مونږ | دَ پاسه ستاسو | اووهٔ | سخت (اسمانونه) | او جوړه کړه مونږ | یوه ډیوه | پړقیدونکے

ذریعه وګرځوله او مونږ ستاسو دَ پاسه اووهٔ مضبوط اسمانونه جوړ کړل او مونږ یوه روښانه ډیوه (یعنی نُور) جوړ کړه

وَّاَنْزَلْنَا مِنَ الْمُعْصِرٰتِ مَآءً ثَجَّاجًا ۝١٤ لِّنُخْرِجَ بِهٖ حَبًّا

او رانښکته کړے مونږ | له ډکو وریځو نه | او بهٔ | بنهٔ را وریدونکے | چه را وُباسو مونږ | په دے سره | دانه

او مونږ له ډکو وریځو نه په شیبو شیبو باران راوُورولو ، چه مونږ له دے (باران) نه غله او ګیاه

وَّنَبَاتًا ۝١٥ وَّجَنّٰتٍ اَلْفَافًا ۝١٦ اِنَّ يَوْمَ الْفَصْلِ كَانَ مِيْقَاتًا ۝١٧ يَّوْمَ يُنْفَخُ

او ګیاه | او باغونه | ډیر ګڼړ | بیشکه | ورځ دَ فیصلے | یو مقرر وخت دے | هغه ورځ چه پُوک به وهلے شی

او ګور ګور باغونه رابرسیره کړو ، بیشکه دَ فیصلے دَ ورځے وخت مقرر دے چه شپیلئ به

فِي الصُّوْرِ فَتَاْتُوْنَ اَفْوَاجًا ۝١٨ وَّفُتِحَتِ السَّمَآءُ فَكَانَتْ اَبْوَابًا ۝١٩

په شپیلئ کښے | پس رابه شئ تاسو | ډلے ډلے | او پرانستلے به شی | آسمان | نو شی به | دروازے

پُوک وهلے شی ، نو تاسو به ټولی ټولی راځئ ، او آسمان به پرانستلے شی نو ټول به دروازے دروازے شی

وَّسُيِّرَتِ الْجِبَالُ فَكَانَتْ سَرَابًا ۝٢٠ اِنَّ جَهَنَّمَ كَانَتْ مِرْصَادًا ۝٢١

او روان به کړے شی | غرونه | نو شی به | شګه | بیشکه | دوزخ | دے | انتظار کوونکے۔

او غرونه به والوزولے شی نو هغه به دَ شګو په شان شی ، بیشکه جهنّم په تاک کښے دے۔

الجزء ۳۰

لِّلطّٰغِيْنَ مَاٰبًا ﴿٢٢﴾ لّٰبِثِيْنَ فِيْهَآ اَحْقَابًا ﴿٢٣﴾ لَا يَذُوْقُوْنَ فِيْهَا بَرْدًا وَّلَا

دَ پاره دَ سرکشانو | ټیکاو ځره ده | ایسارېدونکی | په دے کښے | تر اوږدو مودو | نه به څکی دوی | په دے کښے | یخوالے | او نه

دَ سرکشانو ټیکاو ځره ده چه په مودو مودو به پکښے وُسیږی، نه به پکښے دَ یخنۍ خوند څکی او نه دَ څښلو

شَرَابًا ﴿٢٤﴾ اِلَّا حَمِيْمًا وَّغَسَّاقًا ﴿٢٥﴾ جَزَآءً وِّفَاقًا ﴿٢٦﴾ اِنَّهُمْ كَانُوْا لَا يَرْجُوْنَ

دَ څښلو څه څیز | مگر | گرمے اوبۀ | او زوے | (دا به) بدله وی | پوره پوره | بیشکه دوی | اُمید نۀ لرلو

څه څیز، سوا دَ یشیدلو اوبو او دَ وینو زوونه (دا) پوره پوره بدله ده، دا ځکه چه دوی دَ حساب کتاب (دَ

حِسَابًا ﴿٢٧﴾ وَّكَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا كِذَّابًا ﴿٢٨﴾ وَكُلَّ شَيْءٍ اَحْصَيْنٰهُ كِتٰبًا ﴿٢٩﴾

دَ حساب | او دروغ به ئے گڼړل | زمونږ آیتونه | په دروغ گڼړلو سره | او هر څیز | مونږ شمیرلے دے | په کتاب کښے

ورځے) اُمید نۀ لرلو، او زمونږ آیتونه ئے سرو پا دروغ گڼړل او مونږ هر څیز په لیک کښے راجمع کړے دے.

فَذُوْقُوْا فَلَنْ نَّزِيْدَكُمْ اِلَّا عَذَابًا ﴿٣٠﴾ اِنَّ لِلْمُتَّقِيْنَ مَفَازًا ﴿٣١﴾

پس وُڅکئ | پس هیڅ کله به زیات نۀ کړو مونږ تاسو | مگر عذاب | بیشکه | پرهیزګارانو دَ پاره | کامیابی ده.

نو اوس خوند وُڅکئ مونږ به تاسو ته نور څۀ نه خو هم دغه عذاب درزیاتوو، بیشکه پرهیزګارو له کامیابی ده.

حَدَآئِقَ وَاَعْنَابًا ﴿٣٢﴾ وَّكَوَاعِبَ اَتْرَابًا ﴿٣٣﴾ وَّكَاْسًا دِهَاقًا ﴿٣٤﴾ لَا يَسْمَعُوْنَ فِيْهَا

باغونه | او انگور (به وی) | او پیغلے جینکئ | همزولے (به وی) | او پیالے | ډکے شوے | دوی به نۀ آوری | په هغے کښے

(دوی دَ پاره) باغونه او انگور به وی او همزولے پیغلے جینکئ او ډک تر خُلے خُلے جامونه دوی به هلته نۀ عبث

لَغْوًا وَّلَا كِذّٰبًا ﴿٣٥﴾ جَزَآءً مِّنْ رَّبِّكَ عَطَآءً حِسَابًا ﴿٣٦﴾

عبث خبرے | او نۀ | دروغ | بدله | ستا دَ رب له طرف نه | درکولے به شی | په حساب

خبرے آوری او نۀ دروغ. دا بدله ستا دَ رب له طرف نه پوره پوره انعام دے.

رَّبِّ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا الرَّحْمٰنِ لَا يَمْلِكُوْنَ مِنْهُ

چه رب دے دَ آسمانونو | او دَ زمکے | او څۀ چه | دَ دے دواړو په مینځ کښے دی | ډیر مهربان | دوی وس نۀ لری | دۀ سره

چه دَ آسمانونو او دَ زمکے او دَ دے دواړو ترمینځه دَ څیزونو پالونکے دے، مهربان دے، هیڅوک تړے نۀ (هیڅ قسم له)

خِطَابًا ﴿٣٧﴾ يَوْمَ يَقُوْمُ الرُّوْحُ وَالْمَلٰٓئِكَةُ صَفًّا لَّا يَتَكَلَّمُوْنَ اِلَّا

دَ خبرے کولو | په کومه ورځ چه به | وُدریږی | رُوح الامین | او فرښتے | صف تړلے | خبرے به نۀ شی کولے | مگر

مطالبه نۀ شی کولے، په هغه ورځ چه جبرائیل او ټولے فرښتے به صف تړلے ولاړے وی، هیڅوک به خبرے نۀ شی

مَنْ اَذِنَ لَهُ الرَّحْمٰنُ وَقَالَ صَوَابًا ﴿٣٨﴾ ذٰلِكَ الْيَوْمُ الْحَقُّ فَمَنْ شَآءَ

هغه چه | اجازت ورکړی | دۀ ته | رحمٰن | او هغه به وائی | خبره سمه | دا | ورځ ده | حقه | نو څوک چه | غواړی

کولے خو چا ته چه مهربان خدائے اجازت ورکړی او هغه خبره هم سمه کوی، دغه ورځ حقه ده، نو دَ چا چه خوښه

اتَّخَذَ اِلٰى رَبِّهٖ مَاٰبًا ﴿٣٩﴾ اِنَّآ اَنْذَرْنٰكُمْ عَذَابًا قَرِيْبًا ۖ يَّوْمَ

وُدِ نیسی | خپل رب سره | ټیکاو ځره | بیشکه مونږ | اُویرولئ تاسو | دَ یو عذاب نه | چه نزدے راتلونکے دے | په هغه ورځ

وی نو خپل رب ته دِ رجوع وُکړی، بیشکه مونږ تاسو دَ نزدے راتلونکی عذاب نه اُویرَو لئ، په هغه ورځ چه

يَّنْظُرُ الْمَرْءُ مَا قَدَّمَتْ يَدٰهُ وَيَقُوْلُ الْكٰفِرُ يٰلَيْتَنِيْ كُنْتُ تُرٰبًا ﴿٤٠﴾

وینی به | بنیادم | څه چه | وړاندې لیږلي وي | دده دواړو لاسونو | او وائي به | کافر | اے کاش! | زه وے | خاوړے

هرسړے به خپل عمل په خپلو سترګو وینی او کافر به وائي چه اے کاش! که زه خاوړو سره خاوړے وے۔

سُوْرَةُ النّٰزِعٰتِ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | سِتٌّ وَّاَرْبَعُوْنَ اٰيَةً وَّفِيْهَا رُكُوْعَانِ

سوره نازعات په مکه کښے نازل شو | (شروع) د الله په نامه چه ډیر مهربان ډیر زیات رحم کوونکے دے | او په دے کښے ۴۶ آیتونه او ۲ رکوع دی

د الله په نامه شروع کوم چه ډیر مهربان د ډیر زیات رحم خاوند دے

وَالنّٰزِعٰتِ غَرْقًا ﴿١﴾ وَّالنّٰشِطٰتِ نَشْطًا ﴿٢﴾ وَّالسّٰبِحٰتِ سَبْحًا ﴿٣﴾

قسم دے په روح راویستونکو | (په جوړونو کښے) ورننوتلی | او په هغے چه په نرمئ روحونه راوباسی | او په لامبو وهونکو | په تیزئ سره

قسم دے په هغه فرښتو چه په سختئ سره روحونه راوباسی او په هغے چه ډیر په نرمئ روحونه راکاږی او چه (په فضا کښے) لامبو وهی

فَالسّٰبِقٰتِ سَبْقًا ﴿٤﴾ فَالْمُدَبِّرٰتِ اَمْرًا ﴿٥﴾ يَوْمَ تَرْجُفُ الرَّاجِفَةُ ﴿٦﴾

بیا په وړاندې کیدونکو | وړاندې کیدو سره | بیا په انتظام کوونکو | د هر کار | په هغه ورځ چه | وبه خوزیږی | خوزیدونکے۔

ادیوتریله ور وړاندې کیږی، او د هر کار تدبیر کوی (چه قیامت به راځی) په هغه ورځ چه رپیدونکے زمکه ورپیږی

تَتْبَعُهَا الرَّادِفَةُ ﴿٧﴾ قُلُوْبٌ يَّوْمَئِذٍ وَّاجِفَةٌ ﴿٨﴾ اَبْصَارُهَا خَاشِعَةٌ ﴿٩﴾

را به شی د پسے | بل وروستو راتلونکے | زړونه به | په دغه ورځ | دردزیږی | سترګے به د دوئ | ټیټے وی

ورپسے به دویم (زوردار آواز) راشی، ډیر زړونه به په دغه ورځ درزیږی د هغوئ سترګے به کوزے وی۔

يَقُوْلُوْنَ ءَاِنَّا لَمَرْدُوْدُوْنَ فِي الْحَافِرَةِ ﴿١٠﴾ ءَاِذَا كُنَّا عِظَامًا نَّخِرَةً ﴿١١﴾

دوئ وائي | آیا مونږ به | بیرته وګرځولے شو | و دوه مینی حالت ته؟ | آیا هر کله چه شو مونږ | هډوکی | رژیدلی

دوئ وائي چه بنه! مونږ به لا بیا هم راژوندی کیږو؟ د هغے نه پس چه رژیدلی هډوکی شو؟

قَالُوْا تِلْكَ اِذًا كَرَّةٌ خَاسِرَةٌ ﴿١٢﴾ فَاِنَّمَا هِيَ زَجْرَةٌ وَّاحِدَةٌ ﴿١٣﴾ فَاِذَا

دوئ وائي | چه دا خو به | د غه وخت | واپسی وی | د تاوان | پس بیشکه | هغه به | یوه چغه وی | پس د غه وخت به

وائي چه بیره دا خو به هسے د تاوان نه ډکه واپسی وی (واوره!) هغه خو به بس یوه زورداره چغه وی، او دوئ به

هُمْ بِالسَّاهِرَةِ ﴿١٤﴾ هَلْ اَتٰىكَ حَدِيْثُ مُوْسٰى ﴿١٥﴾ اِذْ نَادٰىهُ رَبُّهٗ

دوئ وی | په یوه ډاګه | آیا رسیدلے ده تاته | خبره | د موسیٰ | هر کله چه | آواز و کړو ده ته | د ده رب

فورًا میدان (د حشر) کښے موجود وی، آیا تاته د موسیٰ د واقعے خبر را رسیدلے دے، چه خپل رب ورته د طوی په

بِالْوَادِ الْمُقَدَّسِ طُوًى ﴿١٦﴾ اِذْهَبْ اِلٰى فِرْعَوْنَ اِنَّهٗ طَغٰى ﴿١٧﴾ فَقُلْ

په وادئ | پاکه | د طویٰ کښے | لاړ شه | طرف د فرعون ته | بیشکه ده | سرکشی وکړه | پس وو ایه

پاکیزه وادئ کښے آواز وکړه (او ورته حکم وکړو چه) فرعون ته ورشه چه هغه د حد نه تیر شوے دے نو ورته وو ایه

هَلْ لَّكَ اِلٰٓى اَنْ تَزَكّٰى ﴿١٨﴾ وَاَهْدِيَكَ اِلٰى رَبِّكَ فَتَخْشٰى ﴿١٩﴾

آیا ستا (خواهش شته) | چه ته پاک شے | او زه لاره وښایم تاته | ستا د رب طرف ته | چه ته اُویریږے۔

چه آیا د پاکیدو خواهش لرے؟ او چه زه درته د خپل رب لاره وښایم چه ته ترے نه ویره وکړے

فَاَرٰىهُ الْاٰيَةَ الْكُبْرٰى ﴿٢٠﴾ فَكَذَّبَ وَعَصٰى ﴿٢١﴾ ثُمَّ اَدْبَرَ يَسْعٰى ﴿٢٢﴾

نو دهٔ وښودله دهٔ ته | هغه نخښه | لويه | نو دهٔ دروغ وګڼړله | او نافرماني ئے وکړه | بيا | بيرته وګرځيدلو | کوشش کوونکے

نو هغهٔ ته ئے يوه لويه معجزه وښودله، نو (فرعون) هغه دروغ وګڼړله او نافرماني ئے وکړه، بيا مخ په شا په منډه لاړ

فَحَشَرَ فَنَادٰى ﴿٢٣﴾ فَقَالَ اَنَا رَبُّكُمُ الْاَعْلٰى ﴿٢٤﴾ فَاَخَذَهُ اللّٰهُ نَكَالَ

بيائے جمع کړل | بيائے آواز وکړو | پس وئے وئيل | چه زهٔ | ستاسو رب يم | اُوچت | پس ونيولو دے | الله | په عذاب

نو خلق ئے راټول کړل او اعلان ئے وکړو نو وُئے وئيل چه زهٔ ستاسو لوئے رب يم - نو الله تعالىٰ په آخرت او دنيا دواړو

الْاٰخِرَةِ وَالْاُوْلٰى ﴿٢٥﴾ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَعِبْرَةً لِّمَنْ يَّخْشٰى ﴿٢٦﴾ ءَاَنْتُمْ اَشَدُّ

دَ آخرت | او دَ دُنيا کښے | بيشکه | په دے کښے | عبرت دے | دَ هغه چا دَپاره | چه ويريږی | آيا تاسو | ګران يئ

کښے عذاب ورکړو - په دے کښے هغه خلقو دَ پاره عبرت دے چه (دَ الله نه) ويريږی، آيا ستاسو پيدا او ښت

خَلْقًا اَمِ السَّمَآءُ ۚ بَنٰىهَا ﴿٢٧﴾ رَفَعَ سَمْكَهَا فَسَوّٰىهَا ﴿٢٨﴾ وَاَغْطَشَ

په پيدا وښت کښے | يا آسمان | چه هغه ئے جوړ کړو | اُوچت ئے کړو | چت دَ هغے | بيائے برابر کړو هغه | او تياره ئے کړه

ګران دے او که دَ آسمان ؟ چه هغهٔ جوړ کړو، دَ هغے چت ئے اُوچت کړو او برابر ئے کړو - او شپه ئے ورله

لَيْلَهَا وَاَخْرَجَ ضُحٰىهَا ﴿٢٩﴾ وَالْاَرْضَ بَعْدَ ذٰلِكَ دَحٰىهَا ﴿٣٠﴾ اَخْرَجَ مِنْهَا

شپه دَ هغے | او راوے ويستله | رڼړا دَ ورځے | او زمکه ئے هم | دَ دے نه پس | وغوړوله | راوے ويستلے | له دے نه

تيارهٔ کړه او ورځ ئے ورله رڼړا رو ښانه کړه ، او زمکه ئے دَ دے نه پس وغوړوله دَ هغے نه ئے اوبهٔ او

مَآءَهَا وَمَرْعٰىهَا ﴿٣١﴾ وَالْجِبَالَ اَرْسٰىهَا ﴿٣٢﴾ مَتَاعًا لَّكُمْ وَلِاَنْعَامِكُمْ ﴿٣٣﴾

اُوبهٔ دَ دے | او ګياه دَ دے | او غرونه ئے | محکم ودرول | (دا) فائده ده | تاسو دپاره | او دَپاره دَ څاروو ستاسو

وښو ګانے راوُويستلے - او غرونه ئے پرے قائم کړل ، (دا هر څهٔ) ستاسو او ستاسو دَ څاروو دَ فائدے دَپاره دی

فَاِذَا جَآءَتِ الطَّآمَّةُ الْكُبْرٰى ﴿٣٤﴾ يَوْمَ يَتَذَكَّرُ الْاِنْسَانُ مَا سَعٰى ﴿٣٥﴾

بيا هر کله چه راشی | هغه هنګامه | لويه | په کومه ورځ چه | ياد به کړی | انسان | څهٔ چه دهٔ کوشش کړے وی

نو څهٔ وخت چه (دَ قيامت) هغه لويه هنګامه راشی ، نو بنيادم ته به خپل عملونه يو په يو را ياد شی ،

وَبُرِّزَتِ الْجَحِيْمُ لِمَنْ يَّرٰى ﴿٣٦﴾ فَاَمَّا مَنْ طَغٰى ﴿٣٧﴾ وَاٰثَرَ

او راښکاره به کړے شی | دوزخ | هر ليدونکی دَپاره | پس چا چه سرکشی وکړه | او غوره کړے ئے وی

او هر ليدونکی ته به دوزخ راښکاره کړے شی ، نو چا چه سرکشی کړی وی ، او دَ دُنيا ژوند

الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا ﴿٣٨﴾ فَاِنَّ الْجَحِيْمَ هِيَ الْمَاْوٰى ﴿٣٩﴾ وَاَمَّا مَنْ خَافَ

ژوند | دَ دُنيا | نو بيشکه | هم دوزخ | (دَ دهٔ) ټيکاڼهٔ ده | او ليکن | څوک چه | ويريدلے وی

ئے غوره کړے وی ، نو دوزخ به دَ هغهٔ ټيکاڼهٔ وی ، او څوک چه دَ خپل رب په وړاندِ

مَقَامَ رَبِّهٖ وَنَهَى النَّفْسَ عَنِ الْهَوٰى ﴿٤٠﴾ فَاِنَّ الْجَنَّةَ

په مخکښے له اودريدو نه | دَ رب خپل | او منع کړے ئے وی | نفس | له خواهشاتو نه | نو يقيناً | جنت

دَ پيښئ نه ويريدلے وی ، او خپل نفس ئے دَ خواهشاتو نه منع کړے وی ، نو جنت دَ هغهٔ

هِيَ الْمَأْوٰى ﴿٤١﴾ يَسْئَلُوْنَكَ عَنِ السَّاعَةِ اَيَّانَ مُرْسٰهَا ﴿٤٢﴾

دَ دۀ ټيکاو ځاى دى | دوى تپوس کوى له تانه | دَ قيامت په حقله | چه کله به وى | واقع کيدل دَ دے
ټيکاو ځاى دے. دوئ له تانه دَ قيامت په حقله تپوس کوى چه کله به راځى؟

فِيْمَ اَنْتَ مِنْ ذِكْرٰهَا ﴿٤٣﴾ اِلٰى رَبِّكَ مُنْتَهٰهَا ﴿٤٤﴾ اِنَّمَآ اَنْتَ

څۀ تعلق دے | ستا | دَ دِے دَ علم سره | هم ستا دَ رب طرف ته دے | انتها دَ دے | بيشکه ته خو
تا نه دَ دے وخت څۀ معلوم دے؟ دَ دِے آخرى علم صرف الله سره دے، ستا کار خو صرف

مُنْذِرُ مَنْ يَّخْشٰهَا ﴿٤٥﴾ كَاَنَّهُمْ يَوْمَ يَرَوْنَهَا لَمْ يَلْبَثُوْٓا

ويرَونکے يئے | هغه چا له چه ويريږى له دے نه | لکه چه دوئ | په کومه ورځ | وو وينى هغه | (نو داسے به ښکارى) چه دوئ نه دى پاتے شوى
هغه څوک ويرول دى چه دَ قيامت نه ويريږى، دوئ چه دَ قيامت ورځ ووينى نو داسے به وى لکه چه (په دنيا کښے ئے)

اِلَّا عَشِيَّةً اَوْ ضُحٰهَا ﴿٤٦﴾

مگر | يو ماښام | يا په قدر دَ څاښت
هيله دَ نورَ دَ زيږى يا دَ څاښت هومره وخت تير کړے وى

سُوْرَةُ عَبَسَ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ اثْنَتَانِ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | وَاَرْبَعُوْنَ اٰيَةً وَّفِيْهَا رُكُوْعٌ وَّاحِدٌ

سورة عبس په مکه کښے نازل شوے | (شروع) دَ الله په نامه چه ډير مهربان ډير زيات رحم کوونکے دے | په دے کښے ۴۲ آيتونه او يو رکوع ده
دَ الله په نامه شروع کوم چه ډير مهربان دَ ډير زيات رحم خاوند دے

عَبَسَ وَتَوَلّٰٓى ﴿١﴾ اَنْ جَآءَهُ الْاَعْمٰى ﴿٢﴾ وَمَا يُدْرِيْكَ لَعَلَّهٗ يَزَّكّٰٓى ﴿٣﴾

ناراضه شو | او مخ ئے واړولو | چه راغے ورته | يو ړوند | او تا ته څۀ خبر دے | چه شايد دے | پاک شى
تندئے تريو کړو او مخ ئے واړولو چه يو ړوند ورته راغے. او تا ته څۀ معلومه ده چه هغه (په دين زده کولو) پاک شى.

اَوْ يَذَّكَّرُ فَتَنْفَعَهُ الذِّكْرٰى ﴿٤﴾ اَمَّا مَنِ اسْتَغْنٰى ﴿٥﴾ فَاَنْتَ لَهٗ

يا دے نصيحت حاصل کړى | نو نفع ورکړى دۀ ته | نصيحت | ليکن | څوک چه | غنى دے | نو ته | طرف دَ هغۀ ته
يا نصيحت اومنى نو هغه ورته فائده ورکړى، پاتے شو هغه سړے چه بے پرواه دے، نو تا هغۀ ته توجه

تَصَدّٰى ﴿٦﴾ وَمَا عَلَيْكَ اَلَّا يَزَّكّٰى ﴿٧﴾ وَاَمَّا مَنْ جَآءَكَ يَسْعٰى ﴿٨﴾

مخ کوے | او نشته په تا (څۀ گناه) | چه هغه پاکى نۀ اختياروى | او ليکن | هغه څوک | چه راغے تا ته | په منډه
وُکړه. او ستا په کښے څۀ تاوان دے که هغه پاک نۀ شى؟ او څوک چه تا له په منډه منډه راغے.

وَهُوَ يَخْشٰى ﴿٩﴾ فَاَنْتَ عَنْهُ تَلَهّٰى ﴿١٠﴾ كَلَّآ اِنَّهَا تَذْكِرَةٌ ﴿١١﴾ فَمَنْ شَآءَ

او دے ويريږى (دَ الله نه) | پس ته | له هغۀ نه | غفلت کوے | هيڅ کله نه | بيشکه دا | يو نصيحت دے | نو څوک چه | غواړى
او هغه (دَ الله نه) ويريږى، نو ته دَ هغۀ نه بے پرواه شوے، بيا داسے مۀ کوه دا خو يو نصيحت دے نو چه دَ چا خوښه وى

ذَكَرَهٗ ﴿١٢﴾ فِيْ صُحُفٍ مُّكَرَّمَةٍ ﴿١٣﴾ مَّرْفُوْعَةٍ مُّطَهَّرَةٍ ﴿١٤﴾ بِاَيْدِيْ سَفَرَةٍ ﴿١٥﴾

دا دِ ياد کړى | په صحيفو کښے | چه عزتمندے دى | ډيرے اُوچتے | (او) پاکے دى | په لاسونو کښے دَ (هغه) ليکونکو دى
هغه دِ قبول کړى، په عزتمندو صحيفو کښے دے چه اُوچتے او پاکيزه دى، دا داسے ليکونکو (فرښتو) په لاسونو کښے دى

كِرَامٍۭ بَرَرَةٍ ﴿١٦﴾ قُتِلَ الْاِنْسَانُ مَآ اَكْفَرَهٗ ﴿١٧﴾ مِنْ اَيِّ شَيْءٍ خَلَقَهٗ ﴿١٨﴾

چه عزتمندي | نیک کرداره دي | هلاک دې شي | انسان | څه ډېر ناشکره دی | له کوم یو څیز نه | الله پیدا کړو دی

چه عزتمند (او) نیکانه دي، بنیادم دې هلاک شي دی څومره ډیر ناشکره دی د څومره حقیر څیز نه الله پیدا کړے دے

مِنْ نُّطْفَةٍ ۭ خَلَقَهٗ فَقَدَّرَهٗ ﴿١٩﴾ ثُمَّ السَّبِيْلَ يَسَّرَهٗ ﴿٢٠﴾ ثُمَّ اَمَاتَهٗ

له یوې نطفې نه | دے ئې پیدا کړو | بیا اندازه ئې کړو دے | بیائې | لاره | آسانه کړه ده ته | بیائې | مړ کړو دے

د یو څاڅکي نه الله پیدا کړے دے بیائې په یوه خاص اندازه جوړ کړو، بیائې ورته لاره آسانه کړه، بیائې مړ کړو نو قبر

فَاَقْبَرَهٗ ﴿٢١﴾ ثُمَّ اِذَا شَآءَ اَنْشَرَهٗ ﴿٢٢﴾ كَلَّا لَمَّا يَقْضِ مَآ اَمَرَهٗ ﴿٢٣﴾

بیائې په گور کړو دے | بیا هر کله چه | وغواړي | دوباره به ئې راپاڅوي | هرگز نه! | ده تعمیل ونه کړو | څه چه ئې ده ته حکم وکړو

کښې ئې کېښودو. بیا چه کله ئې خوښه شي نو راژوندے به ئې کړي، البته ده (د خپل رب) حکم پوره نه کړو.

فَلْيَنْظُرِ الْاِنْسَانُ اِلٰى طَعَامِهٖٓ ﴿٢٤﴾ اَنَّا صَبَبْنَا الْمَآءَ صَبًّا ﴿٢٥﴾ ثُمَّ شَقَقْنَا

پس پکار ده چه وگوري | انسان | د خپل طعام طرف ته | چه مونږ راوورولے | اوبه په راورولو سره | بیا مونږ وچوله

نو بنیادم له پکار دي چه خپل خوراک ته وگوري. چه مونږه اوبه راوورولے، بیا مو زمکه

الْاَرْضَ شَقًّا ﴿٢٦﴾ فَاَنْۢبَتْنَا فِيْهَا حَبًّا ﴿٢٧﴾ وَّعِنَبًا وَّقَضْبًا ﴿٢٨﴾ وَّزَيْتُوْنًا

زمکه | په چولو سره | بیا راوټوکول مونږ | په دې کښې | غله | او انگور | او سبزیانې | او زیتون

وچوله، نو په هغې کښې مو غلې او انگور او ترکارئ او زیتون

وَّنَخْلًا ﴿٢٩﴾ وَّحَدَآئِقَ غُلْبًا ﴿٣٠﴾ وَّفَاكِهَةً وَّاَبًّا ﴿٣١﴾ مَّتَاعًا لَّكُمْ

او قجورې | او باغونه | گڼ | او میوې | او گیاه | د ژوندن سامان | تاسو د پاره

او قجورې او گڼ گڼ باغونه او رنگ رنگ میوې او گیاه زرغون کړل چه ستاسو او ستاسو د څارو

وَلِاَنْعَامِكُمْ ﴿٣٢﴾ فَاِذَا جَآءَتِ الصَّآخَّةُ ﴿٣٣﴾ يَوْمَ يَفِرُّ الْمَرْءُ مِنْ اَخِيْهِ ﴿٣٤﴾

او ستاسو د څارو (د پاره) | بیا هر کله چه | راشي | آواز سخت | په هغه ورځ | چه تښتي به | سړے | له خپل ورور نه

په کار راځي، نو هر کله چه (د قیامت) چغه راشي، په دغه ورځ به سړے د خپل ورور او

وَاُمِّهٖ وَاَبِيْهِ ﴿٣٥﴾ وَصَاحِبَتِهٖ وَبَنِيْهِ ﴿٣٦﴾ لِكُلِّ امْرِئٍ مِّنْهُمْ يَوْمَئِذٍ

او له خپلې مور نه | او له خپل پلار نه | او له خپلې ښځې نه | او له خپلو ځامنو نه | هر سړي | ته به | له دوئ نه | په دغه ورځ

خپلې مور او خپل پلار، او خپلې ښځې او خپل اولاد نه تښتي، چه په دوئ کښې د هر سړي به داسے حال وي چه

شَاْنٌ يُّغْنِيْهِ ﴿٣٧﴾ وُجُوْهٌ يَّوْمَئِذٍ مُّسْفِرَةٌ ﴿٣٨﴾ ضَاحِكَةٌ مُّسْتَبْشِرَةٌ ﴿٣٩﴾

یو فکر وي | چه دے به لاتعلقه کړي | څه مخونه به | په دغه ورځ | روښانه وي | خندېدونکي به وي | خوشحاله به وي.

د بل (د پوښتنې نه) به ئې غافله کړے وي، څنې مخونه به په دغه ورځ روښانه وي خاندې به خوشحاله به وي.

وَوُجُوْهٌ يَّوْمَئِذٍ عَلَيْهَا غَبَرَةٌ ﴿٤٠﴾ تَرْهَقُهَا قَتَرَةٌ ﴿٤١﴾

او څه مخونه به | په دغه ورځ | (داسے وي) چه په هغې به | دوړه وي | خوربه وي په هغې باندې | توروالے

او څنې مخونه به په دغه ورځ خړ وي، چه د غم تیاره به پرې راخوره شوې وي

أُولَٰئِكَ هُمُ الْكَفَرَةُ الْفَجَرَةُ ﴿٤٢﴾

هم دا خلق دی | کافران | بد کاره

هم دغه کسان بدعمله کافران دی۔

سُورَةُ التَّكْوِيرِ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | تِسْعٌ وَّعِشْرُوْنَ اٰيَةً وَّرُكُوْعٌ وَّاحِدٌ

سورهٔ تکویر په مکه کښې نازل شوې او | (شروع) دَ الله په نامه چه لوئے مهربان ډیر زیات رحم کوونکے دے | په دے کښې ۲۹ آیتونه او یوه رکوع ده

دَ الله په نامه شروع کوم چه لوئے مهربان دَ ډیر زیات رحم خاوند دے

إِذَا الشَّمْسُ كُوِّرَتْ ﴿١﴾ وَإِذَا النُّجُومُ انكَدَرَتْ ﴿٢﴾ وَإِذَا الْجِبَالُ

هر کله چه | نور | راونغښتے شي | او هر کله چه | ستورې | بے نوره شي | او هر کله چه | غرونه

هر کله چه نور راونغښتے شي ، او څهٔ وخت چه ستورې بے نوره شي او هر کله چه غرونه

سُيِّرَتْ ﴿٣﴾ وَإِذَا الْعِشَارُ عُطِّلَتْ ﴿٤﴾ وَإِذَا الْوُحُوشُ حُشِرَتْ ﴿٥﴾

روان کړے شي | او هر کله چه | دَ لسو میاشتو بلاربے اوښے | هیرے کړے شي | او هر کله چه ځنګلي ځناور | راجمع کړے شي۔

روان کړے شي او لس میاشتنۍ بلاربے (اوښے) هیرے کړے شي ، او څهٔ وخت چه ځنګلي ځناور راجمع کړے شي

وَإِذَا الْبِحَارُ سُجِّرَتْ ﴿٦﴾ وَإِذَا النُّفُوسُ زُوِّجَتْ ﴿٧﴾ وَإِذَا الْمَوْءُودَةُ

او هر کله چه | دریابونه | دَ اور په شان لمبه کړے شي | او هر کله چه روحونه | (دَ بدنونو سره) جمع کړے شي | او کله چه ژوندۍ ښخے شوے (جینۍ)

او هر کله چه دریابونه اور شي ، او روحونه (دَ بدنونو سره) جوړې کړے شي ، او چه دَ ژوندۍ ښخو کړے شوو

سُئِلَتْ ﴿٨﴾ بِأَيِّ ذَنبٍ قُتِلَتْ ﴿٩﴾ وَإِذَا الصُّحُفُ نُشِرَتْ ﴿١٠﴾ وَإِذَا السَّمَاءُ

تپوس وُشي | چه په کومه ګناه | هغه وژلے شوے وه | او هر کله چه | عملنامے | پرانستلے شي | او هر کله چه | دَ آسمان

جینکو نه تپوس وُشي چه په کومے ګناه وژلے شوے وے او څهٔ وخت چه عملنامے پرانستلے شي او څهٔ وخت چه دَ آسمانونو

كُشِطَتْ ﴿١١﴾ وَإِذَا الْجَحِيمُ سُعِّرَتْ ﴿١٢﴾ وَإِذَا الْجَنَّةُ أُزْلِفَتْ ﴿١٣﴾ عَلِمَتْ

پوستکے وُ ویستلے شي | او هر کله چه | دوزخ | سُور کړے شي | او هر کله چه جنت | رانزدے کړے شي | نو پوهه به شي

پوستکے وُ ویستلے شي ، او هر کله چه دوزخ لمبه کړے شي ، او څهٔ وخت چه جنت رانزدے کړے شي ، نو هر نفس

نَفْسٌ مَّا أَحْضَرَتْ ﴿١٤﴾ فَلَا أُقْسِمُ بِالْخُنَّسِ ﴿١٥﴾ الْجَوَارِ

هر یو کس | په هغه څهٔ | چه دهٔ حاضر کړی دی | پس زهٔ قسم خورم | په بیرته ګرځیدُونکو سمو تلونکو | ګرځیدونکو

نه به خپل عمل معلوم شي ، نو زهٔ قسم خورم په راتاوېدونکو ، ګرځیدونکو پټیدونکو

الْكُنَّسِ ﴿١٦﴾ وَاللَّيْلِ إِذَا عَسْعَسَ ﴿١٧﴾ وَالصُّبْحِ إِذَا تَنَفَّسَ ﴿١٨﴾ إِنَّهُ

پټیدونکو ستورو | او په شپه | هر کله چه | راخوره شي | او په صبا | هر کله چه ساه واخلي | بیشکه دا

ستورو او په شپه چه راخوره شي او په سحر چه راوُخیژي ، بیشکه دا (قرآن)

لَقَوْلُ رَسُولٍ كَرِيمٍ ﴿١٩﴾ ذِي قُوَّةٍ عِندَ ذِي الْعَرْشِ مَكِينٍ ﴿٢٠﴾ مُّطَاعٍ

کلام دے | دَ فرښته | عزتمند دے | چه طاقت والا دهٔ | دَ عرش والا سره نزدے | دَ لوئے مرتبے والا دهٔ | خبره ئے منلے شي

دَ یو عزتمند فرښتے په ژبه (دا لیږلے شوے پیغام) دے چه ډیر مضبوط دے دَ عرش خاوند (الله) سره دَ لوئے مرتبے خاوند دے ، خبره ئے

ثَمَّ اَمِيْنٍ ﴿۲۱﴾ وَمَا صَاحِبُكُمْ بِمَجْنُوْنٍ ﴿۲۲﴾ وَلَقَدْ رَاٰهُ بِالْاُفُقِ الْمُبِيْنِ ﴿۲۳﴾

دَهغه ځای | امانتدار دے | او نهٔ دے ستاسو ملګرے | دیوانه | او دهٔ هغه لیدلے دے | دَ آسمان په واضحه کناره

هلته منلے شی او امانت ګر دے او ستاسو ملګرے (محمدؐ) لیونے نهٔ دے او دهٔ هغه (جبرائیل) دَ آسمان غاړے ته لیدلے هم دے

وَمَا هُوَ عَلَى الْغَيْبِ بِضَنِيْنٍ ﴿۲۴﴾ وَمَا هُوَ بِقَوْلِ شَيْطٰنٍ رَّجِيْمٍ ﴿۲۵﴾

او نهٔ وو هغه | (د) غیب (په معامله) کښے | شومتیا کوونکے | او نهٔ دے دا | قول | دَ شیطان | رټلے شوی

او دا پیغبرؐ دَ غیبو خبرو په ښودو لو کښے شوم نهٔ دے ، او دا کلام دَ رټلے شوی شیطان کلام نهٔ دے

فَاَيْنَ تَذْهَبُوْنَ ﴿۲۶﴾ اِنْ هُوَ اِلَّا ذِكْرٌ لِّلْعٰلَمِيْنَ ﴿۲۷﴾ لِمَنْ شَآءَ مِنْكُمْ

پس چرته | تاسو روان یئ | نهٔ وو دا (قرآن) مګر | نصیحت | دَ ټولو جهانونو دَ پاره | دَ هغه چا دَ پاره | چه غواړی | له تاسو نه

نو تاسو بل کوم اړخ ته روان یئ، دا (کتاب) خو بس ټول مخلوق ته یو نصیحت دے ، دَ هغه چا دَ پاره چه خوک له تاسو

اَنْ يَّسْتَقِيْمَ ﴿۲۸﴾ وَمَا تَشَآءُوْنَ اِلَّآ اَنْ يَّشَآءَ اللّٰهُ رَبُّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿۲۹﴾

چه په سمه لار روان شی | او نهٔ شئ غوښتلے تاسو | مګر | دا چه وغواړی | الله | چه رب دے | دَ ټولو جهانونو

نه په نیغه لاره تلل غواړی او تاسو هغه څهٔ غوښتلے شئ چه الله ئے وغواړی چه دَ ټولو جهانونو رب دے ۔

سُوْرَةُ الْاِنْفِطَارِ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | تِسْعَ عَشْرَةَ اٰيَةً وَّرُكُوْعٌ وَّاحِدٌ

سورة انفطار په مکه کښے نازل شو | (شروع) دَ الله په نامه چه لوئے مهربان ډیر زیات رحم کوونکے دے | او په دے کښے ۱۹ آیتونه او یو رکوع دے

دَ الله په نامه شروع کوم چه لوئے مهربان دَ ډیر زیات رحم خاوند دے

اِذَا السَّمَآءُ انْفَطَرَتْ ﴿۱﴾ وَاِذَا الْكَوَاكِبُ انْتَثَرَتْ ﴿۲﴾ وَاِذَا الْبِحَارُ

هر کله چه آسمان | وُچوی | او هر کله چه | ستوری | تس نس شی | او هر کله چه | سمندرونه

څهٔ وخت چه آسمان وُچوی ، او چه ستوری وُدوړیږی ، او دریابونه یو بل سره

فُجِّرَتْ ﴿۳﴾ وَاِذَا الْقُبُوْرُ بُعْثِرَتْ ﴿۴﴾ عَلِمَتْ نَفْسٌ مَّا قَدَّمَتْ وَ

ګډ شی | او هر کله چه | قبرونه | وُنړولے شی | نو پوهه به شی | هر یو نفس په هغه څهٔ چه | وړاندے ئے لیږلی دی | او

په بهیدو ګډ شی او هر کله چه قبرونه وُنړولے شی ، نو هر نفس ته به معلومه شی چه څهٔ ئے کړی دی او څهٔ ئے

اَخَّرَتْ ﴿۵﴾ يٰٓاَيُّهَا الْاِنْسَانُ مَا غَرَّكَ بِرَبِّكَ الْكَرِيْمِ ﴿۶﴾ الَّذِيْ خَلَقَكَ

چه وروستو پریښی دی | اے | انسان ! | ته څهٔ شیز دوکه کړے | دَ خپل رب کریم په باره کښے | هغه چه | ته ئے پیدا کړے

پریښی دی اے بنیاد مه ! ته دَ خپل کریم رب په حقله کوم څیز دوکه کړے ، هغه ذات چه ته ئے پیدا

فَسَوّٰىكَ فَعَدَلَكَ ﴿۷﴾ فِيْٓ اَيِّ صُوْرَةٍ مَّا شَآءَ رَكَّبَكَ ﴿۸﴾ كَلَّا بَلْ

بیا ئے ته درست کړے | بیا ئے میانه حال کړے | په کوم صورت کښے چه هم | دهٔ وغوښتل | جوړ ئے درکړو تا ته | هرګز نه | بلکه

کړے نو برابر ئے کړے نو میانه حال ئے کړے ، په کوم شکل چه ئے خوښه وه هغسے ئے جوړ کړے ۔ نه بلکه تاسو

تُكَذِّبُوْنَ بِالدِّيْنِ ﴿۹﴾ وَاِنَّ عَلَيْكُمْ لَحٰفِظِيْنَ ﴿۱۰﴾ كِرَامًا كَاتِبِيْنَ ﴿۱۱﴾

تاسو دروغ وګڼړل | جزاء او سزا | او بیشکه په تاسو باندے | محافظانے دی | عزتمند دی | لیکونکے

خو دَ قیامت نه انکار کوئ ، حال دا چه نګرانے فرښتے در باندِ مقرر دی چه شریفے لیکونکے دی ۔

يَعْلَمُوْنَ مَا تَفْعَلُوْنَ ⑫ اِنَّ الْاَبْرَارَ لَفِيْ نَعِيْمٍ ⑬ وَ اِنَّ الْفُجَّارَ

دے پوهیږی | په هغه څه چه تاسو کوئ | بیشکه نیکان به | په نعمت کښے وی | او | بیشکه | ګناهګاران به

تاسو چه څه کوئ په هغے ښه پوهیږی، بیشکه نیکان خلق به د نعمتونو په جنت کښے وی او بیشکه بدکاران به

لَفِيْ جَحِيْمٍ ⑭ يَّصْلَوْنَهَا يَوْمَ الدِّيْنِ ⑮ وَمَا هُمْ عَنْهَا بِغَآئِبِيْنَ ⑯

په دوزخ کښے وی | دوئ به داخلیږی په دے کښے | د جزاء په ورځ | او نه به وی دوئ | له دغه ځائے نه | پټیدونکی

په دوزخ کښے وی په کوم کښے چه به دوئ د قیامت په ورځ داخلیږی او دوئ به د دغے (دوزخ) نه پټیدے نه شی.

وَمَآ اَدْرٰىكَ مَا يَوْمُ الدِّيْنِ ⑰ ثُمَّ مَآ اَدْرٰىكَ مَا يَوْمُ الدِّيْنِ ⑱ يَوْمَ

او تا ته څه خبر دے | چه څه ده ورځ د جزاء؟ | بیا تا ته څه خبر دے | چه څه ده ورځ د جزا؟ | هغه ورځ ده

او تا ته څه معلومه ده چه د بدلے ورځ به څنګه وی؟ او بیا تا ته څه معلومه ده چه د بدلے ورځ څنګه ده؟ هغه داسے

لَا تَمْلِكُ نَفْسٌ لِّنَفْسٍ شَيْئًا ۗ وَالْاَمْرُ يَوْمَئِذٍ لِّلّٰهِ ⑲

چه نه به شی کولے | یو نفس د بل نفس د پاره | هیڅ هم | او حکم به | په دغه ورځ | د الله (وی)

ورځ ده چه هیڅوک به د هیچا په کار نه راځی او په دغه ورځ به حکم یوازے د الله تعالیٰ چلیږی.

سُوْرَةُ الْمُطَفِّفِيْنَ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ سِتٌّ وَّثَلٰثُوْنَ اٰيَةً وَّرُكُوْعٌ وَّاحِدٌ

سورة مطففین په مکه کښے نازل شو او په دے کښے ٣٦ آیتونه او یو رکوع ده

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

(شروع) د الله په نامه چه لوئے مهربان ډیر زیات رحم کونکے دے

د الله په نامه شروع کوم چه لوئے مهربان د ډیر زیات رحم خاوند دے

وَيْلٌ لِّلْمُطَفِّفِيْنَ ① الَّذِيْنَ اِذَا اكْتَالُوْا عَلَى النَّاسِ يَسْتَوْفُوْنَ ②

تباهی ده | د کم ورکوونکو د پاره | هغه خلق چه | هرکله | پیمانه کوی | له خلقو نه | نو پوره اخلی

د کم تول کوونکو د پاره بربادی ده، هغه چا د پاره چه پیمانے اخلی له خلقو نه نو پوره په پوره ئے اخلی

وَاِذَا كَالُوْهُمْ اَوْ وَّزَنُوْهُمْ يُخْسِرُوْنَ ③ اَلَا يَظُنُّ اُولٰٓئِكَ اَنَّهُمْ

او هرکله چه | پیمانه ورکوی دوئ ته | یا په تول ورکوی دوئ ته | نو کم ورکوی | آیا یقین نه کوی | دا خلق | چه بیشکه دوئ

او چه خلقو نه ئے پیمانه کوی یا ورته ئے تلی نو کم ورکوی. آیا دوئ دا باور نه لری چه دوئ به (د قیامت)

مَّبْعُوْثُوْنَ ④ لِيَوْمٍ عَظِيْمٍ ⑤ يَّوْمَ يَقُوْمُ النَّاسُ لِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ⑥

به راپاڅولے شی | په ورځے | لوئے | په کومه ورځ چه | ودریږی | خلق | په وړاندے د رب د ټولو جهانونو

په لویه ورځ راژوندی کیږی؟ په کومه ورځ چه به خلق د ټول مخلوق رب ته پیش کیږی.

كَلَّآ اِنَّ كِتٰبَ الْفُجَّارِ لَفِيْ سِجِّيْنٍ ⑦ وَمَآ اَدْرٰىكَ مَا سِجِّيْنٌ ⑧

هرګز نه | بیشکه | عملنامے | د نافرمانانو | په سجین کښے دی | او تا ته څه خبر دے | چه څه دے سجین؟

داسے دے نه کوی بیشکه د بدکارو خلقو عملنامے په سجین کښے دی. او تا ته څه معلومه ده چه سجین څه (شے) دے؟

كِتٰبٌ مَّرْقُوْمٌ ⑨ وَيْلٌ يَّوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِيْنَ ⑩ الَّذِيْنَ يُكَذِّبُوْنَ

یو کتاب دے | لیکلے شوے | تباهی ده | په دغه ورځ | دروغ ګڼړونکو د پاره | هغه خلق چه | دروغ ګڼړی

(دا) یو لیکلے شوے کتاب دے، په دغه ورځ د دروغ ګڼړونکو د پاره تباهی ده، چه څوک د قیامت ورځ دروغ

بِيَوْمِ الدِّيْنِ ⑪ وَمَا يُكَذِّبُ بِهٖٓ اِلَّا كُلُّ مُعْتَدٍ اَثِيْمٍ ⑫ اِذَا تُتْلٰى

لو ستلے شی | هر کله چه | گناهکار | هر د حد نه تیریدونکے | مگر | ١١ | او دروغ نه گنړی | دَ جزا | ورځ

او دَ دے ورځے نه انکار یوازے هغه څوک کوی چه سرکش گناهکار وی، هر کله چه څمونږ گنړی ،

عَلَيْهِ اٰيٰتُنَا قَالَ اَسَاطِيْرُ الْاَوَّلِيْنَ ⑬ كَلَّا بَلْ ۜ رَانَ

زنگ لگیدلے دے | بلکه | هرگز نه | دَ وړومبنو خلقو | چه قصے دی | نو دے وائی | زمونږ آیتونه | په ده باندِ

آیتونه ورته واوروله شی نو وائی چه دا خو دَ پخوانو خلقو قصے دی - داسے نه ده بلکه دَ دَ دوی

عَلٰى قُلُوْبِهِمْ مَّا كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ ⑭ كَلَّآ اِنَّهُمْ عَنْ رَّبِّهِمْ يَوْمَئِذٍ

په دغه ورځ | دَ خپل رب نه | بیشکه دوئ به | هرگز نه | دَ هغه څهٔ چه دوئ به کول | په زړونو دَ دوئ

عملونو دَ دوئ په زړونو زنگ لګولے دے - نه دوئ به دَ خپل رب (دَ لیدلو) نه په دغه

لَمَحْجُوْبُوْنَ ⑮ ثُمَّ اِنَّهُمْ لَصَالُوا الْجَحِيْمِ ⑯ ثُمَّ يُقَالُ هٰذَا الَّذِيْ

چه هم دا دی هغه | وُ ویلے شی | بیا به | په دوزخ کښے | داخلیدونکی دی | بیا بیشکه دوی | منع کړے شی

ورځ منع کړے شی - بیا یقیناً دوئ به دوزخ ته ځی ، بیا به ورته وُویلے شی چه دا هغه څیز

كُنْتُمْ بِهٖ تُكَذِّبُوْنَ ⑰ كَلَّآ اِنَّ كِتٰبَ الْاَبْرَارِ لَفِيْ عِلِّيِّيْنَ ⑱

په عِلّیّین کښے دی . | دَ نیکانو خلقو | اعمالنامے | بیشکه | هرگز نه | چه تاسو به دروغ گنړل

دے چه تاسو به دروغ گنړلو - نه ! بیشکه چه دَ نیکانو عملونه په علّیّین کښے لیک دی -

وَمَآ اَدْرٰىكَ مَا عِلِّيُّوْنَ ⑲ كِتٰبٌ مَّرْقُوْمٌ ⑳ يَّشْهَدُهُ الْمُقَرَّبُوْنَ ㉑

مقربے فرښتے | گوری دے ته | لیکلے شوے | یو کتاب دے | چه څهٔ دے علّیّین ؟ | او تا ته څهٔ خبر دے

او تا ته څهٔ معلومه ده چه علیین څنګه ځائے دے؟ دا یو لیکلے شوے کتاب دے چه مقربے فرښتے ورته حاضرے وی

اِنَّ الْاَبْرَارَ لَفِيْ نَعِيْمٍ ㉒ عَلَى الْاَرَآئِكِ يَنْظُرُوْنَ ㉓ تَعْرِفُ فِيْ وُجُوْهِهِمْ

په مخونو دَ دوئ کښے | پیژنے به ته | گوری به | په تختونو باندِ (ناست) | په نعمت کښے وی | بیشکه نیکان خلق به

بیشکه نیکان به دَ نعمت (په باغونو) کښے وی په تختونو ناست سیلونه به کوی ، دَ هغوئ په مخونو کښے به دَ نعمتونو

نَضْرَةَ النَّعِيْمِ ㉔ يُسْقَوْنَ مِنْ رَّحِيْقٍ مَّخْتُوْمٍ ㉕ خِتٰمُهٗ مِسْكٌ ۭ

مشک وی | مُهر دَ دے به | مُهر لګولے شوی | خالص شراب | په دوئ به څښولے شی | دَ نعمت | تازګی

تازګی ښکاری په هغوئ به مهر لګولے شوی خالص (پاکیزه) شراب څښولے شی چه مهر به ئے دَ مشکو وی

وَفِيْ ذٰلِكَ فَلْيَتَنَافَسِ الْمُتَنَافِسُوْنَ ㉖ وَمِزَاجُهٗ مِنْ تَسْنِيْمٍ ㉗

دَ تسنیم له اوبو نه وی . | او ګډون دَ هغے به | رغبت کوونکو دَ پاره | رغبت کول پکار دی | او په دے کښے

او په دغه څیز کښے دِ رغبت کوونکی رغبت وُکړی او هغے کښے به دَ تسنیم (اوبهٔ) ګډولے شی .

عَيْنًا يَّشْرَبُ بِهَا الْمُقَرَّبُوْنَ ㉘ اِنَّ الَّذِيْنَ اَجْرَمُوْا كَانُوْا مِنَ الَّذِيْنَ

یو چینه ده | څښی به | له هغے نه | مقرب خلق | بیشکه | کوم چه | جرمونه کړی دی | دوئ به هغه خلقو پورے

دا یوه چینه ده چه مقرب خلق به ترے نه څښل کوی - بیشکه څوک چه مجرمان دی هغوئ به (په دُنیا کښے) په

اٰمَنُوْا يَضْحَكُوْنَ ﴿۲۹﴾ وَاِذَا مَرُّوْا بِهِمْ يَتَغَامَزُوْنَ ﴿۳۰﴾ وَاِذَا

چه ایمان ئے راوړو | خندا کوله | او هر کله چه | تیریدل به دوئ | په مسلمانانو | نو سترګے به ئے وهلے | او هر کله چه

مؤمنانو پورے خندا ګانے کولے، او چه مسلمانان به ئے په خوا کښے تیریدل نو یو بل ته به ئے سترګے وهلے او چه خپلو

انْقَلَبُوْۤا اِلٰۤى اَهْلِهِمُ انْقَلَبُوْا فَكِهِيْنَ ﴿۳۱﴾ وَاِذَا رَاَوْهُمْ قَالُوْۤا

واپس به شول دوئ | خپل کورونو ته | نو واپس کیدل به | خوشحاله | او هر کله چه | دوئ به لیدل مسلمانان | نو وئیل به ئے

کورونو ته به واپس تلل نو هلته به ئے هم (مسلمانانو پورے) ټوقے کولے، او چه مسلمانان به ئے ولیدل نو دا به ئے

اِنَّ هٰۤؤُلَآءِ لَضَآلُّوْنَ ﴿۳۲﴾ وَمَاۤ اُرْسِلُوْا عَلَيْهِمْ حٰفِظِيْنَ ﴿۳۳﴾ فَالْيَوْمَ

بیشکه | هم دوئ | ګمراه دی | او دوئ نه وو رالیږلے شوی | په دوئ باند | نګرانان | پس نن ورځ

وئیل چه دا خلق ګمراهان دی، حال دا چه دوئ د مسلمانانو په سر نګرانان مقرر شوی نه وو. نو نن (د

الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مِنَ الْكُفَّارِ يَضْحَكُوْنَ ﴿۳۴﴾ عَلَى الْاَرَآئِكِ يَنْظُرُوْنَ ﴿۳۵﴾

هغه خلق چه | ایمان ئے راوړے وو | په کافرانو پورے | به خندا کوی | په تختونو باند (ناست) | ګوری به

قیامت په) ورځ به مسلمانان په کافرانو پورے خندا ګانے کوی (او) په تختونو به ناست نظاره به ئے کوی

هَلْ ثُوِّبَ الْكُفَّارُ مَا كَانُوْا يَفْعَلُوْنَ ﴿۳۶﴾

آیا | جزا به ورکړے شی | کافرانو ته | د هغه څهٔ | چه دوئ به کول.

چه آیا کافرانو ته د خپل عمل پوره پوره بدله ورسیده که نا ؟

سُوْرَةُ الْاِنْشِقَاقِ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | خَمْسٌ وَّعِشْرُوْنَ اٰيَةً وَّرُكُوْعٌ وَّاحِدٌ

سورة انشقاق په مکه کښے نازل شو | (شروع) د الله په نامه چه لوئ مهربان ډیر زیات رحم کوونکے دے | او په دے کښے ۲۵ آیتونه او یو رکوع ده

د الله په نامه شروع کوم چه لوئ مهربان ډیر زیات رحم خاوند دے

اِذَا السَّمَآءُ انْشَقَّتْ ﴿۱﴾ وَاَذِنَتْ لِرَبِّهَا وَحُقَّتْ ﴿۲﴾ وَاِذَا الْاَرْضُ

هر کله چه | آسمان | وڅیری | او وبه منی حکم | د رب خپل | او هم دا به ده لازم دی | او هر کله چه | زمکه

څهٔ وخت چه آسمان وشلیږی، او د خپل رب حکم ومنی او هغه هم د دے قابل دے، او هر کله چه زمکه

مُدَّتْ ﴿۳﴾ وَاَلْقَتْ مَا فِيْهَا وَتَخَلَّتْ ﴿۴﴾ وَاَذِنَتْ لِرَبِّهَا

هواره کړے شی | او وبه غورزوی | څهٔ چه | په دے کښے دی | او خالی به شی | او حکم به ومنی | د رب خپل

را ښکلے شی، او هر څهٔ چه په کښے دی هغه بهر ته راوغورزوی او خالی شی او د خپل رب حکم ومنی او هغه هم

وَحُقَّتْ ﴿۵﴾ يٰۤاَيُّهَا الْاِنْسَانُ اِنَّكَ كَادِحٌ اِلٰى رَبِّكَ كَدْحًا

او هم دا په دے لازم دی | اے انسانه ! | بیشکه ته | ډیر کوشش کوے | خپل رب سره ملاقات پورے | په عمل کښے

د دے قابله ده | اے بنیادمه ! ته لګیا ئے د خپل رب اړخ ته کوشش کوے او خامخا به ورسره مخامخ

فَمُلٰقِيْهِ ﴿۶﴾ فَاَمَّا مَنْ اُوْتِيَ كِتٰبَهٗ بِيَمِيْنِهٖ ﴿۷﴾ فَسَوْفَ يُحَاسَبُ

پس ته به ملاقات وکړے ورسره | پس | چا له چه | ورکړے شی | عملنامه د ده | د ده په ښی لاس کښے | پس زر به | حساب ورکړے شی د ده سره

کیږے ، نو بیا چا ته چه عملنامه په ښی لاس کښے ورکړے شی | نو هغهٔ سره به آسان حساب

حِسَابًا يَّسِيرًا ﴿۸﴾ وَّيَنقَلِبُ إِلَىٰ أَهْلِهِ مَسْرُورًا ﴿۹﴾ وَأَمَّا مَنْ أُوتِيَ

حساب | آسان | او بیرته به ورګرځي | خپل کورولو طرف ته | خوشحاله خوشحاله | او هغه چا ته چه | ورکړے شي

او خپلو خپلوانو ته به خوشحاله خوشحاله ورشي۔ او چا ته چه عمل نامه د شا

وُشي ،

كِتَابَهُ وَرَاءَ ظَهْرِهِ ﴿۱۰﴾ فَسَوْفَ يَدْعُوا ثُبُورًا ﴿۱۱﴾ وَّيَصْلَىٰ سَعِيرًا ﴿۱۲﴾

علنامه د ده | د ده شا د ورو ستو نه | پس ژر به دوی وبلي | هلاکت | او داخل به شي | دوزخ ته

د غاړے نه ورکړے شي ، نو هغه به د هلاکت دعا ګانے وغواړي او هغه به دوزخ ته ورننوځي۔

إِنَّهُ كَانَ فِي أَهْلِهِ مَسْرُورًا ﴿۱۳﴾ إِنَّهُ ظَنَّ أَن لَّن يَحُورَ ﴿۱۴﴾ بَلَىٰ

بیشکه دے وو | په خپل کورولو کښے | خوشحاله | بیشکه ده | ګمان کړے وو | چه هیڅ کله به دے نه ورګرځي | ولے نه

دے به په (دنیا کښے) خپلو خپلوانو کښے ډیر خوشحاله اوسیدو، د ده داګمان وو چه (الله ته) به نه ورګرځم ولے نه!

إِنَّ رَبَّهُ كَانَ بِهِ بَصِيرًا ﴿۱۵﴾ فَلَا أُقْسِمُ بِالشَّفَقِ ﴿۱۶﴾ وَاللَّيْلِ وَمَا

بیشکه د ده رب | ده ته لیدل | پس زه قسم خورم | د ماښام د سرخۍ | او د شپے | او د هغه څه

بیشکه الله د ده کارونه لیدل کتل۔ نو زما دے په شفق باندے قسم وی۔ او په شپه او په هغه څیزونو

وَسَقَ ﴿۱۷﴾ وَالْقَمَرِ إِذَا اتَّسَقَ ﴿۱۸﴾ لَتَرْكَبُنَّ طَبَقًا عَن طَبَقٍ ﴿۱۹﴾ فَمَا لَهُمْ

چه دے راغونډ کړی وی | او د سپوږمۍ | هر کله چه پوره شي | تاسو به خامخا خیژئ | درجه | په درجه | پس څه شوی دی په دوی

چه شپے راغونډ کړی وی او په سپوږمۍ څه وخت چه پوره شي چه تاسو له پوړۍ په پوړۍ ختل دی، بیا په دوی څه شوی دی

لَا يُؤْمِنُونَ ﴿۲۰﴾ وَإِذَا قُرِئَ عَلَيْهِمُ الْقُرْآنُ لَا يَسْجُدُونَ ۩ ﴿۲۱﴾ بَلِ الَّذِينَ

چه دوی ایمان نه راوړی | او هر کله چه | ولوستلے شي | په دوی باندے | قرآن | نو دوی سجده نه کوی | بلکه | کوم خلق چه

چه دوی ایمان نه راوړی او څه وخت چه دوی ته قرآن ولوستلے شي نو دوی سجده نه کوی ، بلکه کافران

كَفَرُوا يُكَذِّبُونَ ﴿۲۲﴾ وَاللَّهُ أَعْلَمُ بِمَا يُوعُونَ ﴿۲۳﴾ فَبَشِّرْهُم بِعَذَابٍ

منکر دی | هغوی خو دروغ ګڼړی | او الله | ښه پوهیږی | په هغه څه چه دوی یې ټولوی | پس زیرے ورکړه دوی ته | د عذاب

(دا هر څه) دروغ ګڼړی او د دوی د زړونو حال الله ته ښه معلوم دے ، نو دوی ته د دردناک عذاب

أَلِيمٍ ﴿۲۴﴾ إِلَّا الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ لَهُمْ أَجْرٌ غَيْرُ مَمْنُونٍ ﴿۲۵﴾

دردناک | مګر کوم خلق چه | ایمان راوړو | او عملونه وکړو | نیک | دوی د پاره | اجر دے | نه ختمیدونکے

زیرے ورکړه، مګر البته خوک چه مؤمنان دی او نیک کارونه کوی هغوی له نه ختمیدونکے اجر مقرر دے

سُورَةُ الْبُرُوجِ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ اثْنَتَانِ وَعِشْرُونَ آيَةً وَّرُكُوعٌ وَّاحِدٌ

سورۃ بروج په مکه کښے نازل شوا و په دے کښے ۲۲ آیتونه او یو رکوع ده

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

(شروع) د الله په نامه چه لوئے مهربان ډیر زیات رحم کوونکے دے

د الله په نامه شروع چه لوئے مهربان د ډیر زیات رحم خاوند دے

وَالسَّمَاءِ ذَاتِ الْبُرُوجِ ﴿۱﴾ وَالْيَوْمِ الْمَوْعُودِ ﴿۲﴾ وَشَاهِدٍ وَمَشْهُودٍ ﴿۳﴾

قسم دے په آسمان | چه خاوند د برجونو دے | او په هغه ورځ | چه وعده یې کولے شي | او په ګواه | او د چا خلاف چه ګواهي وکړے شي

قسم دے په آسمان چه د برجونو خاوند دے او په هغه ورځ (د قیامت) چه وعده یې شوے ده او قسم دے په ګواه او د چا خلاف چه ګواهي ورکولے شي

قُتِلَ اَصۡحٰبُ الۡاُخۡدُوۡدِ ۝٤ النَّارِ ذَاتِ الۡوَقُوۡدِ ۝٥ اِذۡ هُمۡ عَلَيۡهَا

هلاک شول | خاوندان دَ خندقونو | چه بلکېدونکې اور وو | ډیر خشاک والا | هرکله چه | دوئ په هغې (غاړې)

چه دَ خندق جوړونکی (کافران پخپله) ووژلے شول دَ اور خاوندان چه ډیر خشاک بلکېدونکې پرتَ وو. څهٔ وخت چه دوئ دَ اور په

قُعُوۡدٌ ۝٦ وَّهُمۡ عَلٰى مَا يَفۡعَلُوۡنَ بِالۡمُؤۡمِنِيۡنَ شُهُوۡدٌ ۝٧ وَمَا نَقَمُوۡا

ناست وُو | او دوئ | په هغه څهٔ | چه کول ئے | دَ مؤمنانو سره | پخپله ګواه وو | او دوئ انتقام وانهٔ خستو

غاړه ناست وو او څهٔ چه دوئ دَ مؤمنانو سره کول هغه ئے په خپلو سترګو لیدل کتل او هغوئ له دوئ نه صرف

مِنۡهُمۡ اِلَّاۤ اَنۡ يُّؤۡمِنُوۡا بِاللّٰهِ الۡعَزِيۡزِ الۡحَمِيۡدِ ۝٨ الَّذِىۡ لَهٗ مُلۡكُ

له دوئ نه | مګر دَ دے چه | دوئ ایمان راوړے وو | په الله باندِ | چه ډیر غالب | دَ ستائنې لائق دے | هغه چه دَ دهٔ | حکومت دے

دَ دِے خبرے بدل له اخستله چه دوئ په الله ایمان راوړے وو چه غالب او دَ تعریف خاوند دے، هغه ذات دَ چا حکومت

السَّمٰوٰتِ وَالۡاَرۡضِ‌ؕ وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَىۡءٍ شَهِيۡدٌ ۝٩ اِنَّ الَّذِيۡنَ

په آسمانونو | او په زمکه کښے | او الله | په هر څیز باندِ | خبردار دے | بیشکه | کومو خلقو چه

چه په آسمانونو او زمکه دے او الله تعالیٰ په هر څیز باندِ خبردار دے، کومو خلقو چه مؤمنانو

فَتَنُوا الۡمُؤۡمِنِيۡنَ وَالۡمُؤۡمِنٰتِ ثُمَّ لَمۡ يَتُوۡبُوۡا فَلَهُمۡ عَذَابُ جَهَنَّمَ

عذاب ورکړو | مومنانو سره | او مؤمنانو ښځوته | بیا | توبه ئے ونهٔ ویستله | پس دوئ له | عذاب | دَ دوزخ دے

سړو او مؤمنانو ښځو له عذاب ورکړو (او) بیا ئے توبه ونهٔ ویستله نو هغوئ له دَ دوزخ عذاب مقرر دے

وَلَهُمۡ عَذَابُ الۡحَرِيۡقِ ۝١٠ اِنَّ الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ

او دوئ دَ پاره | عذاب دے | سوزونکے | بیشکه | هغه خلق چه | ایمان ئے راوړو | او عمل ئے وکړو | نیک

او هغوئ له سوزونکے عذاب تیار دے، بیشکه چا چه ایمان راوړے دے او هغوئ نیک عملونه وکړل

لَهُمۡ جَنّٰتٌ تَجۡرِىۡ مِنۡ تَحۡتِهَا الۡاَنۡهٰرُ ؕ ذٰلِكَ الۡفَوۡزُ الۡكَبِيۡرُ ۝١١

دوئ دَ پاره | باغونه دی | بهیږی به | لاندِ دَ هغې نه | نهرونه | هم دا ده | کامیابی | ډیره لویه

هغوئ دَ پاره باغونه دی چه دَ هغې لاندِ به ولے بهیږی، دا ډیره لویه کامیابی ده.

اِنَّ بَطۡشَ رَبِّكَ لَشَدِيۡدٌ ۝١٢ اِنَّهٗ هُوَ يُبۡدِئُ وَيُعِيۡدُ ۝١٣ وَهُوَ

بیشکه | نیول | ستا دَ رب | ډیر سخت دی | بیشکه هم دے | په اول ځل پیدا کوی | او واپس کوی | او هم دے دے

بیشکه ستا دَ رب نیول ډیر سخت دی، الله په وړومبی ځل هم پیدا کوی او دوباره به ئے هم پیدا کوی، او هغه

الۡغَفُوۡرُ الۡوَدُوۡدُ ۝١٤ ذُو الۡعَرۡشِ الۡمَجِيۡدُ ۝١٥ فَعَّالٌ لِّمَا يُرِيۡدُ ۝١٦ هَلۡ

بخښونکے | محبت کوونکے | مالک دَ عرش دے | لوئے شان والا دے | کوونکے دے دَ هغه څهٔ | چه دے ئے غواړی | آیا

بخښونکے مینه کوونکے دے، دَ عرش خاوند دے لوئے دے چه څهٔ غواړی هغه کوی، آیا تا دَ

اَتٰٮكَ حَدِيۡثُ الۡجُنُوۡدِ ۝١٧ فِرۡعَوۡنَ وَثَمُوۡدَ ۝١٨ بَلِ الَّذِيۡنَ كَفَرُوۡا

راغلے دے تاته | خبر | دَ لښکرونو | دَ فرعون | او دَ ثمود | بلکه | کومو خلقو چه | کفر وکړو

لښکرو قصے اوریدلی دی؟ دَ فرعون او دَ (قوم دَ) ثمود (دَ لښکرو؟) بلکه کافران په انکار کښے

ایۃ خمسیۃ ١٢

فِيْ تَكْذِيْبٍ ﴿١٩﴾ وَّاللّٰهُ مِنْ وَّرَآئِهِمْ مُّحِيْطٌ ﴿٢٠﴾ بَلْ هُوَ قُرْاٰنٌ

په دروغ گڼڼلو کښې دی | او الله | چارچاپېره دَ دوئی نه | احاطه کوونکے دے | بلکه | دا | قرآن

(غافل) پراته دی او الله تعالیٰ هر اړخ نه دوئی راګیر کړی دی په اصل کښې دا قرآن

مَّجِيْدٌ ﴿٢١﴾ فِيْ لَوْحٍ مَّحْفُوْظٍ ﴿٢٢﴾

لوئے قدر والا دے | (لیکلے شوے) په لوح | محفوظ کښے -

دَ لوئے شان والا دے چه په لوح محفوظ کښے سنبال دے

سُوْرَةُ الطَّارِقِ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | سَبْعَ عَشْرَةَ اٰيَةً وَّرُكُوْعٌ وَّاحِدٌ

سورة طارق په مکه کښې نازل شو | (شروع) دَ الله په نامه چه لوئے مهربان ډېر زیات رحم کوونکے دے | او په دے کښې ١٧ آیتونه او یو رکوع ده

دَ الله په نامه شروع کوم چه لوئے مهربان ډېر زیات رحم خاوند دے

وَالسَّمَآءِ وَالطَّارِقِ ﴿١﴾ وَمَآ اَدْرٰىكَ مَا الطَّارِقُ ﴿٢﴾ النَّجْمُ الثَّاقِبُ ﴿٣﴾

قسم دے په آسمان | او دَ شپے په راتلونکی | او تا ته څهٔ معلومه ده | چه څهٔ دے دَ شپے راتلونکے | هغه ستورے دے | پرقیدونکے

قسم دے په آسمان او په هغه څیز چه دَ شپے ښکاره کیږی او تا ته څهٔ معلومه ده چه دَ شپے راتلونکے څیز څهٔ دے؟ هغه یو ځلنده ستورے دے

اِنْ كُلُّ نَفْسٍ لَّمَّا عَلَيْهَا حَافِظٌ ﴿٤﴾ فَلْيَنْظُرِ الْاِنْسَانُ مِمَّ

داسے یو نفس نشته | مګر | په هغهٔ باندِ | یو محافظ (مقرر) دے | پس ؤدِ ګوری | انسان | چه هغه له څهٔ نه

داسے یو نفس نشته چه په هغهٔ یو نه یو محافظ مقرر نهٔ دے۔ نو بنیادم دِ وګوری چه هغه له څهٔ نه پیدا

خُلِقَ ﴿٥﴾ خُلِقَ مِنْ مَّآءٍ دَافِقٍ ﴿٦﴾ يَّخْرُجُ مِنْۢ بَيْنِ الصُّلْبِ

پیدا کړے شوے دے | پیدا کړے شوے دے | له او بو | تو پ وهونکو نه | چه راوځی | دَ ملا

کړے شوے دے؟ هغه دَ یو توپ وهونکو اوبو نه پیدا کړے شوے دے، چه دَ ملا او دَ سینے دَ مینځ نه

وَالتَّرَآئِبِ ﴿٧﴾ اِنَّهٗ عَلٰى رَجْعِهٖ لَقَادِرٌ ﴿٨﴾ يَوْمَ تُبْلَى

او دَ سینے دَ هډوکو دَ مینځ نه | بیشکه دے | په بیا پیدا کولو دَ دهٔ | قدرت لری | په کومه ورځ چه | ښکاره کړے شی

راوځی، بیشکه الله تعالیٰ دَ دهٔ په سر دوباره پیدا کولو پوره پوره قدرت لری، په کومه ورځ چه پټ

السَّرَآئِرُ ﴿٩﴾ فَمَا لَهٗ مِنْ قُوَّةٍ وَّلَا نَاصِرٍ ﴿١٠﴾ وَالسَّمَآءِ ذَاتِ الرَّجْعِ ﴿١١﴾

رازونه | نو نهٔ به وی ده دَ پاره | څهٔ طاقت | او نهٔ څوک مددګار | او قسم دے په آسمان | چه خاوند دَ باران دے

رازونه ښکاره کړے شی نو نهٔ به دَ دهٔ خپل طاقت وی او نهٔ به ئے څوک مددګار وی، قسم دے په آسمان چه بارانونه وروی

وَالْاَرْضِ ذَاتِ الصَّدْعِ ﴿١٢﴾ اِنَّهٗ لَقَوْلٌ فَصْلٌ ﴿١٣﴾ وَّمَا هُوَ

او زمکه | چاوْدونکے | بیشکه دا (قرآن) | کلام دے | فیصله کوونکے | او نهٔ دے دا

او په زمکه چه (شینکی ته) چوی - بیشکه چه دا قرآن (دَ حق او دَ باطل تر مینځه) فیصله کوونکے کلام دے او دا څهٔ فضول

بِالْهَزْلِ ﴿١٤﴾ اِنَّهُمْ يَكِيْدُوْنَ كَيْدًا ﴿١٥﴾ وَّاَكِيْدُ كَيْدًا ﴿١٦﴾ فَمَهِّلِ

فضول خبره | بیشکه دوئی | تدبیر کوی | یو تدبیر | او زهٔ (هم) تدبیر کوم | یو تدبیر | پس مهلت ورکړه

خبره نهٔ ده، هغه خلق په خپل خپل تدبیر کښے لګیا دی او زهٔ (الله) هم تدبیر کوم، پس ته کافرانو ته

الْكٰفِرِيْنَ اَمْهِلْهُمْ رُوَيْدًا ﴿١٧﴾
کافرانو ته | مهلت ورکړه دوئ ته | لږه موده
(لږ تور) مهلت ورکړه او څه موده دوئ پریږده۔

سُوْرَةُ الْاَعْلٰى مَكِّيَّةٌ وَّهِىَ
سورة اعلیٰ په مکه کښے نازل شوا و

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ
(شروع) دَ الله په نامه چه ډیر مهربان ډیر زیات رحم کوونکے دے
دَ الله په نامه شروع کوم چه لوئے مهربان دے ډیر زیات رحم خاوند دے

تِسْعَ عَشْرَةَ اٰيَةً وَّرُكُوْعٌ وَّاحِدٌ
په دے کښے ١٩ آیتونه او یو رکوع ده

سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْاَعْلَى ﴿١﴾ الَّذِىْ خَلَقَ فَسَوّٰى ﴿٢﴾ وَالَّذِىْ قَدَّرَ
پاکی بیانوه | دَ نامے | دَ رب خپل | چه دَ ټولونه برتر دے | هغه چه | پیدا ئے کړو | نو درست ئے کړو | او هغه چه | اندازه ئے مقرر کړه
دَ خپل رب دَ نوم پاکی بیان کړه چه اعلیٰ دے، چه مخلوق ئے پیدا کړو نو برابر ئے پیدا کړه او هغه چاچه دَ هرڅیز

فَهَدٰى ﴿٣﴾ وَالَّذِىْٓ اَخْرَجَ الْمَرْعٰى ﴿٤﴾ فَجَعَلَهٗ غُثَآءً اَحْوٰى ﴿٥﴾
بیائے ورته لاره وښودله | او هغه ذات چه | راوے ویستله | ګیاه | بیائے کړله هغه | اُوچه چوره | تو ره
اندازه ئے مقرر کړه بیائے لاره وښودله او هغه ذات چه ګیاه ئے راز رغونه کړه بیائے هغه تور بوس کړل۔

سَنُقْرِئُكَ فَلَا تَنْسٰٓى ﴿٦﴾ اِلَّا مَا شَآءَ اللّٰهُ ؕ اِنَّهٗ يَعْلَمُ الْجَهْرَ
مونږ به زده لولو تاته | نو بیا به له تانه نه هیریږی | مګر څه چه | وغواړی الله | بیشکه دے پوهیږی | په ښکاره
مونږ به تاته (قرآن) لولو نو له تانه به نه هیریږی مګر څه وخت چه الله وغواړی، هغه په ښکاره هم پوهه دے

وَمَا يَخْفٰى ﴿٧﴾ وَنُيَسِّرُكَ لِلْيُسْرٰى ﴿٨﴾ فَذَكِّرْ اِنْ نَّفَعَتِ
او په پټه خبره | او مونږ به آسان کړو په تا | (تلل) په آسانه طریقه | پس ته نصیحت کوه | که چرے فائده ورکوی
او په هغه هم چه پټ دی، او تا ته به دَ آسان (دین) لاره آسانوو. نو ته نصیحت کوه که نصیحت څه فائده

الذِّكْرٰى ﴿٩﴾ سَيَذَّكَّرُ مَنْ يَّخْشٰى ﴿١٠﴾ وَيَتَجَنَّبُهَا الْاَشْقَى ﴿١١﴾
نصیحت | زر به نصیحت حاصل کړی | څوک چه ویریږی | او څنګ به کوی له دے نه | ډیر بد نصیبه
رسوی ، څوک چه ویریږی هغوئ به نصیحت قبلوی او څوک چه بدنصیبه وی هغوئ به ترے څنګ کوی

الَّذِىْ يَصْلَى النَّارَ الْكُبْرٰى ﴿١٢﴾ ثُمَّ لَا يَمُوْتُ فِيْهَا وَلَا يَحْيٰى ﴿١٣﴾ قَدْ
هغه څوک چه | داخلیږی به | اور ته | ډیر لوئے | بیا به | هغه نه مری | په هغے کښے | او نه به ژوندے وی | بیشکه
هغه کس چه لوئے اور ته به ننوزی ، بیا به پکښے نه مری او نه به رغیږی ، هغه څوک

اَفْلَحَ مَنْ تَزَكّٰى ﴿١٤﴾ وَذَكَرَ اسْمَ رَبِّهٖ فَصَلّٰى ﴿١٥﴾ بَلْ تُؤْثِرُوْنَ
کامیاب شو | څوک چه | پاک شو | او یاد ئے کړه | نامه | دَ خپل رب | بیائے مونځ وکړو | بلکه | تاسو غوره کوئ
کامیاب شو چاچه ځان پاک کړو او دَ خپل رب نوم ئے یاد ولو ، او مونځ ئے کولو ، بلکه تاسو دَ دنیا ژوند

الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا ﴿١٦﴾ وَالْاٰخِرَةُ خَيْرٌ وَّاَبْقٰى ﴿١٧﴾ اِنَّ هٰذَا
ژوند | دَ دُنیا | او آخرت | ډیر ښه | او ډیر پائیدار دے | بیشکه | هم دا دی
غوره کوئ ، حال دا چه آخرت ډیر بهتر او ډیر پائیدار دے ، بیشکه دا مضمون

لِفِى الصُّحُفِ الْاُوْلٰى ﴿۱۸﴾ صُحُفِ اِبْرٰهِيْمَ وَمُوْسٰى ﴿۱۹﴾ ع

په صحيفو پخوانو کښې | (يعنى) په صحيفو (کښې) | دَ ابراهيم | او دَ موسىٰ

په صحيفو پخوانو کښې هم بيان شوے دے (يعنى) دَ ابراهيم او دَ موسىٰ په صحيفو کښې.

سُوْرَةُ الْغَاشِيَةِ مَكِّيَّةٌ وَّهِىَ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | سِتٌّ وَّعِشْرُوْنَ اٰيَةً وَّرُكُوْعٌ وَّاحِدٌ

سورۀ غاشيه په مکه کښې نازل شو | (شروع) دَ الله په نامه چه لوئے مهربان ډير زيات رحم کوونکے دے | او په دے کښې ۲۶ آيتونه او يوه رکوع ده

دَ الله په نامه شروع کوم چه لوئے مهربان ډير زيات رحم خاوند دے

هَلْ اَتٰىكَ حَدِيْثُ الْغَاشِيَةِ ﴿۱﴾ وُجُوْهٌ يَّوْمَئِذٍ خَاشِعَةٌ ﴿۲﴾ عَامِلَةٌ

آيا تاته رارسيدلے دے | خبر | دَ خوريدونکى (قيامت) | څۀ مخونه به | په دغه ورځ | ذليله وى | زپلى

(اے رسوله!) آيا تاته دَ چاپيره خوريدونکى واقعے (قيامت) څۀ خبر راغلے دے؟ ډير مخونه به په دغه ورځ ذليله زپلى

نَّاصِبَةٌ ﴿۳﴾ تَصْلٰى نَارًا حَامِيَةً ﴿۴﴾ تُسْقٰى مِنْ عَيْنٍ اٰنِيَةٍ ﴿۵﴾ لَيْسَ لَهُمْ

ستړى وى | داخل به شى | اور | بل شوى ته | څښولے به شى په دوئ | له چينے | يشيدونکے ته | نۀ به وى دوى له

(او) ستړى وى (داخل به) په بل شوى اور کښې داخليږى، دَ يشيدونکے چينے نه به پرے اوبۀ څښولے شى، بغير دَ اغزو

طَعَامٌ اِلَّا مِنْ ضَرِيْعٍ ﴿۶﴾ لَّا يُسْمِنُ وَلَا يُغْنِىْ مِنْ جُوْعٍ ﴿۷﴾ وُجُوْهٌ

هيڅ طعام | مګر | دَ اغزو دَ بوټى نه | (چه) نۀ به څربوى | او نۀ به لرے کوى | لوږه | څۀ مخونه به

دَ بوټى نه به ورله بل خوراک نۀ وى، چه نۀ به پرے څربيږى او نۀ به پرے لوږه بنديږى، ډير مخونه

يَّوْمَئِذٍ نَّاعِمَةٌ ﴿۸﴾ لِّسَعْيِهَا رَاضِيَةٌ ﴿۹﴾ فِىْ جَنَّةٍ عَالِيَةٍ ﴿۱۰﴾ لَّا تَسْمَعُ

په دغه ورځ | تازه وى | په خپل کوشش باندې به | رضامند وى | په جنت | اُوچت کښې به وى | نۀ به آورى

به په دغه ورځ تازه وى، په خپل عمل به خوشحاله وى، په اُوچتو باغونو کښې به ناست وى، چه هيڅ

فِيْهَا لَاغِيَةً ﴿۱۱﴾ فِيْهَا عَيْنٌ جَارِيَةٌ ﴿۱۲﴾ فِيْهَا سُرُرٌ مَّرْفُوْعَةٌ ﴿۱۳﴾

په هغے کښې | فضول خبرے | په هغے کښې به | يوه چينه | بهيږى | په هغے کښې به | تختونه وى | اُوچت اُوچت

فضول خبره به نۀ آورى، په هغے کښې به چينے بهيږى، په هغے کښې اُوچت اُوچت تختونه دى.

وَّاَكْوَابٌ مَّوْضُوْعَةٌ ﴿۱۴﴾ وَّنَمَارِقُ مَصْفُوْفَةٌ ﴿۱۵﴾ وَّزَرَابِىُّ مَبْثُوْثَةٌ ﴿۱۶﴾

او ګلاسونه | ايښودے شوى | او بالختونه | په قطارونو کښې ايښودے شوى | او قالينونه | غوړيدلى

او په سمون ايښى ګلاسونه دى او په قطارونو کښې ايښى بالختونه دى او هرخواته غوړيدلى قالينونه دى

اَفَلَا يَنْظُرُوْنَ اِلَى الْاِبِلِ كَيْفَ خُلِقَتْ ﴿۱۷﴾ وَاِلَى السَّمَآءِ كَيْفَ

پس آيا نۀ ګورى دوئ | طرف دَ اُوښ ته | چه څنګه | پيدا کړے شو؟ | او طرف دَ آسمان ته | چه څنګه

آيا دوئ اُوښ ته نۀ ګورى چه څنګه پيدا کړے شو؟ او آسمان ته چه څنګه اُوچت کړے

رُفِعَتْ ﴿۱۸﴾ وَاِلَى الْجِبَالِ كَيْفَ نُصِبَتْ ﴿۱۹﴾ وَاِلَى الْاَرْضِ كَيْفَ

اُوچت کړے شو | او طرف دَ غرونو ته | چه څنګه | ودرولے شول | او طرف دَ زمکے ته | چه څنګه

شو؟ او غرونو ته چه څنګه ټينګ ودرولے شول؟ او زمکے ته چه څنګه غوړولے

وقف لازم

سُطِحَتْ ﴿۲۰﴾ فَذَكِّرْ ۟ۗ إِنَّمَآ أَنتَ مُذَكِّرٌ ﴿۲۱﴾ لَّسْتَ عَلَيْهِم بِمُصَيْطِرٍ ﴿۲۲﴾

وُغوړولے شوه | پس ته نصیحت کوه | بیشکه ته | نصیحت کوونکے یې | نه یې ته | په دوئ باندې | نګران

شوه ؟ تو ته نصیحت کوه ځکه چه ته نصیحت کوونکے یې ، ته په دوئ نګران مقرر شوے نه

إِلَّا مَن تَوَلَّىٰ وَكَفَرَ ﴿۲۳﴾ فَيُعَذِّبُهُ ٱللَّهُ ٱلْعَذَابَ ٱلْأَكْبَرَ ﴿۲۴﴾ إِنَّ

مګر | څوک چه | مخ واړوی | او انکار وکړی | بیا به عذاب ورکړی ده ته | الله | عذاب | ډیر لوئے | بیشکه

یې خوڅوک چه مخ وګرځوی او انکار وکړی ، نو الله تعالیٰ به ورله ډیر لوئے عذاب ورکړی ، بیشکه

إِلَيْنَآ إِيَابَهُمْ ﴿۲۵﴾ ثُمَّ إِنَّ عَلَيْنَا حِسَابَهُم ﴿۲۶﴾

زمونږ طرف ته | واپسی ده د دوئ | بیا | بیشکه | په مونږ باندې ده | حساب د دوئ

مونږ ته د دوئ واپسی ده ، نو بیا به مونږ ورسره حساب کوو ـ

سُورَةُ الْفَجْرِ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ | بِسْمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحْمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ | ثَلٰثُوْنَ اٰيَةً وَّرُكُوْعٌ وَّاحِدٌ

سورة فجر په مکه کښې نازل شو | (شروع) د الله په نامه چه لوئے مهربان ډیر زیات رحم کوونکے دے | او په دے کښې ۳۰ آیتونه او یو رکوع ده

د الله په نامه شروع چه لوئے مهربان د ډیر زیات رحم خاوند دے

وَٱلْفَجْرِ ﴿۱﴾ وَلَيَالٍ عَشْرٍ ﴿۲﴾ وَٱلشَّفْعِ وَٱلْوَتْرِ ﴿۳﴾ وَٱلَّيْلِ إِذَا يَسْرِ ﴿۴﴾ هَلْ فِى ذَٰلِكَ

قسم دے په سحر | او په لسو شپو | او په جفت | او په طاق | او په شپه | هر کله چه په تیریدو شی | آیا | په دے کښې

قسم دے په سحر او په لسو شپو ـ او قسم دے په جفت او طاق باندې او په شپه چه په تیریدو شی، بیشکه عقلمند و د پاره

قَسَمٌ لِّذِى حِجْرٍ ﴿۵﴾ أَلَمْ تَرَ كَيْفَ فَعَلَ رَبُّكَ بِعَادٍ ﴿۶﴾ إِرَمَ ذَاتِ ٱلْعِمَادِ ﴿۷﴾

یو درونډ قسم دے | د پاره د خاوند | د عقل | آیا نه دی کتلی تا چه څنګه | سلوک وکړو | ستا رب | د عاد سره | (یعنی) د ارم قوم سره | چه خاوندان د لوړ قد وو

دا ډیر لوئے قسم دے ـ آیا تا ونه لیدل چه ستا خدائے د عاد د قوم یعنی د ارم د قوم سره څه وکړل ؟ چه د ستنو غوندې

ٱلَّتِى لَمْ يُخْلَقْ مِثْلُهَا فِى ٱلْبِلَٰدِ ﴿۸﴾ وَثَمُودَ ٱلَّذِينَ جَابُوا۟ ٱلصَّخْرَ بِٱلْوَادِ ﴿۹﴾

هغه چه | نه دی پیدا شوی | په شان د هغوئ | په ښارونو کښې | او (د) ثمود (سره) | کوم چه | تراشلی وو | کمڼان | په وادئ کښې

لوړ دنګ وو چه د هغوئ په شان (مضبوط) په هیڅ وطن کښې نه وو او د ثمود د قوم سره (څه وکړل ؟) چه په وادی القریٰ کښې ئے (کورونو له) کمڼان

وَفِرْعَوْنَ ذِى ٱلْأَوْتَادِ ﴿۱۰﴾ ٱلَّذِينَ طَغَوْا۟ فِى ٱلْبِلَٰدِ ﴿۱۱﴾ فَأَكْثَرُوا۟ فِيهَا

او فرعون | خاوند د میخونو (سره) | کوم چه | سرکشی وکړه | په ښارونو کښې | نو دوئ ډیر وکړه | په هغے کښې

تراشل او فرعون د میخونو والا سره (ئے څه وکړل) دے ټولو په ملک کښې سرکشی کړے وه ـ نو ډیر فساد ونه ئے پکښې

ٱلْفَسَادَ ﴿۱۲﴾ فَصَبَّ عَلَيْهِمْ رَبُّكَ سَوْطَ عَذَابٍ ﴿۱۳﴾ إِنَّ رَبَّكَ لَبِٱلْمِرْصَادِ ﴿۱۴﴾

فساد | نو ووهله | په دوئ باند | ستا رب | کوړه | د عذاب | بیشکه | ستا رب | په تاک کښې دے

جوړ کړی وو ـ نو ستا رب ورله د عذاب یوه کوړه راخلاصه کړه ـ بیشکه ستا رب (د نافرمانو) په تاک کښې دے ـ

فَأَمَّا ٱلْإِنسَٰنُ إِذَا مَا ٱبْتَلَىٰهُ رَبُّهُۥ فَأَكْرَمَهُۥ وَنَعَّمَهُۥ فَيَقُولُ رَبِّىٓ

لیکن انسان (دا سې دے) | هر کله چه | وٓ آزمائی دے | رب د ده | بیا عزت ورکوی ده ته | او نعمت ورکوی ده ته | نو دے وائی | زما رب

د انسان خو دا حال دے چه کله یې رب الله از میښت کوی نو عزت او نعمت ورکوی ، نو دے وائی چه ماله الله عزت

اَكۡرَمَنِ ﴿۱۵﴾ وَاَمَّآ اِذَا مَا ابۡتَلٰهُ فَقَدَرَ عَلَيۡهِ رِزۡقَهٗ ۙ فَيَقُوۡلُ رَبِّيۡۤ

ماله عزت راکړو | او هر کله چه | وُ آزمائی دے | پس تنګ کړی | په دهٔ باندِ | رزق دَ دهٔ | نو دے وائی | چه زما رب

راکړو ، او کله چه پرے داسے ازمیښت وکړی چه روزی ورله لنډه تنګه کړی ، نو وائی چه زما رب زهٔ

اَهَانَنِ ﴿۱۶﴾ كَلَّا بَلۡ لَّا تُكۡرِمُوۡنَ الۡيَتِيۡمَ ﴿۱۷﴾ وَلَا تَحٰٓضُّوۡنَ عَلٰى طَعَامِ

زهٔ ذلیل کړم | هرګز نه | بلکه | هم تاسو عزت نهٔ کوئی | دَ یتیم | او نهٔ تاسو ترغیب ورکوئی یو بل ته | دَ طعام ورکولو

ذلیله کړم ، خبره داسے نهٔ ده بلکه تاسو دَ یتیم پالنه نهٔ کوئی ، او مسکین ته په خوراک ورکولو یو بل نهٔ اماده

الۡمِسۡكِيۡنِ ﴿۱۸﴾ وَتَاۡكُلُوۡنَ التُّرَاثَ اَكۡلًا لَّمًّا ﴿۱۹﴾ وَّتُحِبُّوۡنَ الۡمَالَ حُبًّا

مسکین ته | او خورئ تاسو | مال دَ وراثت | په خوراک ډیر سره | او محبت کوئ | دَ مال سره | محبت

کوئ ، او دَ میراث مال (حق نا حق) ټول خورئ او (دَ دنیا) مال مو ډیر زیات

جَمًّا ﴿۲۰﴾ كَلَّاۤ اِذَا دُكَّتِ الۡاَرۡضُ دَكًّا دَكًّا ﴿۲۱﴾ وَّجَآءَ رَبُّكَ وَالۡمَلَكُ

ډیر زیات | هرګز نه | هر کله چه | ریزه ریزه کړے شی | زمکه | په ریزه ریزه کولو سره | او رابه شی | ستا ربّ | او فرښتے

خوښ وی ۔ په دے نهٔ کیږی هر کله چه زمکه ریزه ریزه کړے شی ، او ستا رب راشی او فرښتے قطار

صَفًّا صَفًّا ﴿۲۲﴾ وَجِايۡٓءَ يَوۡمَئِذٍۢ بِجَهَنَّمَ ۙ يَوۡمَئِذٍ يَّتَذَكَّرُ الۡاِنۡسَانُ

په قطار قطار | او رابه وستلے شی | په دغه ورځ | دوزخ | په دغه ورځ به | نصیحت حاصل کړی | انسان

قطار ودریږی ، او په هغه ورځ به دوزخ راوړے شی ، نو په دغه ورځ به بنیادم بنهٔ پوهه شی

وَاَنّٰى لَهُ الذِّكۡرٰى ﴿۲۳﴾ يَقُوۡلُ يٰلَيۡتَنِيۡ قَدَّمۡتُ لِحَيَاتِيۡ ﴿۲۴﴾

او څهٔ (فائده) به وی | دهٔ ته | دَ نصیحت اخستلو؟ | دے به وائی | اے کاش ! | چه لیږلے وے ما وړاندِ | دَ پاره (دَ همیشه) ژوند زما

خو دَ پوهیدو موقع به ترے نه تیره وی ، وائی به چه اے کاش ! دے ژوندون له مِ وړاند څهٔ رالیږلی وے

فَيَوۡمَئِذٍ لَّا يُعَذِّبُ عَذَابَهٗۤ اَحَدٌ ﴿۲۵﴾ وَّلَا يُوۡثِقُ وَثَاقَهٗۤ اَحَدٌ ﴿۲۶﴾

پس په دغه ورځ | عذاب به ورنهٔ کړی | په شان دَ عذاب دَ دهٔ | هیڅ یو کس | او وُبه نهٔ تړی | په شان دَ تړلو دَ دهٔ | هیڅ یو کس

نو په دغه ورځ به هیڅوک دَ خدائے په شان عذاب ورنهٔ کړی او نهٔ به څوک دَ خدائے غوندِ مضبوط تړل کولے

يٰۤاَيَّتُهَا النَّفۡسُ الۡمُطۡمَئِنَّةُ ﴿۲۷﴾ ارۡجِعِيۡۤ اِلٰى رَبِّكِ رَاضِيَةً

اے | نفسه | اطمینان والا ! | واپس ورګرځه | طرف دَ رب خپل ته | تهٔ (دَ دهٔ نه) راضی

شی (الله به نیکانو ته وائی) اے مطمئن نفسه ! تهٔ خپل رب ته واپس ورګرځه ، داسے چه تهٔ دَ هغهٔ نه راضی یئے او

مَّرۡضِيَّةً ﴿۲۸﴾ فَادۡخُلِيۡ فِيۡ عِبٰدِيۡ ﴿۲۹﴾ وَادۡخُلِيۡ جَنَّتِيۡ ﴿۳۰﴾

دے (له تا نه) راضی | پس داخل شه تهٔ | زما په بندګانو کښے | او داخل شه | زما په جنت کښے

هغه له تا نه راضی ، بیا زما په نیکانو بندګانو کښے شامل شه او زما په جنت کښے داخل شه ۔

سُوۡرَةُ الۡبَلَدِ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ
سورۃ بلد په مکه کښے نازل شو

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ
(شروع) دَ الله په نامه چه لوئے مهربان ډیر زیات رحم کوونکے دے
دَ الله په نامه شروع کوم چه لوئے مهربان دَ ډیر زیات رحم خاوند دے

عِشۡرُوۡنَ اٰيَةً وَّرُكُوۡعٌ وَّاحِدٌ
او په دے کښے ۲۰ آیتونه او یو رکوع ده

ع ۱ ۳۰ ۱۴

لَآ اُقۡسِمُ بِهٰذَا الۡبَلَدِ ۝١ وَاَنۡتَ حِلٌّۢ بِهٰذَا الۡبَلَدِ ۝٢ وَوَالِدٍ

زهٔ قسم خورم | په دے | ښار | او ته به | داخل شے | په دے | ښار کښې | او قسم دے په پلار

زهٔ قسم خورم په دِے ښار (مکه) بانډِ ـ او ته په دے ښار کښې (فاتحانه) داخلیدونکے یئے ـ او قسم دے د پلار (یعنی

وَّمَا وَلَدَ ۝٣ لَقَدۡ خَلَقۡنَا الۡاِنۡسَانَ فِیۡ کَبَدٍ ۝٤ اَیَحۡسَبُ اَنۡ لَّنۡ یَّقۡدِرَ

او د دهٔ په اولاد | چه بیشکه | مونږ پیدا کړے دے | انسان | په محنت کښې | آیا دے خیال کوی | چه هرگز به قابو ونهٔ مومی

آدمؑ) او د دهٔ د اولاد، چه مونږ انسان په سختیٔ کښې پیدا کړے دے، آیا انسان دا خیال کوی چه د هیچا وس به په دهٔ

عَلَیۡهِ اَحَدٌ ۝٥ یَقُوۡلُ اَهۡلَکۡتُ مَالًا لُّبَدًا ۝٦ اَیَحۡسَبُ اَنۡ لَّمۡ یَرَهٗۤ

په دهٔ بانډِ | هیڅوک | دے وائی | چه ما برباد کړو | مال | ډیر | آیا دے خیال کوی | چه نهٔ دے کتلے دے

نهٔ رسی ـ دے پخپله وائی چه ما (د اسلام په مقابله کښې) ډیر مالونه برباد کړل، آیا دے خیال کوی چه دے هیچا نهٔ

اَحَدٌ ۝٧ اَلَمۡ نَجۡعَلۡ لَّهٗ عَیۡنَیۡنِ ۝٨ وَلِسَانًا وَّشَفَتَیۡنِ ۝٩ وَهَدَیۡنٰهُ

هیچا | آیا نهٔ دی جوړے کړے مونږ | دهٔ د پاره | دوه سترګے | او ژبه | او دوه شونډے | او مونږ ورښودلے دهٔ ته

دے لیدلے؟ آیا مونږ دهٔ له دوه سترګے، یوه ژبه او دوه شونډے نهٔ دی ورکړی، او (د خیر او شر) دوه لارے

النَّجۡدَیۡنِ ۝١٠ فَلَا اقۡتَحَمَ الۡعَقَبَةَ ۝١١ وَمَاۤ اَدۡرٰىکَ مَا الۡعَقَبَةُ ۝١٢ فَکُّ

دواړه لارے | پس دے داخل نهٔ شو | سخت ګذرګاه ته | او تا ته څهٔ معلومه ده | چه څهٔ دے دغه سخت ګذرګاه | خلاصول دی

موورنه نهٔ دی ښودلی؟ بیا هغه (د دین) ګذرګاه ته داخل نهٔ شو او تا ته څهٔ خبر دے چه هغه ګذرګاه څهٔ شے دے (واوره هغه) د چا

رَقَبَةٍ ۝١٣ اَوۡ اِطۡعٰمٌ فِیۡ یَوۡمٍ ذِیۡ مَسۡغَبَةٍ ۝١٤ یَّتِیۡمًا ذَا مَقۡرَبَةٍ ۝١٥ اَوۡ مِسۡکِیۡنًا

د څټ | یا طعام ورکول دی | په ورځ کښې | د لوږے | (چا) یتیم | رشته دار ته | یا (چا) مسکین

څټ (د غلامیٔ نه) خلاصول دی، یا د لوږے په ورځ کښې خوراک ورکول دی، یتیمانو ته چه رشته دار هم وی، یا په خاؤرو کښې

ذَا مَتۡرَبَةٍ ۝١٦ ثُمَّ کَانَ مِنَ الَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡا وَتَوَاصَوۡا بِالصَّبۡرِ

په خاؤرو کښې ناست ته | بیا | هغه وی | له هغه خلقو نه | چه ایمان ئے راوړے وی | او دوئی یو بل ته وصیت کړے وی | د صبر

ناست مسکین ته، بیا هغه له مؤمنانو نه هم وی، او هغوئی یو بل ته د صبر او د رحم

وَتَوَاصَوۡا بِالۡمَرۡحَمَةِ ۝١٧ اُولٰٓئِکَ اَصۡحٰبُ الۡمَیۡمَنَةِ ۝١٨ وَالَّذِیۡنَ کَفَرُوۡا

او وصیت ئے کړے وی | د رحم کولو | هم دا خلق دی | د ښی لاس خاوندان | او کوم خلقو چه | انکار وکړو

کولو نصیحت کوی، دا خلق به ډیر خوش نصیبه وی، او هغه خلق کوم چه زمونږ

بِاٰیٰتِنَا هُمۡ اَصۡحٰبُ الۡمَشۡـَٔمَةِ ۝١٩ عَلَیۡهِمۡ نَارٌ مُّؤۡصَدَةٌ ۝٢٠

زمونږ د آیتونو | هم دوئی دی | خاوندان د کس لاس | په دوئی بانډِ به | اور وی | بند کړے شوے

له آیتونو نه انکار وکړو، هغوئی د کسے غاړے (خراب) خلق دی، هغوئی نه به اور له هر طرف نه چاپیره وی۔

سُوۡرَةُ الشَّمۡسِ مَکِّیَّةٌ وَّهِیَ
سورهٔ شمس په مکه کښې نازل شو

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ
(شروع) د الله په نامه چه ډیر مهربان ډیر زیات رحم کوونکے دے
د الله په نامه شروع کوم چه لوئے مهربان ډیر زیات رحم خاوند دے

خَمۡسَ عَشۡرَةَ اٰیَةً وَّرُکُوۡعٌ وَّاحِدٌ
او په دے کښې ۱۵ آیتونه او یو رکوع ده

وَالشَّمْسِ وَضُحٰهَا ۝۱ وَالْقَمَرِ اِذَا تَلٰىهَا ۝۲ وَالنَّهَارِ اِذَا جَلّٰىهَا ۝۳

قسم دے په نور | او دَ دے په رنړا | او په سپوږمئ | هر کله چه راشي ورو ورپسے | او په ورځ | هر کله چه | ښکاره ئے کړي نور

قسم دے په نور او دَ هغے په رنړا، او په سپوږمئ چه ورپسے راخیژي، او په ورځ چه روښانه شي،

وَالَّيْلِ اِذَا يَغْشٰهَا ۝۴ وَالسَّمَآءِ وَمَا بَنٰهَا ۝۵ وَالْاَرْضِ وَمَا طَحٰهَا ۝۶

او په شپه | هر کله چه پټ کړي دا | او په آسمان | او کوم ذات چه دے جوړ کړو | او په زمکه | او کوم ذات چه دا اُغوړوله

او په شپه چه راخوره شي، او په آسمان او په هغه (الله) چه جوړ کړے ئے دے او په زمکه او په هغه ذات چه جوړه کړے ئے ده

وَنَفْسٍ وَّمَا سَوّٰىهَا ۝۷ فَاَلْهَمَهَا فُجُوْرَهَا وَتَقْوٰىهَا ۝۸ قَدْ اَفْلَحَ

او په نفس | او په هغه چا | چه دا ئے درست کړل | پس دَهٔ ته ئے وښودله | دَ دهٔ نافرماني | او دَ دهٔ پرهیزګاري | بیشکه کامیاب شو

او په نفس او په هغه الله چه برابر ئے جوړ کړے دے۔ نو بد او نیک ئے ورته ښودلی دی، هغه تن کامیاب شو

مَنْ زَكّٰىهَا ۝۹ وَقَدْ خَابَ مَنْ دَسّٰىهَا ۝۱۰ كَذَّبَتْ ثَمُوْدُ

هغه څوک | چه دے ئے پاک کړو | او بیشکه برباد شو | هغه څوک | چه دے ئے ناپاک کړو | دروغ وګڼړلو | قوم دَ ثمود

چا چه خپل نفس پاک کړو، او هغه تن برباد شو چا چه خپل نفس خراب کړو، (قوم دَ) ثمود دَ خپلے سرکشئ

بِطَغْوٰىهَآ ۝۱۱ اِذِ انْۢبَعَثَ اَشْقٰىهَا ۝۱۲ فَقَالَ لَهُمْ رَسُوْلُ اللّٰهِ نَاقَةَ اللّٰهِ

په خپله سرکشئ | هر کله چه | راپاڅیدو | دَ دوئ غټ بدبخت | نو وو ویل | دوئ ته | دَ الله رسول | (پرېږدئ) اُوښه دَ الله

په وجه (صالح) دروغژن وګڼړلو، هر کله چه له دوئ نه یو بدبخته راپاڅیدو۔ نو رسول دَ خدائے ورته وو ویل چه خبردار دا دَ خدائے اوښه ده

وَسُقْيٰهَا ۝۱۳ فَكَذَّبُوْهُ فَعَقَرُوْهَا ۵ فَدَمْدَمَ عَلَيْهِمْ

او اُوبهٔ څښل دَ دے | نو دوئ دروغ وګڼړلو هغه | پس دوئ وُوژله هغه | نو عذاب راوستلو | په دوئ باندِ

او دَ دے دَ څښلو وار مقرر دے خو دوئ پیغمبر دروغژن وګڼړلو او اوښه ئے مړه کړه، نو الله تعالیٰ پرے دَ ګناه

رَبُّهُمْ بِذَنْۢبِهِمْ فَسَوّٰىهَا ۝۱۴ وَلَا يَخَافُ عُقْبٰهَا ۝۱۵

رب دَ دوئ | په وجه دَ دوئ دَ ګناهونو | بیائے برابر کړل دوی | او الله نهٔ ویرېږي | دَ دے دَ انجام نه

په وجه عذاب راوستلو، نو ټول ئے برابر کړل او الله تعالیٰ دَ هغوئ دَ بد انجام هیڅ پرواه ونه کړه

سُوْرَةُ الَّيْلِ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | اِحْدٰى وَعِشْرُوْنَ اٰيَةً وَّرُكُوْعٌ وَّاحِدٌ

سورة لیل په مکه کښے نازل شوا و | (شروع) دَ الله په نامه چه لوئے مهربان ډیر زیات رحم کوونکے دے | په دے کښے ۲۱ آیتونه او یو رکوع ده

دَ الله په نامه شروع کوم چه لوئے مهربان دَ ډیر زیات رحم خاوند دے

وَالَّيْلِ اِذَا يَغْشٰى ۝۱ وَالنَّهَارِ اِذَا تَجَلّٰى ۝۲ وَمَا خَلَقَ الذَّكَرَ

او قسم دے په شپه | هر کله چه دا راخوره شي | او په ورځ | هر کله چه روښانه شي | او په هغه ذات | چه پیدا ئے کړل | نر

قسم دے په شپه چه راخوره شي، او (قسم دے) په ورځ چه روښانه شي، او په هغه خدائے چه نر او ماده ئے پیدا

وَالْاُنْثٰٓى ۝۳ اِنَّ سَعْيَكُمْ لَشَتّٰى ۝۴ فَاَمَّا مَنْ اَعْطٰى وَاتَّقٰى ۝۵

او ماده | چه بیشکه کوشش ستاسو | مختلف دے | پس | چا چه | (مال) ورکړو | او پرهیزګاري ئے وکړه

کړي دي۔ چه بیشکه ستاسو کوششونه مختلف دي، نو چا چه (دَ مال حقونه) ورکړل او پرهیزګار شو

